

بسم الله الرحمن الرحيم

په پښتو ژبه کښې اولنی او په افغاني تاریخ کښې بې

ساري په زر گونو جدیدو او نوو مسئلو باندي مشتمل

# تفسیر ایوبي حنفي

خلورم ټوک ۴

تالیف او تصنیف

د علامة العصر ابو الفضل شیخ التفسیر والحدیث فقیه دوران مفسر الزمان

## حضرت مولانا محمد عبدالله الایوبي

الکندهاري السلیمانخیلي الحنفي النقشبندي حفظه الله تعالی

مکتبه القرآءة والتجوید

کاسي روډ شالدره کوټه

Scanned by CamScanner

# د کتاب پېژندنه

د کتاب نوم ............ تفسير ايوبي پښتو څلورم توک

مؤلف............ الحاج مولنا محمد عبيد الله الايوبي الکندهاري

السليمانخيلي الحنفي حفظه الله تعالى بفضله الوهبي

کمپوزر ............ حبيب الحق حقاني

ټايپ ............ حقاني کمپيوټر اداره

نشر کوونکي اداره ............ مکتبة القراء ت والتجويد کانسي روډ کوټه

د چاپ ځای ............ لاهور پاکستان

# زيري

**د آخر الزمان فخر موجودات سردار کل عالم د تر ټولي غټې او ژوندۍ معجزې يعني قرآن مجيد په زړه پوري تاريخ په کتابي شکل کي په معياري پښتو سره ليکل سوی يعني**

# قصص القرآن

چي د پيش امامانو لپاره د نصيحت يوه غټه ذريعه ده، همدارنګه د مطالعې او په ژوند کي د سفر لپاره ډېر ښه ملګری دی

Scanned by CamScanner

بسم الله الرحمن الرحيم

**جميع الحقوق محفوظة**

جميع حقوق الملكية الادبية والفنية محفوظة لمكتبة القرائة والتجويد كوئته بلوچستان و يحظر طبع أو تصوير أو ترجمة او إعادة تنضيد الكتاب كاملاً او مجزأ او تسجيله على أشرطة كاسيت او إدخاله على الكمبيوتر أو برمجته على اسطوانات ضوئية إلا بموافقة الناشر خطياً

Copyright ©
All rights reserved
Tous droits reserves

Exclusive rights by Maktabatul-Qiraat I waltajweed Quetta - Pakistan. No part of this publication may be translated, reproduced distributed in any form or by any means, or stored in a data base or retrieval system, without the prior written permission of the publisher.

الطبعة الاولى

١٤٢٦ هجري - ٢٠٠٥ ميلادي

مكتبة القراءة و التجويد

شارع كانسي كوئته - بلوچستان
رقم الهاتف ٠٣٠٢٨٨٥٥٢٥

MAKTABTUL-QIRRAT
WALTAJWEED
KANSI ROAD QUETTA
BALUCHISTAN

ISBN 2-7451-3140-0



الحمد لله وحده والصلوة والسلام على من لانبي بعده.

د کائناتو مربي او پروردگار لره دي حمدونه او دده پر اخري نبي ختم المرسلين ﷺ دي درودونه او سلامونه وي، همدارنګه دې د رب العلمين رحمتونه وي دده ﷺ پر ملګرو باندي کوم چي يې د الله تعالى دا سپيڅلى دين پخپلو قربانيانو سره د دنيا وکونج کونج ته ورسوى.

محترمو لوستونكو!

دا يو څلاند حقيقت دى له كوم څخه چي سترګي پټېدلاى نه سي، چي الله تعالى د خپلو بندګانو د لار ښوونې لپاره قرآن مجيد را لېږلى دى، تر څو د الله تعالى بندګان پري خانونه پوه او خبر كړي، او د هغه خيرتيا او پوهنې وروسته پري عمل وكړي.

او دا هم يو څرګند حقيقت دى چي په يو شي باندي عمل هله كېداى سي كله چي د هغه په مضمون او ماحصل باندي پوه سي.

د الله تعالی پر خپلو بندګانو باندې بې شمېره احسانونه
دي چې د خپل کتاب د ښوونې لپاره يې د انبياء كرام
علیه الصلوة والسلام لړۍ راپیل تر څو چې یې خاتم
الانبیاء علیهم افضل الصلوات والتسلیم راولېږي.

همدارنګه يو څرګند حقیقت دی چې د يو كتاب مضمون هلته عام فهمه بلل کېږي او عام انسان ورڅخه ګټه اخستلای سي. کله چې هغه د هغه وخت د خلګو په لغت او ژبه سره وي، او دا هم د الله تعالی لوی احسان دی چې د قرآن مجيد د مختلفو علومو او فنونو د خدمت لپاره يې خدمت کوونکي انسانان پیدا کړه. د مثال په توګه مفسرين كرام رحمهم الله تعالى يې د معناوو خدمت کوي، اهل لغت یې د لغتو، اهل معاني يې د فصاحت او بلاغت، صرفيانو يې د صيغو، نحويانو يې د اعراب، منطقيين يې د قضاياوو، اهل قراءت يې د قرآئتونو، مجودين يې د حروفو د اداء کولو. غرض دا چې دا څومره علوم چې ويل کېږي دا په حقيقت کي د قرآن مجید د زدکړي لپاره دي.

همداغه د معانيوو د خدمت په لړۍ کښې حضرت علامه مولانا ابو الفضل محمد عبيد الله الايوبي الكندهاري هم خپل د عمر اخري ورځي او شپې د قرآن كريم لپاره وقف کړې، او مكتبة القرآئت والتجويد بيا د قرآن مجيد د علومو د خپرولو بېړه اخستې ده. الله تعالی دي ودوارو ته ښه بدله ورپه برخه کړي، او قرآن مجيد دي زموږ لپاره حجت وګرځوي، الله تعالی دي يې پر موږ باندې حجت نه ګرځوي.

نور مو پر خدای سپارو
د دعاوو په هيله

## قاري فضل الحق حقاني

بانيِ مكتبة القراءت والتجويد
کوټه بلوچستان



Scanned by CamScanner

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله الذي انزل على عبده الكتاب ليكون للعالمين نذيرا، وقال في كتاب المستبين "وما علمناه الشعر وماينبغي له ان هو الا ذكر و قرآن مبين، لينذر من كان حيا ويحق القول على الكافرين. والصلوة والسلام الاكملان على سيد الانبياء والمرسلين سيدنا محمد وعلى آله وصحبه اجمعين، واشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمدا عبده ورسوله، ارسله بالحق بشيرا ونذيرا

**اما بعد** فيقول الفقير الى الله الغني محمد عبدالله الايوبي الحنفي القندهاري ابن المولى المرحوم المولوي محمد ايوب القندهاري غفرله الباري چي څه وخت چي زه فارغه سوم په فضل د خدای ﷻ له تفسیر څخه د پاره ﴿الم﴾ په دوه جلده کي. او له تفسیر څخه د پاره ﴿سیقول﴾ په یوه جلد ضخیم کي، نو اوس نوبت د تفسیر د ﴿تلک الرسل﴾ ورسېدی. له خدای ﷻ څخه توفیق غواړم چي ددې پاري تفسیر هم په صحت او عافیت او خوشحالی پای ته ورسېږي، وما توفيقي الا بالله عليه توكلت واليه انيب

## ابیات ایوبی

د ریم جلد د تفسیر ختم په توفیق د ذو الجلال سو
خلورم جلد د تفسیر اوس شروع په توفیق د ذو الکمال سو
د د ریم جلد د ختم شکر وایم خدای ﷻ ته
د خلورم جلد د اختتام عجز کومه خدای ﷻ ته
په صحت و عافیت او توفیق خدایه غواړم ستا څخه
خوشحالي هم د ظاهر هم د باطن یا الله غواړم زه ستا څخه
د اعضاء رئیسه ومروسه صحت هم غواړم زه ستا څخه
خاتمه د عمر پر ایمان او پر صلاح کامل هم غواړم ستا څخه



Scanned by CamScanner

موعظة للحافظ شیرازي رحمه الله

هر که آمد در جهان پر زشور
عاقبت میبایدش رفتن بگور
در ره عقبی ست دنیا چون پلي
بي بقاء جاي و ویران منزلی
دل منه بر این پل پر ترس و بیم
برگ راه ساز مشو اینجا مقیم
نزد اهل معنی این کاخ
پنج هست چون ویرانه خالي زگنج
دور باش از دوستی مال و جاه
زانکه مالت مار وجاهت هست چاه
گر نه کوری گور بین میگفت
یکزمان بیکار منشین گفتمت
هیچ کس رانیست زین منزل گزیر
از گدا شاه و از برنا و پیر
ای که برما بگزري دامن کشان
از سری خلاص الحمدی بخوان

مناجات

| | |
|---|---|
| الهي یا الهي یا الهي | ندارم جزء امیدت تکیه گاه هی |
| زکن موجود کردی جمله عالم | مر از ذنب خودکن عذر خواهی |
| ندارم توشه راه قیامت | بیجز شرمندگی وروه سیاهی |
| ندارم طاعت مقبول درگاه | بجز اشک ندامت آه آهی |
| شفیع آورده ام روی محمد | کرم کن بر من گم کرده راهی |
| بحق و حرمت فرقان اعظم | عبید را بخش کن جمله گناهی |



Scanned by CamScanner

## مناجات

خجالت تر تامي بس دی یا مولای
تر مخلوق ما خجل مه کړې اې خدایه
ته تر ما زما په ګناه خبر يې رب و عالم ته
ما رسوا مه کړې اې خدایه
حاسدان که هر څه وایي دوئ دي وایي
د دوئ په خوله ما بېګانه مه کړې مولای
عمر تېر سو مرګ نږدې سو پاکه رب
په سپين مخ مي و باسې له دې زندانه
زما د ژوند مېوه به دا وي پاکه خدایه
چې تفسیر د قرآن و رسوم پای ته
دا امید زما په قطع بدل مه کړې
داتفسیرمي رانیمګړی مه کړې خدایه
زه به هغه وخت ومرګ ته اماده باش يم
چې تفسیر د قرآن و رسوم والناس ته
دا نعمت زما په نصیب کړې ذوالجلاله
دا تفسیر زما يتيم مه کړې وبل چاته

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹



Scanned by CamScanner

اعوذ بالله من الشیطان الرجیم ۞۞۞۞۞ بسم الله الرحمن الرحیم

# تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ

**پوه سه** چې "تلک الرسل" اشاره ده وجماعت ته د رسولانو چې یو له هغو څخه محمد ﷺ دی، چې دې جماعت ته اشاره وسوه بقوله تعالی ﴿وانک لمن المرسلین﴾

**فائده** الف ولام په "الرسل" کې لپاره د استغراق دی، او موصوف مع الصفة مبتداء ده او جمله د "فضلنا آه" یې خبر دی. او رسول دلته په معنا د مطلق نبي دی که صاحب د نوي شریعت وي او که نه. او بیضاوي وایي چې الف ولام لپاره د عهد دی او مراد هغه جماعت دی چې ددوئ قصې په دې سورت کې ذکر سوې دي. او یا هغه جماعت دی چې علیه الصلوة والسلام ته معلوم وه.

**پوه سه** چې "فضل" زیادت ته وایي د یو شي پر بل په وصف مشترک کې خواه دا وصف وصف ذم وي او که وصف مدح. لکه چې دوه کسه چې بخیلان وي، او دا یو بخیل پر هغه بل په بخل کې بالا وي، او یا دوه کسه وي دواړه سخیان وي، او دا یو پر هغه بل په سخاوت کې بالاوي الی غیر ذالک من الاوصاف المشترکة بین الشیئین او الاشیاء. او په عرف کې د شرع شریفي او په عرف عام دا لازمه ده چې هغه وصف مشترکه به وصف کمال وي. یعني سبب د مدح في الدنیا او د ثواب په اخرت کې وي. نو که یو سړی پر بل بالا وي په وصف کمال کې لکه علم مثلا. او بل بیا بالا وي په بل وصف کمال کې لکه حلم مثلا. نو هر یو پر هغه بل فضل جزي لري بعد اشتراکهما في مطلق الکمال یعني استحقاق المدح والثواب في الآخرة.

**نتیجه** نو انبیاء او رسلان علیهم السلام سره شریکان دي په نفس نبوت او رسالت کې او په کمالات د اجر او ثواب. لکن بینهم تفاضل عند الله تعالی بناء علی کثرة الثواب ومزید القرب الی الله ﷻ لا یعلمه تفصیلا الا الله.

**درویش وایي** چې صاحب د روح البیان ددې تفضیل جزي بیان داسې



Scanned by CamScanner

کړی دی لکه بعض انبیاء علیهم السلام ودرجې ته د خلة رسېدلي دي کابراهیم ﷺ چي دا وصف بیا په بل نبي کي نشته. او په بعض انبیاؤ کي نبوت او سلطنت دواړه جمع سوي دي لکه داؤد ﷺ کما مر في اخیر الجلد الثالث من هذا التفسیر. او احتمال ددې دوو وصفو په غیر کي د داؤد من الانبیاء علیهم السلام نشته. او بعض انبیاؤ ته مسخر والی د انس او جن او باد او مرغانو لکه سلیمان ﷺ ته چي حاصل و چي بل هیڅ نبي ته نه وو ورکړه سوی حتی دده پلار داؤد ﷺ ته هم نه و حاصل. او علیه الصلوة والسلام ته دا وصف جلیله ورحاصل و چي مبعوث الی الانس والجن و. او شریعت دده د ټولو شرائعو متقدمه وو ناسخ و، وغیرها من الاوصاف العالیة المذکورة في کتب الاحادیث الشریفة.

**درویش وایي** وما وقع في بعض التفاسیر من قوله والفضل الکلي لمن له زیادة الثواب ومزیة القرب عند الله تعالی انتهی فشطط، لان الفضل الکلي مقابل للفضل الجزئي فمعناه الفضل من کل الوجوه وهذا غیر متصور بل غیر ممکن فضلا عن الوقوع کما لایخفی علی من تامل في معنی الفضل الجزئي والفضل الکلي.

مِنْهُمْ مَّنْ كَلَّمَ اللّٰهُ

بعض له رسولانو څخه هغه څوک دي چي خدای ﷻ له ده سره خبري کړي دي، والعائد الی من محذوف ای کلمه الله، عموما مفسرین ؒ پر دې دي چي مراد له دغه بعض څخه موسی ﷺ دی حیث قال الله تعالی ﴿فلما جاء موسی لمیقاتنا وکلمه ربه الآیة﴾ او بعض وایي چي مراد له دې څخه موسی ﷺ دی چي خدای ﷻ پر کوه طور خبري ورسره وکړې، او محمد ﷺ دی چي خدای خبري ورسره وکړې په لیلة المعراج کي، ولې چي خدای ﷻ په دې باب کي داسي ویلي دي ﴿فکان قاب قوسین او ادنی فاوحی الی عبده ما اوحی الآیة﴾

**درویش وایي:** چي ددې دوو خبرو یعني د خدای ﷻ د موسی ﷺ سره پر کوه طور باندي او د نبي ﷺ سره فوق سبع سموات په فضل کي ډېر فرق دی کمالایخفی

# وَرَفَعَ بَعۡضَهُمۡ دَرَجٰتٍ

او خدای ﷻ پورته کړي بعض انبیاء درجو ته.

**یوه سه:** چي نصب د "درجات" په نزع د خافض دی ای علی درجات

**درویش وایي:** چي له دغه "بعض" څخه سید الانبیاء ﷺ مراد دی، ولي چي رفع د درجاتو پر ټولو انبیاء خاص دی په نبینا محمد ﷺ سره او دا فضل پر ټولو انبیاء علیهم السلام باندي ثابت ده په وحي متلو او احادیث شریفه وو سره، او هم پر دي اجماع د علماؤ د امت مرحومه ده، ولي نبي ﷺ دونه معجزات ښکاره کړه چي تعداد يې تر زرو رسېږي بلکه بالا ورکړه سوي دي، او اعظم د معجزاتو د نبي کریم ﷺ قرآن کریم دی چي کرالازمان او مر الدهور باقي دی اويه قرآن کي دا اعلان هم موجود دی ﴿وان کنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فاتوا بسورة من مثله الآية﴾ وروسته يې ويلي دي ﴿فان لم تفعلوا ولن تفعلوا فاتقوا النار الآية﴾ او په بل آیت کي دا اعلان هم موجود دی ﴿قل لئن اجتمعت الانس والجن على ان ياتو بمثل هذا القرآن لاياتون بمثله ولوكان بعضهم لبعض ظهيرا﴾ الى غير ذالک من الآیات الکریمات الدالة على ان القرآن معجزة باقية. ولي تر دي اوسه پوري د هجرت نبوي را ایسته پوزر وڅلور سوه شپږویشت کاله تېر سوه نه په تاریخ کي او نه په نشریاتو عامه وو کي دا راغلي دي چي مثل د یوه سورت یا دوو سورتو فضلا عن مثل جمیع القرآن دي چا جوړ کړي وي، او که قرآن مبارک د طوق د بشر وتلی نه وایی؛ نو عرب عرباو او بلغاو د دعدنان او قحطان به يې مثل جوړ کړی وایی، او سره ددي چي عرب د عصر نبوي ﷺ په مقابله د اسلام او توحید دونده جدي وه چي مقارعة السیوف ته مجبور سول او سره ددي چي مناظره باللسان په اتیان سره مثل د قرآن که ددوی ته ممکنه وایی ډېر اسانه وه تر مقارعة بالسیوف.

**درویش وایي:** که یوازي او یوازي قرآن مجید معجزه د علیه السلام وایی هم کافي وه په تفصیل کي د علیه السلام پر نورو انبیاؤ علیهم السلام باندي

لان معجزاتهم منحصرة في مدة حيوتهم فقط

**درويش وايي**: چي په حديث صحيح متفق عليه کي راغلي دي ﴿فضلت على الانبياء بست﴾ زه پر نورو انبياوُ تفضيل راکړه سوی دی په شپږو شيانو سره ﴿اوتيت جوامع الكلم﴾ مانه راکړه سوي دي کلمات جامعه يعنی لفظ قليل او معنا يي ډيره لو ده ﴿ونصرت بالرعب﴾ او زما سره کومک کړه سوی دی په رعب يعني په ډيره سره په زړو کي د کافرانو يعني که څه هم په ليري مسافت زما څخه واقع وای ﴿واحلت لي الغنائم﴾ او مانه حلال گرځول سوي دي غنيمتونه د کافرانو، او د نورو انبياوُ پر غنيمتو باندي به اور د اسمان نازلېدی او سوځول به يي او اخستل يي وه دوئ ته ناروا و، ﴿وجعلت لي الارض مسجدا وطهورا﴾ او زما لياره يعني سره د امت مځکه ټوله ځای د لمانځه او پاکي د حدث يعني تيمم گرځول سوي ده ﴿وارسلت الى الخلق كافة﴾ او زه استول سوی يم د خلگو ټولو لپاره په نبوت اي الانس والجن والعرب والعجم ﴿وختم بي النبيون﴾ او ختم کړه سوي دي په ما سره انبياء عليهم السلام، يعني د نبوت دروازه په ما سره بنده سوه

**درويش وايي**: چي تفصيلا ذکر د خصائصو د عليه السلام چي د صحيح احاديثو په کتابو کي راغلي دي ډيري ورقي به وغواړي اما اجمالا ﴿عن ابي سعيد الخدري ؓ قال قال النبي ﷺ انا سيد ولد آدم ولا فخر، اي يوم القيامة وبيدي لواء الحمد ولا فخر، وانا اول شافع واول مشفع ولا فخر﴾ رواه الترمذي

له ابن عباس ؓ څخه روايت دی چي يوه ورځ بعض اصحاب د عليه السلام سره ناست وه، نو عليه السلام له کوره څخه را ووتی حتی هغه اصحابو ته نژدې راغلی، نو عليه السلام د دوئ دا خبري وا ورېدلې، بعض ويله ان الله اتخذ الله ابراهيم خليلا، او بل صحابي وويل موسى کلمه الله تکليما، او بل بيا وويل چي عيسى کلمة الله وروحه وو، او بل بيا وويل چي آدم اصطفاه الله وو، نو عليه السلام ودوئ ته وويل چي ما ستاسي خبري واورېدي، صحيح ده چي ابراهيم خليل الله و، او صحيح ده چي موسی نجي

الله و . او صحيح ده چي عيسى روح الله او كلمة الله و، او آدم صفي الله و. الا انا حبيب الله ولا فخر، وانا لواء الحمد يوم القيامة تحته آدم فمن دونه ولافخر . الى اخير الحديث او كما قال عليه السلام.

**درويش وايي:** چي په فضائل او خواصو كي د عليه السلام مجلدان كتابونه علماؤ حضراتو تصنيف كړي منهما دلائل النبوة في مجلدان او نور هم. يو شاعر فارسي پر طور د كنايه د عليه السلام په باب كي وايي:

قد دل جوى ولب لعل رخ زيبا دارى حسن يوسف دم عيسى يدبيضا دارى

شيوه شكل وشمائل ادب وعقل وتمييز آنچه خوبان همه دارند وتو تنها دارى

وقال آخر

افاقها گرديده ام مهرتبان ورزيده ام بسيار خوبان ديده ام اما تو چيزي ديگري

**وَاٰتَيْنَا عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ وَاَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ**

او ور كړي مونږ عيسى زوى د مريمي ته معجزات ظاهرات او دده تائيد مونږ كړى و په پاك روح سره.

**پوه سه:** چي د عيسى ﷺ معجزې دا وې (۱) احياء الموتى، يعني مړي دده په دعاء سره راژوندي كېدل (۲) شفاء د امراض عظيمه وو دده په دعاء سره كېدله (۳) مور زاده ړوند دده په دعاء خداى ﷻ په سترگو بنا كاوه (۴) پيس دده په دعاء سره صحيح سالم گرځېدى (۵) او د خټو مرغه به يې جوړ كړى او چي پر پوه به يې كړه هغه به طيران كاوه (۶) د چا په كور كي چي به پټ شى و عيسى ﷺ به هغه ورښووى يعني باخبار الله ﷻ (۷) كتاب الانجيل.

**سوال:** دا معجزات سبب د تفضيل د عيسى ﷺ ولي وگرځېدې، سره ددې چي بعض له دې معجزاتو په غير كي د عيسى ﷺ هم موجودي وې؟

**خواب:** چونكه دا معزات ظاهرات وې او په اجتماعي توگه په بل نبي كي نه دي موجودي، نو ځكه يې سبب د تفضيل د عيسى ﷺ وگرځولي.

**فائده:** خداى ﷻ چي ذكر د عيسى ﷺ وكړى په ذكر سره د اعطاء د ايات



Scanned by CamScanner

بیناتو ددې لپاره چې پر یهودیانو رد راسي چې هغو د هر تحقیر دده کاوه او دده د نبوت څخه منکر وه، یعني سره د اعطا د آیات بینات څرنګه دوئ دده له نبوت څخه انکار کاوه، او رد پر نصاری وو هم دی چې هغو دونده افراط په حق کې د عیسی ﷺ کاوه چې تر رسالته یې لوړ مقام ورکاوه، یعني ابن الله یا ثالث ثلاثة یې بولي.

**پوه سه** چې "روح القدس" اضافت د موصوف وصفت ته ده، ای الروح المقدسة بعض مفسران وايي چې مراد له "روح القدس" څخو روح د عیسی ﷺ دی چې خدای ﷻ په ده کې پوه کړی و، بیله دې چې د اختلاط د دوو نطفو د نر او ښځي دي پیدا وي لکه عمومي انسانان، او بعض مفسران وایي چې له قدس څخه خدای ﷻ مراد دی او له روح څخه جبرائیل ﷺ مراد دی، او اضافت وخدای ﷻ لپاره د تشریف دی لکه بیت الله، نو معنا د آیت داده "صور تائید د عیسی په جبرئیل سره هم په اول الامر کې بقوله تعالی ﴿فنفخنا فیه من روحنا﴾ ولې دا نفخ په جیب یعني ګریبان کې د مریمې جبرئیل وکړه، او هم په اوسط حال کې د عیسی ﷺ چې جبرئیل وعیسی ﷺ ته علوم ورښوول، او له دښمنانو څخه به یې ساتی، او هم په آخر الامر کې یهودیانو دی وژی او جبرئیل دی واسمانو ته خندي بوتلی.

وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ مَا ٱقْتَتَلَ ٱلَّذِينَ مِنۢ بَعْدِهِم
مِّنۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ ٱلْبَيِّنَٰتُ

او که اراده وایی د خدای ﷻ د هدایت د ټوله نوع بشري، نو به جنګ نه سره کولایی هغه کسانو چې وروسته تر رسولانو وه، او وروسته تر دې چې دوئ ته آیات بینات الهیه هم راغلي وه.

وَلَٰكِنِ ٱخْتَلَفُوا۟ فَمِنْهُم مَّنْ ءَامَنَ وَمِنْهُم مَّن كَفَرَ ۚ

لکن په منځ کې د خلګو یعني امم الرسل اختلاف پیداسو په اراده د

خدای ﷻ نو بعض یې ایمان راوړي او بعض یې من کفر سوه.

**پوه سه:** چي ایمان راوړل د بعض خلګو په تفضل او توفیق د خدای ﷻ دی چي ددوئ په زړو کي التزام د دین حق د انبیاء علیهم السلام ور واچاوه. او کفر د بعض کسانو په خذلان د خدای ﷻ عدلا منه چي د دوئ زړونه د ضلال وخواته مائل سوه.

**پوښتنه:** څه حکمت الهي دی چي ټوله انسانان پر هدایت نه سوه؟!

**ځواب:** خدای پاک په دې صنع کي اظهار د صفاتو د جلال او جمال منظور و. او د خپلو اسما. هادي، مضل، غفار، قهار، منتقم، او عفو منظره د خلګو ګرځول وه.

**وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا اقْتَتَلُوْا ۗ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ ﴿۲۵۳﴾**

او که اراده وایی د خدای ﷻ دوئ به جنګ نه سره کولای.

**پوه سه:** چي دا تاکید د ماقبل ایت دی، لکن خدای ﷻ هغه کارونه کوي چي اراده یې سي، یعني لایجوز الاعتراض علیه تعالی، او د خدای ﷻ په حکمت د حکمت څوک نه پوهیږي.

**درویش وایي:** چي مسئله د قدر له مشکلاتو څخه د مسائلو ده. نو تفویض د علم ددې مسئلې وخدای ﷻ ته د هر بهترین کار دی. بغوي وایي چي د حضرت علي رضی الله عنه څخه چا د قدر د مسئلې په دې الفاظو پوښتنه وکړه "اخبرني یا امیر المؤمنین من القدر؟ قال علي رضی الله عنه طریق مظلم" هغه له سره خپل سوال بیا راوګرځاوه علي رضی الله عنه ورته وویل "بحر عمیق فلا تلجه هغه سړي بیا سوال اعاده کړی، علي رضی الله عنه ورته وویل "سر خفي فلا تفتشه" یعني قدر یو داسي مضمون دی چي ادراک یې په عقل سره نه کیږي او په تفتیش کي یې بهره د هلاک، ضلال ستنه لکه ناوباز سړی چي په بحر عمیق کي اوبازي کوي، او یا په ښځي تاریکه کي سړی سفر کوي، د ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها څخه روایت دی، دا وایي ما واورېده د علیه الصلوٰة والسلام څخه چي که چا خبره

کړې به يو شي کي د قدر «سئل عنه يوم القيامة ومن لم يتکلم فيه لم يسئل عنه يوم القيامة يعني فوض امر القدر الى الله» ابن ماجه. د ابي بن کعب رض څخه روايت دی «لو ان الله عذب اهل سمواته وارضه عذبهم وهو غير ظالم لهم ولو رحمهم کان رحمته خيرا لهم، ولو انفقت مثل احد ذهبا في سبيل الله ماقبل الله منک حتى تؤمن بالقدر» يعني په دې معنى چې يو مکروه چې تاته ورسيږي ستا به دا يقين وي چې دا مکروه له ماڅخه نه چپيدی يعنې که ما هر څه کوشش کړی وايي په دفع کي د هغه مکروه ولې چې تقدير د خدای ﷻ دغسي و. او له يوه مکروه چې ته خلاص سوې او هغه تاته نه ورسيدی يعنې ستا به دا ايمان وي چې تقدير د خدای ﷻ دغسي و چې زه به له دې مکروه خلاصون پيدا کوم. حاصل دا چې دا به مسلمان نه وايي چې په اول صورت که ماداسي کړې وايي، نو به دا مکروه ماته نه رسيدای، په دوهم صورت کي به داسي نه وايي چې ما چې دا سي وکړه نو له مکروه څخه خلاص سوم. يعنې کلمه د لو به نه وايي، ولې کلمه د لو د مشروعيت د منافقانو له خوا سوی دی کما حکى الله عنهم «لوکانو عندنا ماماتوا قتلوا الآية» راوي وايي ولو مت على غير ذالک لدخلت النار يعني که ته پر غير د عقيدې د تقدير الهي مړ سوې نو به اور ته ورځې، او د عبدالله بن مسعود رض او د حذيفه بن اليمان رض څخه هم مثل د مذکوره انفاً روايت راغلی دی، او زيد بن ثابت رض د عليه الصلوة والسلام ورته روايت کړی دی، احمد ابو داوُد. ابن ماجه.

**پوښتنه**: د مذکوره آيتو څخه خو تفضيل د انبياء عليهم السلام بعضهم على بعض صراحةً معلوم سو نو ددې قول د عليه السلام چې ابو سعيد او ابو هريرة رض يې روايت کړی دی او دا حديث په بخاري او مسلم دواړو کي ستته «لاتفضلوا بين انبياء الله. وفي روايت لا يتخيروا بين الانبياء» او ددې حديث «لاتخيروني على موسى» او ددې حديث لا اقول ان احدا افضل من يونس بن متى» ددې به نو څخه معنى وي؟

مظهري ځواب داسي ورکړی دی چې تفضيل د انبياؤ يو پر بل په رأی سره

مه کوئ چي د شرع شریفي له خوا بې تفضیل نه وي ثابت، لان الفضل عبارة عن کثرة الثواب وزیادة القرب الی الله تعالی وهذا لایدرک بالرای، او بعض مفسران وايي چي دغه حدیثونه محمول دي پر دې چي علیه السلام ته علم پر خپل افضلیت تر انبیاء علیهم السلام نه و ورکړه سوی لانه علمه ﷺ کان یزداد یوما فیوما وانعاماته تعالی علیه ﷺ کانت توجد وقتا فوقتا، او بعض مفسرین رح وايي چي داسي تفضیل او تخییر مه وایاست چي مفضي وجنگ او جدال ته سي ولي تفضیل خو د عقیدې شی دی، نو د خولې په وینا ولي د چا سره جنگ کوئ علی ما روای البخاري چي یوه یهودي په بازار کي داسي وویل یعني د قسم په وخت کي والذي اصطفی موسی علی البشر، یو مسلمان چي دلته حاضر و یهودي ته یې داسي وویل اعلی محمد ﷺ او بیا یې یهودي پر مخ وواهه. یهودي ولاړی وعلیه الصلوة والسلام ته یې د مسلمان شکایت وکړی. علیه السلام مسلمان راوغوښتی او پوښتنه یې خندي وکړه چي دا یهودي دي ولي وواهه؟ مسلمان ماجری حال ورته ووایه. نو علیه السلام ورته وویل لاتخیروني علی موسی الی اخیر الحدیث.

**مسئله**: دا آیت دلیل دی د اهل سنتو پر معتزله وو باندي یعني چي حوادث او افعال د بندگانو ټوله په مشیت او اراده کي د خدای ﷻ دي، که خیر وي او که شر وي. که اسلام وي او که کفر، او معتزله وايي چي افعال دبندگانو مخلوق د بندگانو دی ومزید الدلائل بیننا وبینهم في شرح العقائد وشرح المقاصد للعلامة التفتازاني رحمه الله والمواقف للقاضي عضد الدین رحمه الله وشرحه للسید الجرجاني رحمه الله والله سبحانه اعلم.

**يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَنفِقُواْ مِمَّا رَزَقۡنَٰكُم مِّن قَبۡلِ أَن يَأۡتِيَ يَوۡمٞ لَّا بَيۡعٞ فِيهِ وَلَا خُلَّةٞ وَلَا شَفَٰعَةٞۗ وَٱلۡكَٰفِرُونَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٢٥٤﴾**

اې هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی تاسي انفاق د هغه رزق څخه وکړئ چي موږ در کړی دی یعني زکوة فرضي یې ورکوئ دمخه تر دې چي

راځي هغه ورځ يعني ورځ د قيامت چې په هغه ورځ تاسي تدارک د مافات عنكم في الدنيا يعني زكوة نه سي كولاى ولې چې په هغه ورځ كي بيع نسته چې تاسي دي په هغه بيع مالونه پيدا كړئ او بيا يې في سبيل الله انفاق وكړئ. او يا به له عذاب څخه د خداى ﷻ د فديې په توګه خلاصون ومومئ؛ او نه خلت او قرابت او اشنايي سته چې هغوئ دي ستاسي كومک وكړئ. او نه هم شفاعت سته لان الشفاعة انما هي باذن الله، او كافران دوئ دي ظالمان اول پر خپلو ځانو يې ظلم وكړئ چې عذاب د خداى ﷻ وسپارل بترک ما امرهم الله، نو تاسي مسلمانان بايد د دوئ پر دول نه سئ.

**پوه سه**: چې اصل معنى د "ظلم" وضع د شي ده بې ځايه. نو كافرانو هم عبادت چې حق د الله ﷻ دى بې ځايه كښېښو يعني د بتانو عبادت يې شروع كړئ، او خپل مالونه هم بې ځايه په شهواتو نفسيه وو كي مصرف وي او في سبيل الله شى نه وركوي ولې چې زكوة خو دوئ نه مني، او قاضي بيضاوي رحمه الله وايي چې مراد له كافرانو څخه تارک الزكوة دى يعني مانيعها كه څه هم مسلمانان وي، او تعبير په كافرون د مانع الزكوة تغليظا دى په معنى ددې چې منع د زكوة د كافرانو صفت دى، قال الله تعالى ﴿ويل للمشركين الذين لايؤتون الزكوة﴾ او يا د ايت معنى داده چې كافران چې د زكوة له فرضيت څخه منكر وي "هم الظالمون".

**فائده**: په "زكوة" كي من تبعيضي ذكر كړى اشاره ودې ته ده چې زكوة بعض له مال دى، او نسبت د رزق خداى ﷻ ځان ته وكړى حثا لصاحب المال على الزكوة، د محمد بن اسماعيل البخاري رحمه الله څخه په غير كي د صحيح البخاري راغلي دي چې خداى ﷻ وجبرئيل عليه السلام ته وحي وكړې چې اې جبرئيل چي كه زه تا واستوم دنيا ته او تا زه له اهل دنيا څخه وګرځوم ته به څه عمل زما په طاعاتو كي په دنيا كي كوې؟ جبرئيل عليه السلام ورته ووېل چې خدايه ته زما په حال خبر يې لكن زه به درې عمله كوم، (۱) اول به زه كومک كوم د عيال داره سړي سره په نفقه كي د عيال (۲) دوهم به دا كوم چې عيبونه د خلګو او



Scanned by CamScanner

ګنهونه ددوئ به پهوم حتی چې هیڅ څوک ستا د بندګانو څخه ددوئ په عیبو خبر نه سي، غیر له تاڅخه چې عالم الغیب والشهادة یې (۳) دریم ترټې سړي ته به اوبه ورکوم. کذا في روضة العلماء. سعدي شیرازي قدس سره

چو خودرا قوي حال بیني وخوش بشکرانه بار ضعیفان بکش

اګرخود همین صورتي چون طلسم بمیري واسمت بمیرد چو جسم

اګر پروراني درخت کرم بري نیک نامی خوري لاجرم

**تمهید للآیة الکرسي** له ابو هریره ؓ څخه روایت دی چې زه علیه السلام مقرر او موظف کړم په دې سره چې ته صدقة الفطر د خلګو په یوه اطاق کې ساته، یعني خرما جلا ایږده، غنم جلا، اوربشې جلا وهکذا نقود وغیره، یوه شپه زه هورې بیده وم چې یو سړی دی چې طعام یعني یا خرما ویا غیره په خپل بوجۍ کې اچوي، نو زه چې ویښ سوم هغه سړی مي ونیوی، او ما ورته وویل چې زه دي علیه السلام ته وروړم. نو هغه سړي راته وویل چې زه محتاج یم او عیال داره یم او یو سخت حاجت لرم. ابو هریره ؓ وایي چې ما خوشې کړی سحار چې علیه السلام لمونځ وکړی ماته یې وویل ما فعل اسیرک البارحة یعني دشپې بندي ستا څه سو یعني څه دي کړی او څه دي په وکړه ما ورته وویل چې هغه شکایت د حاجت شدیده وکړی، نو زما زړه پر وسو ایله مي کړی. نو علیه السلام وویل چې دروغ یې درته ویلي دي. وسیعود یعني هغه سړی ورته ویلي وه چې بیا نه ورځم. ابو هریره ؓ وایي چې علیه السلام چې وویل "سیعود" زه وپوهېدم چې بیا راځي. دابله شپه نو بیا ورته منتظر وم. بیا د شپې راغلی او بخپله بوجۍ کې یې طعام اچاوه، بیا مي ټینګ کړی او ورته وه مي ویل چې زه دي علیه السلام ته بیایم، بیا سړي وویل ما پرېږده او هغه د مخه شپې خبرې یې ورته وکړې، او ما خوشې کړی، او بیا علیه السلام سهار هغه د پرون خبرې راته وکړې، دریمه شپه چې هغه سړی ابو هریره ؓ ونیوی ورته وه یې ویل چې دا دریم وار دی چې ته وایې زه نه راځم او بیرته راسې، نن دي حتما علیه السلام ته بیایم ده راته وویل چې ته مي دا پلا



Scanned by CamScanner

خوشي کړه زه به داسي کلمات درښيم چي ته به لويه نفع پرې واخلې، نو هغه سړي و ابوهريره ﷺ ته وويل چي ته ماښام ځای ته ورسي آية الکرسي وايه، نو ټوله شپه د خدای ﷻ له خوا پر محافظ يعني ملکه ولاړه وي، او تا ته شيطان نه سي در نژدې کېدای تر سهاره پوري، نو ابو هريره ﷺ وايي بيا ما ايله کړی چي سهار مسجد ته ورغلم، عليه الصلوة والسلام بيا راته وويل ما فعل اسيرک البارحة ما ورته وويل چي هغه اسير راته وويل چي زه به پر څو کلمې دروښيم الخ. عليه السلام ورته وويل چي د کلماتو په باره کي خو يې رښتيا درته ويلي دي يعني له پېرې وهو کذوب او دی په اصل کي دروغجن دی، بيا عليه الصلوة والسلام راته وويل چي ابو هريره! ته خبر يې چي دا درې شپې ته دچا سره ملاقي کېږې؟ ما ورته وويل لا! يعني زه نه پوهېږم چي څوک دی عليه السلام راته وويل چي دا شيطان دی، رواه البخاري.

**درويش وايي**: چي ګڼ دشمېر اهل حديثو له علي ﷺ څخه داسي روايت کړی دی چي عليه الصلوة والسلام وويل که چا تر هر فرضي لمانځه وروسته آية الکرسي وويل دی به نه کي منع له دخوله د جنت مګر مرګ يعني چي مړ سي دستي به جنت ته ورځي.

**درويش وايي**: چي اتصال په فرضو پوري شرط نه دی که يې تر سنتو وروسته ووايي هم صحيح ده، وفي رواية من قرئها حين ياخذ مضجعه يعني چي بدېږي امنه الله على داره ودار جاره واهل دويرات حوله.

**درويش وايي**: چي روح البيان داسي يو حديث راوړی دی "من قرء آية الکرسي بعث الله ملکا يکتب من حسناته ويمحو من سيئاته الى الغد من تلک الساعة، او صاحب د روح المعاني وايي چي دا حديث هيڅ اصل نه لري، او بعض مفسرانو داسي حديث راوړی دی چي خدای ﷻ وموسى ﷺ ته وحي وکړې چي ته آية الکرسي په وروسته کي د هر لمانځه وايه فانه من يقرئها دبر کل صلوة مکتوبة اجعل له قلب الشاکرين، ولسان الذاکرين وثواب المنيبين واعمال الصديقين، روح المعاني وايي چي هذا حديث منکرا جدا.



Scanned by CamScanner

**درویش وایي**: چي اثار د وضع پر دې حدیث ظاهر دي، ولي چي آیة الکرسي خو عربي ده او تورات او د موسی ﷺ ژبه خو عبراني وه نو ځکه خدای ﷻ ورته ته داسي وخي وکړي، والله اعلم.

**درویش وایي**: چي امام په تفسیر اتقان کي وایي چي آیة الکرسي مشتمل ده اولس ځایه پر اسماء الهیه چي بل آیت په ټوله قرآن کي پر دونده اسماء نه دي مشتمل، دی وایي چي اولس ځایه په آیت الکرسي کي نوم د خدای ﷻ موجود دی، په بعض ځایو کي اسم ظاهر دی په بعض ځایو کي ضمیر، وهي الله، الحي، القیوم، وضمیر لاتاخذه، وله، وعنده، وباذنه، ویعلم، وعلمه شاء، وکرسیه، ویاده وضمیر حفظهما الذي هو فاعل المصدر، وهو العلي العظیم. وفي الحدیث ان الصحابة تذاکروا افضل مافي القرآن، نو علیه السلام وروی ته وویل این انتم من آیة الکرسي، وروسته علیه الصلوة والسلام و علي ﷺ ته وویل یا علي سید البشر آدم دی وسید العرب محمد ﷺ دی ولافخر وسید الفرس یعني اهل الفارس سلمان ﷺ دی وسید الروم صهیب ﷺ دی وسید الحبشه بلال ﷺ دی وسید الجبال الطور دی وسید الایام الجمعة ده، وسید الکلام القرآن دی وسید القرآن البقرة ده وسید البقرة آیة الکرسي، د حضرت علي ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل ما قرئت هذه الآیة في دار الا هتجرتها الشیاطین ثلاثین یوما ولایدخلها ساحر ولا ساحرة اربعین لیلة یا علي علمها ولدک واهلک وجیرانک فما نزلت آیة اعظم منها.

**درویش وایي**: چي شبانه روزي ورد د آیة الکرسي پنځوس واره متصل دي په هر وختي لمانځه چي وایي لکن پر یوه ځای به دا عدد پوره کوي لکن وینا د ورد مذکور په اجازه د شیخ عامل به وي تاچي د جن د خوا یو بېره نه سي ورته متوجه حاصل دا چي د شیطانانو پیرانانو په دفع کي تر آیة الکرسي مفید آیت نسته.

**حکایت**: یو شیخ وایي چي زه یو وخت په سفر روان وم او خر هم راسره و چي زما د خوراک او څښاک شیان پر هغه باندي وه قریه پر قریه سفر جریان



Scanned by CamScanner

درلودی حتی یوه شپه یوې قریې ته ورغلم موسم د یخ هم و، نو کلي والو ته مي وویل چې زما خر به څوک را خوندي کړي کلي والو راته وویل چې مونږ د خره ځای نه لرو، البته په دې کلي کې یو سرای سته چې هم خوني پکښې سته مونږ به دوډۍ درکړو او د خره لپاره پرونړ به هم درکړو، ما ورته وویل چې دا سرای نو ولې تور ولاړ دی، دوی راته وویل چې په دې سرای یوه بلا یا جن رونړد سوی دی چې ژوندی شی که انسان وي او که حیوان وي چې دې سرای ته د شپې ورسي سهار مړه وي، ما ورته وویل توکلت علی الله ماته هغه سرای راوښایاست زه او خر هورې شپه تېروو، خلګو د کلي ډوډۍ راکړه او د خره لپاره یې پرونړ هم راکړه، زه هغه سرای ته ورغلم او خر مي یو ځای وتاړه ښه سرای و ډېرې آبادي پکښې وې زه په یوه خونه ننوتلم، او یو شمع مي راته ولګول او د خدای ﷻ په طاعت او ذکر مي ځان اخته کړی تاچې وګورم چې دې سرای ته څه بلا راځي نیمه شپه تقریبا د سرای په دروازه کې یو غټ شی را داخل سو چې سترګي یې لکه څراغان داسي معلومېدې او په وېښتانو کي سر تر پایه پټ و او پر دوو پښو را روان و، ما چې ولېدی آیة الکرسي مي شروع کړه هغه بلا ودرېده زه چې ودې ځای ته ورسېدم "ولا یؤده حفظهما وهو العلي العظیم" د بلا څګېروی سو، بیا مي دغه توري مکرر درېم وار وویل پر بلا باندې خپل وېښتانو اور واخستی او چپه سوه کرار کرار ددې څګېروی و او اور پر بل و چې پاکه وسوه زه هم بې غمه ورته بیده سوم سهار مي اودس تازه کړی او لمونځ مي په هغه سرای کې وکړی، که ګورم د کلي خلګ را روان دي ددې لپاره چې هغه مبلمه او خر به مړه وي، خلګو چې زه ژوندی ولیدم حیران سوه نو زما څخه یې پوښتنه وکړه ماټوله ماجرې ورته وویل او د بلا سوې هډوکي مي ورښوول، او مالک د سرای ډېر خوشحاله سو او ما ورته وویل چې بې خطره خپل ژوند پکښې کوه، د زید بن ثابت رضي الله عنه څخه روایت دی، دی وایي چې زه خپل باغ ته ورغلم او په باغ کې مي یو رغ واورېدی، ما ورته وویل چې څوک یاست؟ ده راته وویل چې یو سړی یم له پېرانانو څخه چې درې

سوی یم. نو زه ستا پاڼ ته راغلم چي لږ میوه خندي وخورم، نو جن راته وویل چي ته اجازه راته کوې؟ زید ورته وویل نعم او بیا زید وجن ته وویل الاتخبرني ما الذي یعبذنا منکم، قال آیة الکرسي. په یو بل روایت کي راغلي دي چي یو سړی د خرما درختي ته ورغلی په دې درخته کي یو شی پوربدی، بیا هغه شي خبري وکړې دې سړي خواب ورنه کړی او آیة الکرسي یې شروع کړه، له درختي څخه یو سړی راکښته سو سړي ورته وویل چي موږ یو مصروع لرو په څه شي یې دوا وکړو. پیري ورته وویل بما انزلني من الشجرة. والحاصل ان آیة الکرسي لها تاثیرا عظیما په دفع کي د پېریانو، وطرد الشیاطین له نفس څخه د انسان، او مصروع ته هم ډېره فائده رسوي

**درویش وايي:** هذا کله في آکام المرجان في احکام الجان، قال الشاعر

دل پر درد را دوا قرآن جان مجروح را شفا قرآن
هرچه جوی زنص قرآن جو که بود گنج علمها قرآن

قال الله تعالی ﴿وننزل من القرآن ما هو شفاء ورحمة للمؤمنین﴾ وفي موضع آخر ﴿فیه شفاء للناس﴾ وفي موضع آخر ﴿شفا لماقي الصدور﴾ وفي موضع آخر ﴿ویشفي صدور قوم مؤمنین﴾ وفي موضع آخر ﴿واذا مرضت فهو یشفین﴾ وفي موضع آخر ﴿قل هو للذین آمنوا هدما وشفاء﴾

**درویش وايي:** چي اهل تجربه د علماؤ او صلحاؤ او اولیاؤ دا وايي چي دغه شپږ آیت د هر مرض شفاء ده قرائةً علی المریض، او شربةً له، او عوذ آله، ولا یخفی ما في العوض من ترک الآدب مع القرآن في الغایة.

**درویش وايي:** چي تمهید د آیة الکرسي په اختصار پای ته ورسېدی، اوس واروه تفسیر د آیة الکرسي:

## اَللّٰهُ

**پوه سه:** چي کلمة د "الله" د نهه نوي (۹۹) نومانو د خدای ﷻ لوی اسم دی، ولي چي دا اسم وضع دی لپاره د ذات کامله د خدای ﷻ چي جامع د ټولو صفاتو د جلال او جمال دي، او نور اسماء الهیه پر معنا خاص دلالت کوي وبس، کالعالم علی العلم، والقادر علی القدرة، وعلی هذا القیاس نور نومان

د خدای ﷻ، او دا کلمه مبارکه یو خصوصیت لري هغه دا چي د هري کلمي چي یو حرف څنډي ساقط سي معنا یې تغییر پیدا کوي کما لایخفی. بخلاف هذه الکلمة المنیفة، ولې که الف څنډي حذف سي لله ما في سموات والارض څنډي پاتېږي، او که اول لام هم حذف کړه سي "له" پاتېږي وقال الله تعالی "له ملک السموات والارض، او که لام ثاني هم حذف کړه سي "هٔ" پاتېږي وهو ضمیر راجع الیه تعالی، قال الله تعالی هو الله الذي لا اله الا هو.

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ

**پوه سه**: چي دا جمله خبر د "الله" ده والمعنی لا مستحق للعبادة الا ذاته تعالی وتقدس وان کان الالهة بالباطل کثیرة.

اَلْحَیُّ

**پوه سه**: چي "حي" هغه ذات ته وایي چي ده ته صحیح وي نسبت د علم او قدرت او سمع او بصر او اراده، نو موږ انسانانو ته که څه هم نسبت د کمالاتو صحیح دی لکن نسبت په درجه کي د امکان او زوال دی، او خدای ﷻ ته چي د صفت نسبت صحیح وي هغه په درجه کي د وجوب دی او قدم دی یعني ثابت له تعالی ازلا و ابدا لامتناع کونه تعالی محلا للحوادث، نو حیوة هغه صفت د خدای ﷻ دی چي مبداء د ټولو صفاتو د کمال دی.

**پوه سه**: چي لفظ د "الحي" خبر ثاني دی، حجة الاسلام ابو حامد محمد الغزالي قدس سره په شرح کي د اسماء الحسنی د "حي" داسي ترجمه کړې ده، الحي هو الفعال الدراک، حتی چي هغه شی چي فعل او ادراک اصلا نه لري هغه میت حقیقي دی، او کمه درجه د ادراک داده چي مدرک به خپل ځان پېژني، نو هر شی چي خپل ځان نه پېژني هغه جماد دی او میت دی، ثم قال فالحي الکامل المطلق هو الذي تندرج جمیع المدرکات تحت ادارکه، وجمیع الموجودات تحت فعله وذالک هو الله تعالی مجده فهو الحي المطلق، انتهی کلامه الشریف مع ترجمة بعض عباراته الشریفة.



Scanned by CamScanner

# القیومُ

**یوه سه**: چي عمرو بن مسعود ﷺ د "قیوم" په ځای کي "القیام" وایي او علقمه "القیم" وایي لکن دا دري سره لغت په یوه معنی دي. قاضي بیضاوي وایي چي د قیوم وزن فیعول دی من قام بالامر اذا حفظه. نو معنا د قیوم دائم القیام په تدبیر کي د مخلوق او په حفظ کي دده‌وئ، نو اصل د قیوم قیووم و، په قانون د زرادي واو ویا بهم آمدند نخستین ایشان ساکن بود واو را بیا بدل کردندویا را در یا ادغام نمودند قیوم شد.

**یوه سه**: چي بعض علماء وایي چي الحي القیوم اسم اعظم دی، او دوئ وایي چي عیسیٰ ﷺ چي به مړي ژوندي کول دغه الحي القیوم به یې وایه. او دوئ وایي چي د کښتی سپاره په دریاب کي چي له غرقه وېرېږي هم دغه الحي دي په کثرت سره وایي. د امیر المؤمنین حضرت علي ﷺ څخه روایت دی چي په ورځ د بدر زه ورغلم او کتل مي چي علیه الصلوة والسلام څه کوي او څه وایي، نو دی پر سجده پروت و او یاحي یا قیوم یې وایه، بیا خو واره زه ورغلم آنحضرت ﷺ پر هغه حالت او پر هغه وینا و.

**درویش وایي**: چي بعض علماؤ ته دا تردد په زړه کي پیدا کېږي چي اسم اعظم خو یو نوم د خدای ﷻ دی او الحي القیوم خو دوه نومان دي. او بل دا چي اسم اعظم خو د نهه نوي (۹۹) نومان څخه د خدای ﷻ علحده نوم دی. او صاحب د روح البیان یو تصوفي ډېر مشکل جواب ورکړی چي تر فهم د عوامو بلکه تر فهم د علماؤ د ظاهر هم لوړ دی، نو پ نه راوړو کي د هغه خواب معذرت غواړم. او د اذهانو سره د اوساط الناس موافق خواب دادی چي له اسم اعظم څخه مراد دلته هغه مشهوره معنی د اسم اعظم چي خلګ یې په تلاش کي دي نه دی بلکه مراد دادی چي الحي القیوم په اجابت کي د دعاء او په حصول کي د حاجت، او په دفع د بلایا وو تېر هر هدف دی فلاینافي ذالک تعدد الاسمین المبارکین ولاکونهما من تعداد الاسماء الحسنی التي هي (۹۹).



Scanned by CamScanner

# لَا تَأْخُذُهٗ سِنَةٌ وَّلَا نَوْمٌ

او نه نسي خداى ﷻ پينكى او نه خوب

**يوه سه**: چې "سنة" مستني د حواسو ظاهره تر خوب دمخه يعني نه بكلخته وېښ او نه بيده، نو چونكه سنة تر خوب په وجود كې دمخه وه نو ځكه يې په عبارت كې تر نوم دمخه ذكر كړې، نو هغه سوال نه پيدا كيږي چې مبالغه ددې تقاضا كوي چې نوم يې مخ نه كړى واى، يعني چې خداى ﷻ ته نوم نسته حتى چې سنة هم نسته، او نوم د طبيبانو او حكماوُ په نيز حالة تعرض الحيوان من استرخا واعضاء الدماغ من رطوبات الابخرة المتصاعدة بحيث يعطل الحواس الظاهرة عن الاحساس مطلقا.

**درويش وايي**: چې مفسرين وايي چې دا صفت سلبي د خداى ﷻ دى چې تشبيه د خداى ﷻ له مخلوقه سره نفي كوي.

**فائده**: د ابو يزيد البسطامي سيد طائفة الصوفية قدس سره څخه چا پوښتنه د اسم اعظم وكړه، ده ورته وويل چې اسم اعظم لره حد معين نسته لكن چې زړه فارغه كړې له غير څخه د خداى ﷻ او وحدانيت ته د خداى ﷻ مراقب سي نو په هر نامه چې بولې هغه اسم اعظم دى يعني په تحصيل د مراداتو او انجاح المقاصد كې او په دفع البلايا كې انتهى.

**فائده**: روح البيان له كشاف څخه نقل كړى دى چې موسى ﷺ يوه شپه بيده و، په خوب كې يې ملكې وليدلې، نو موسى ﷺ ددوئ څخه پوښتنه وكړه چې خداى پاک بيديږي؟ نو ملكو ته خداى ﷻ وحي وكړې چې موسى راويښ كړئ بيا چې دى بيده سي بيا يې فورا بيرته راويښ كړئ تر درې واره پورې يعني چې ښه د خوب نشه پكښې وي بيا په يوه لاس كې هم د اوبو ډک بوتل وركړئ او په بل لاس كې هم، ورته ووايئ چې اوس نو بېغمه بيده سه، نو موسى ﷺ چې په درياب كې د خوب غرق سو بوتلان يې دواړه له لاسه ايله سوه او مات سوه، نو وروسته وموسى ﷺ ته خداى ﷻ وحي وكړې چې ما پخپل قدرت سره

اسمانونه او مځکې ساتلي دي، نو که ماته خوب راسي یا نعاس، نو اسمانونه او مځکې به دواړه ایله سي او دنیا به خرابه سي، قال رسول اللهﷺ ان الله لاینام ولا ینبغي ان ینام آه، ابن الملکؒ وایي چي په لا ینبغي کي اشاره وده ته ده چي خوب پر خدایﷻ محال دی عقلا او نقلا لانه عجز وهو محال علیه تعالی، لکن خوب د بندګانو د خدایﷻ له خوا یو فضل دی چي په خوب سره استراحت د قوی ظاهره او باطنه وو پیدا کېږي، لکن دونده خوب نو هم نه دی پکار چي مانع د تهجد د لمانځه وګرځي اقتداءً برسول اللهﷺ واصحابهؓ کماقال الله خطابا لرسوله ومن اللیل فتهجدبه الآیة وقال في بیان حال اصحابهؓ کانوا قلیلا من اللیل مایهجعون، سید الطائفة ابو یزید بسطاميؒ وایي ماته هیڅ شی نه دی حاصل سوی یعني من الفیوضات والبرکات الا بعد ماجعلت اللیالي ایاما، یعني ما له شپو څخه ورځې جوړې کړې یعني ټوله شپه به بیداره او په طاعت او ذکر الهي به اخته وم.

سعدي وایي

سرانګه ببالین نهد هوشمند          که خوابش بقهر اورد درکمند

یعني چي خوب یې ببخي مجبوره نه کړي سر پر بالښت نه ایږدي هوښیار سړی.

**حکایت:** د یوه شیخ د دوو شاګردانو اختلاف سو، یوه ویل خوب ښه دی، ولي چي په حالت کي د خوب سړی له ډېرو ګنهو خلاص وي لکه غیبت، بهتان، دروغ، زنا، لواطت وغیرها، او بل ویل چي د شپې بیداري ښه ده ولي چي سړی په بیداری کي د خدایﷻ په طاعت او ذکر او راز ونیاز اخته وي، نو خپل شیخ محکم کړی، نو شیخ وهغه مرید ته چي د شپې بیداري ته یې تفضیل ورکاوه چي ستا لپاره ژوند ښه دی او هغه بل ته یې وویل چي ستا لپاره مرګ ښه دی.

**درویش وایي،** چي خواب د شیخ په لویه کنایه دی فتامل فیه.

**حکایت:** یو سړي مېنځه رانیولنه، نو چي ماښام سو مېنځې ته یې وویل چي خای اوار کړه چي بیده سو، نو مېنځې ورته وویل چي ته ښښ یې او زه

بیده سم نه راضي کېږي، مولا ورته وويل يا، نو مينځي ورته وويل چي ته مولی لري هغه ورته وويل هو خدایﷻ زما مولی دی، مينځي ورته وويل چي ستا مولی بيد پري، هغه ورته وويل چي يا نه بيدېږي، مينځي ورته وويل چي ته نه شرمېږې چي مولی دې ويښ وي او ته بيده يې.

**درويش وايي:** چي مناسب د ويلا سره د مينځي هغه بيتونه د بلالؓ دي چي په وخت کي د سدس اخير د شپې به يې ويله

يا ذا الذي استغرق في نومه مانوم عبد ربه لاينام

اهل تقول اني مذنب مشتغل الليل بطيب النيام

## لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ؕ

خدایﷻ لره دي يعني خلقاً وملکاً وعبيداً هغه شيان چي په اسمانو کي دي لکه لمر، سپوږمی، او که نور ستوري دي او که مځکي دي او ځنتونه وغيرها او که په مځکه کي دي من الحيوانات والنباتات والمعدنيات وغيرها ممايعلمها الله اذ لا يعلم جنود ربک الا هو.

**پوه سه:** چي په دې جمله کي اثبات د قيوميت د خدایﷻ او د معبوديت د خدایﷻ او د وحدانيت د خدایﷻ دی، ولي چي مافي السموات وما في الارض ټول له د خدایﷻ مخلوق او مملوک دي نو بل څوک دده سره شراکت نه لري، اذ لو کان فيهما الهة الا الله لفسدتا فهو المستحق للعبادة او هيڅ څوک استحقاق د عبادت نه لري فلا اله الا هو ولا معبود سواه، نو مشرکان ولي د خدایﷻ سره بتان په عبادت کي شريکوي فلم لايقرون بلا اله الا الله.

**پوه سه:** چي مافي السموات او معطوف دده مبتداء ده، او "له" خبر دي مقدم د تقديم لپاره د اختصاص دی.

## مَنْ ذَا الَّذِیْ یَشْفَعُ عِنْدَهٗۤ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ؕ

څوک دی چي شفاعت دې وکړي په نيز د خدایﷻ يعني په ورځ د قيامت ببله اذنه د خدایﷻ دا رد دی د هغه قول د مشرکانو چي په باره کي د بتانو

به یې ویل هؤلاء شفعائنا یعني علی تقدیر البعث بعد الموت.

**بوه سه:** چې استفهام انکار دی یعني هیڅ څوک شفاعت نه سي کولای بېله اجازې د خدای ﷻ.

# يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهِ إِلَّا بِمَا شَاءَ

او خدای ﷻ خبر دی په هغه شي چې په مخ دی من امور الدنیا، او هغه شی چې تر دوئ وروسته دی من امور الآخرة، او یا مراد له "مابین ایدیهم" څخه امور د آخرت دي، ولې چې د خلگو واخرت ته مخ دی، او له "ماخلفهم" څخه امور د دنیا دي ولې دنیا ددوئ تر شا پاتېږي، او یا مراد له "مابین ایدیهم څخه "مافعلوه من خیر او شر وقدموه، او له "ماخلفهم" څخه مراد مایفعلونه بعد ذالک.

**بوه سه:** چې دا جلمه "بل" استیناف دی لپاره د بیان د احاطه د علم د خدای ﷻ په احوالو سره د مخلوق چې یو له هغه څخه علم د خدای ﷻ بمن یستحق الشفاعة ومن یستحقه، او احاطه نه لري یعني الملائکة والانبیاء علیهم السلام وغیرهم پر یوه شي د معلوماتو د خدای ﷻ مگر نه په هغه شي چې د خدای ﷻ رضا سي، لکه ملائکة ورته بې سر د خلافت د آدم ﷺ وروښو بعد ان قالوا اتجعل فیها من یفسد فیها الی آخر الآیة، او آدم اسماء د ټولو شیانو بې توسطه د ملکي وروښول وعلم آدم الاسماء کلها الآیة. کمامر تحقیقه في سورة البقرة، او انبیاء علیهم السلام په وحي سره بعض شیان ورښیي، او علماؤ ته د امت مرحومه بعض معلومات خپل په توسط د علیه الصلوة والسلام ورښیي الی غیر ذالک من الالهامات الصادقة والرؤیاء الصالحة.

# وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ

او فراخه کرسي د خدای ﷻ ټولو اسمانو او مځکې ته.

**بوه سه:** چې کرسي په لغت عربي کې چوکۍ ته وایي چې د لرگو یا ېېږو څخه

جوړه وي او تر قدر د ناستي د سړي زياته نه وي، نو په دې معنا دا آيت صرف تمثيل مجرد دی د عظمت د شان والا فلا كرسي على الحقيقة ولا قاعدة، هذا ماقاله العلامة البرسوي رحمه الله والمحقق البيضاوي والعلامة الآلوسي رحمه الله.

**درويش وايي:** چې په مراد کې د کرسي څخه اختلاف دی په صحابه رضي الله عنهم او تابعينو کې (۱) سعيد بن جبير له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی چې مراد له کرسي څخه علم د خدای ﷻ دی، واليه ذهب مجاهد رحمه الله (۲) مراد له کرسي څخه ملک او سلطنت د خدای ﷻ دی والعرب تسمي الملک القديم کرسيا.

مظهري دا دوه قوله رد کړي دي، ولې چې دمخه خدای ﷻ ويل ﴿له مافي السموات وما في الارض يعلم مابين ايديهم وما خلفهم﴾ نو وروسته فراخي د علم او ملک د خدای ﷻ بيانول مستدرک دی.

**درويش وايي:** چې مظهري اراده علم د کرسي څخه وابن عباس رضي الله عنهما ته منسوبه کړه چې ابن عباس رضي الله عنهما په متفقه ډول رئيس المفسرين دی، او وروسته دې سوال د استدراک پر کوي.

**درويش وايي:** چې دا استدراک د دواړو قولو مدفوع دی، ولې چې مقصود په دې آيت کې فراخي د علم الهي او ملک الهي ده بعبارة اخرى تاكيداً فلا اعتراض عليهما ومثل ذالک کثير في کلام العرب بل في القرآن العزيز واعترف المظهري بذالک ايضا في الجزء العاشر من تفسيره في تفسير سورة النازعات في تفسير قوله تعالى ﴿فالسبقت سبقا﴾ فطالع هناک (۳) حسن بصري رحمه الله وايي چې کرسي عين عرش دی (۴) ابو هريره رضي الله عنه وايي چې کرسي موضوع امام العرش ومعنى قوله تعالى ﴿وسبع کرسيه السموات والارض﴾ ان سعة الکرسي مثل سعة السموات والارض.

**درويش وايي:** چې په باره کې د کرسي روايات آخر هم منقول دي چې د ټولو راوړه او رد او قبول به يې سامعانو ته ډېر ګران تمام سي.

**درويش وايي:** چې د هيڅ آيت بايد داسې ترجمه ونه کړل سي چې خلاف له مذهب څخه د اهل السنت والجماعة وي، يعني خدای پاک جسم دی او يا پر

عرش یې مکان دی او یا پر کرسي ناست دی الی غیر ذالک، دداسې آیتو تفویض د علم دې وخدای ﷻ ته وکړه سي لکه د متقدمینو چې مذهب دی په متشابهاتو قرآنیه او حدیثیه وو کې، وهذا الطریق اسلم، او یا یې تاویل وکړه سي په تاویلاتو صحیحه وو سره کما هو مذهب المتاخرین ﷺ.

**درویش وایي**: چې محقق بیضاوي په تائید کې دا آیت یعني "وسع کرسیه" آه تصویر او تمثیل دی د عظمت د خدای ﷻ په دې آیت سره کړی دی "وما قدروا الله حق قدره والارض جمیعا قبضته یوم القیامة والسموات مطویات بیمینه آه" فتامل فیه وفي المثنوي المعنوي

گفت پیغمبر که حق فرموده است من نه گنجم هیچ در بالا وپست
در زمین و آسمان و عرش نیز من نه گنجم این یقین دان ای عزیز
در دل مؤمن به گنجم ای عجب گر مرا جوئی د رآن دلها طلب
خود بزرگی عرش باشد بس مدید لیک صورت چیست چون معنی رسید

**درویش وایي**: په دې ابیاتو کې د جلال الدین الرومي رحمه الله هم اشاره بلکه تصریح په دې سره ده چې خدای ﷻ لره مکان نسته وهذا یؤید قول البیضاوي رحمه الله.

**درویش وایي**: چې صاحب د روح المعاني وایي والکلام مساق علی سبیل التمثیل لعظمته تعالی شانه وسعة سلطانه واحاطة علمه تعالی بالاشیاء قاطبة ففي الکلام استعارة تمثیلیة ولیس ثمه کرسي یعني بالمعنی الذي یقعد علیه القاعد ولا قاعد ولا قعود وهذا الذي اختاره الجم الغفیر من الخلف ای المتاخرین فرارا عن توهم التجسیم له تعالی.

**درویش وایي**: چې وروسته صاحب د روح المعاني هغه احادیث په تفصیل راوړي دي چې په هغو کې ذکر د اعظاؤ لکه قدم وغیره وخدای ﷻ ته سته. ثم قال بعد اسطر واکثر السلف الصالح جعلوا ذالک من المتشابه الذي لایحیطون به علما وفوضوا علمه الی الله تعالی مع القول بغایة التنزیه والتقدیس له تعالی شانه، یعني من امارات الحدوث والجسمیة والمکان


Scanned by CamScanner

والجهة وحقيقة القدم واليد والوجه الى غير ذالك.

**درويش وايي:** چي دا قول د آلوسي موافق دی د قول سره د بيضاوي او د قول سره د مولوي معنوي، او چي درويش دمخه وويل هغه هم ددې اقوالو سره موافق دی.

**درويش وايي:** چي يوه طائفه ستا چي مجسمه يې بولي هغه دغه ټوله آيتونه او احاديث نبويه محمول پر ظاهره معنا بولي، او هيڅ تاويل او مجاز او تشابه نه پکښي وايي. يعني خدای ﷻ لره مخ وايي او خدای ﷻ لره لاسونه وايي او خدای ﷻ لره پښي وايي او د خدای ﷻ مکان عرش بولي، او وايي چي خدای ﷻ پښي پر کرسی ايښي دي الى غير ذالک ومنهم الفرقة المعهودة في العرب والعجم.

**درويش وايي:** ابطال د قول د د مجسمه وو، په شرح العقائد او شرح المقاصد للعلامة التفتازاني رحمه الله او په مواقف د قاضي عضد الملة والدين او په شرح کي د سيد جرجاني رحمه الله پر مواقف باندي مطالعه کړه سي.

**درويش وايي:** چي ډېر احتياط پکار دی چي د مجسمه چي دا اوس هم ډېر په پاکستان کي په يوه نامه او بل نامه شهرت لري خصوصا په عربي ممالکو کي په قال الله وقال الرسول خطا نه وزئ، او له مذاهب اربعه وو څخه تجاوز ونه کړئ. او عوامو ته پکار دی چي خپل ساده لوح کوچنيان په داسي مدارسو کي داخل نه کړي چي څه مده وروسته پلار او مور ته او نيکه ګانو ته مشرکان وايي، ومن الله التوفيق.

وَلَا يَئُودُهُ حِفْظُهُمَا ۚ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ ﴿٢٥٥﴾

او نه درنېږي پر خدای ﷻ باندي ساتنه د اسمانو او مځکو "من آده الشئ وياوده اذا اثقله"

**يوه سه:** چي وجه د عدم ثقل د حفاظت د اسمانو او مځکو پر خدای ﷻ باندي داده چي قليل او کثير، او قريب وبعيد د خدای ﷻ وقدرت ته برابر دي وکيف يثقله وانما امره اذا اراد شيئا ان يقول له کن فيکون او خدای ﷻ عالي



Scanned by CamScanner

دی د ند او د ضد څخه، او عظیم المرتبه دی چي هر شی وذات ته دده حقیر او ذلیل دی اذ لا یشبهه شیئ ولا یماثله لا في الذات ولا في الصفات الا في مجرد اللفظ.

## لَآ اِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ

او مجبوره کول نسته په دین کي یعني پر اسلام باندي.

**پوه سه:** چي بعض مفسرین وایي چي دا آیت په شان کي د مجوسیانو او یهودیانو او نصاراوو نازل سوی دی، یعني ددغو درو ډلو څخه جزیه قبلول کېږي، او دوئ داسي نه دي لکه مشرکین د عربو چي جزیه نه څخدي قبلول کېږي بل ان اسلموا فبها والا قتلوا. قال الله تعالی في حقهم تقاتلونهم او یسلمون.

**درویش وایي:** چي پر دې تفسیر دا جمله خبریه ده په معنی د نهي ده یعني لاتجبروهم علی الاسلام ان بذلوا الجزیة. او صاحب د روح المعاني وایي چي دین په معنی د ایمان دی، نو معنی د آیت داده چي اکراه پر ایمان نسته یعني متصوره نه ده، ولي چي د اکراه معنی خو داده چي پر سړي الزام او تکلیف د داسي فعل وکړي چي هغه سړی په راضي نه وي او دا خو په افعالو کي د جوارحو کېدای سي مثلا د یو سړي لمونځ نه وي خوښ په زوره یې پر لمانځه ودروي وهکذا الوضوء وغیره او ایمان خو عقیده د زړه ده او انقیاد ده د باطن وهو لایوجد بالاکراه.

**درویش وایي:** چي پر دې تفسیر لااکراه في الدین جمله خبریه ده، او پر خبریت باقي ده یعني لایتصور الاکراه في الایمان، او بعض مفسرین وایي چي مقصود په ایجاب کي د ایمان او د نورو عباداتو خو ابتلاء ده کما قال الله تعالی "لیبلوکم ایکم احسن عملا" والمعتبر في الایمان والعبادات هو الاخلاص کما قال الله تعالی واعبدوا الله مخلصین له الدین ولا اکراه والاجبار نیا في الاخلاص والابتلاء فهذه الجملة خبریة محضة. او بعض مفسرین وایي چي څه وخت چي پر بني النضیر چي د یهودیانو یوه قبیله وه د علیه السلام له خوا حکم د جلاوطنی صادر سو، نو په دغو یهودیانو کي د بعضو انصارو دوه زامن هم شامل یعني د یهودیت په دین کي وه، نو هغه انصاري چي مسلمان و علیه الصلوة والسلام ته یې وویل چي مور، خپل زامن نه پرېږدو چي



Scanned by CamScanner

د یهودیانو سره فراره سي یعني موږ به پر اسلام مجبوره کوو، نو دا ایت نازل سو "لاکراه في الدين" نو علیه السلام وهغه انصاري ته وویل چي ته دي زامنو ته اختیار ورکړه چي تاسي مختاره کړئ فهما منکم وان اختاروا اليهود فاجلوهم معهم

قَدْ تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ ۚ

په تحقیق سره معلوم سو رشد یعني هدایت د غي او ضلال څخه، معنی داده چي اوس په دلائل عقلیه وو سره او په معجزاتو واضحه وو سره د علیه الصلوة والسلام دا معلومه سوه چي ایمان او اسلام هدایت دی چي سړی وسعاداتو دینیه او اخرویه وو ابدیه وو ته رسوي، او کفر غي او ضلال دی چي سړی د بدبختی سره د دنیا او آخرت یعني النار المؤبده مخامخ کوي، نو حجة خدای ﷻ پر خلګو تام سو، او دوئ لره نور هیڅ عذر نه دی پاته یعتذرون به یوم القیامة فلاحاجة الی اکراههم علی الایمان.

**درویش وایي**: چي دا جمله په معنا کي دلیل دی پر دې قول د خدای ﷻ "لااکراه في الدين"

**درویش وایي**: چي دا تفسیر موافق د قول سره د روح المعاني، روح البیان، مظهري او بغوي وغیرهم من المفسرین رحمهم الله تعالی اجمعین.

فَمَنْ يَّكْفُرْ بِالطَّاغُوْتِ وَيُؤْمِنْ بِاللّٰهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى ۚ

نو وروسته تر وضوح د رشد له غي څخه که څوک کفر وکړي په طاغوت سره یعني د طاغوت په قول ونه کړي او ایمان راوړي پر خدای ﷻ یعني "لا اله الا الله" نو په تحقیق سره ده لاس ټینګ کړی پ دستکي او رسی محکمي سره چي کلمه د توحید ده.

**بوه سه**: چي مراد له طاغوت څخه شیطان دی په قول د عمر بن الخطاب او د حسین بن علي ؓ، او د مجاهد، قتاده، سعید بن جبیر او عکرمه رض مراد خندي کاهن اخلي، او په قول د ابي العالیه مراد خندي ساحر دی، او مالک

بن انس مراد څخه دي كل ما عبد من دون الله من الانس كفرعون ونمرود او الجن او الشياطين لكن يشرطون ان يكون ذالک المعبود مذموما عند الله فيخرج منه عيسى وان عبده النصارى، فلا يرد بقوله تعالى "انتم وما تعبدون حطب جهنم" لكن اولى داده چي طاغوت ټولو مايطغى ته شامل دى، والتخصيص في تلک الروايات على سبيل التمثيل دون الحصر

**فائده**: طاغوت صيغه د مبالغه ده كالجبروت والملكوت لكن اختلاف په دې كې دى بعض وايي چي طاغوت مصدر دى نو څكه مفرد او مذكر مستعملېږي لكه نور مصادر واليه ذهب ابو علي الفارسي، او بعض وايي چي اسم جنس مفرد، نو څكه مذكر او مفرد راځي واليه ذهب سيبويه، او مبرد وايي چي جمع د طاغي ده.

**فائده**: طاغوت مشتق د طغى يطغي څخه او يا د طغى يطغوا څخه چي مصدر ده، اول طغيان دى او مصدر د ثاني طغوان دى، نو اصل د طغوت پر اول تقدير طغيوت وو او پر دوهم تقدير يې اصل طغووت وو، نو لام يې وځاى ته عين يو وي، او عين كلمه يې وروسته كړى، نو حرف علت متحرک سو او ماقبل يې مفتوح نو حرف علت يې چي يا او واو دى په الف بدل كړه كماهو القانون الصرفي، فالوزن القبلي فعلوت والوزن الفعلي الموجود فلعوت

**فائده**: خداى پاک ذكر د كفر بالطاغوت مقدم كړى تر ذكر د ايمان بالله لانهم قالوا التخلية بالخا متقدمة على التحلية بالحاء.

**درويش وايي**: چي دا تحقيق د لفظ د طاغوت صرف د طالبانو لپاره دى نو څوک دې اعتراض نه كوي چي عوام په دې تحقيق څخه پوهېږي، ولي تفسير د درويش خو پښتو دى لكن مختص يوازې په عوامو پورې نه دى كما اعتذرت بذالک العذر كرات ومرات.

**پوه سه**: چي سين د استفعال لپاره د طلب نه دى كما يفهم من كلام المظهري، حيث قال اى طلب التمسک بلكه سين لپاره د تاكيد د تمسک دى كما يفهم من كلام روح البيان حيث قال اى بالغ في التمسک



Scanned by CamScanner

**فائده**: وثقی" مونث دی د اوثق او اسم تفضیل دی فمعنی د وثقی المستحکمة غایة الاستحکام، نو دا قول د باري تعالی مبني دی پر تشبیه د معقول په محسوس سره یعني شبه الایمان والاسلام والدلائل العقلیة والنقلیة والمعجزات الباهرة بالعروة المحسوسة للجسم الکبیر یتعلق بها من یرفع ذالک الجسم الثقیل فکذالک ینبغي لطالب الحق ان یتمسک بتلک الدلائل حتی یصل الی انوار الحق المبین

لَا انْفِصَامَ لَهَا وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٥٦﴾

ای لا انقطاع لها وهذه جملة مستانفة لبیان قوة دلائل الحق بحیث لایعتریها شیئ من الشکوک والشبه او خدای ﷻ اوریدونکی ستاسي د خبرو او عالم ستاسي په احوالو ظاهره او باطنه وو سره دی.

**فائده**: مجاهد رحمه الله وایي چي مراد د عروة وثقی ځخه ایمان بالله ورسوله دی، او انس بن مالک رضی الله عنه وایي چي مراد خندي قرآن دی، او ابن عباس رضی الله عنه وایي چي مراد خندي اخلاص دی، المعبر عنه بالاحسان في الحدیث النبوي وهو ان تعبد الله کانک تراه فان لم تکن تراه فانه یراک. کذا فسره النبي ﷺ في الحدیث الطویل الذي، رواه البخاري ومسلم

**تحقیق بیاني**: احتمال لري چي په "عروة" کي دي استعاره تصریحیه وي، او "استمسک" دي ترشیح د استعاره مذکوره وي، او دا هم احتمال سته چي "استمسک" دي جلا استعاره تبعیه وي، او بعض محققین وایي چي بنه داده چي دا آیت دي استعاره تمثیله وي بان یشبه الهیئة العقلیة المنتزعة من التمسک بالحبل المحکم المامون من نقطاعه من غیر تعرض للمجاز في المفردات کذا قال علامة البغداد الآلوسي رحمه الله.

**فائده**: په اخیر آیت یعني وهو السمیع العلیم" کي باعثه کول دي د خلگو پر ایمان باندي، او منع کول دي له کفر او نفاق ځخه فهي مشتمل علی الوعد والبشارة للمؤمنین والوعید والتخویف للکافرین والمنافقین.



Scanned by CamScanner

## اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

خدای ﷻ محب او دوست دی د هغو کسانو چي خدای ﷻ یې اراده د ایمان لري

## يُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ

دوئ باسي پخپل هدایت او توفیق سره د تاریکیو څخه د کفر او نفاق او د جهل او اتباع الشهوات الزائقة النفسية والوساوس الشيطانية المؤدية الى الكفر والطغيان ونور ته د ایمان.

**درویش وایي:** چي چونکه انواع د کفر ډیري وې من اليهودية والنصرانية والشرک والمجوسية والدهرية وغيرها نو ځکه یې ظلمات په صیغه د جمع راوړی، او ایمان چونکه نوع واحدة ده وهو التبرى عن الكل عبر عنه بالمفرد.

## وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَوْلِيٰٓـُٔهُمُ الطَّاغُوْتُ يُخْرِجُوْنَهُمْ مِّنَ النُّوْرِ اِلَى الظُّلُمٰتِ

او هغه کسان چي کافران دي دوستان ددوئ شیطانان دي که د جن او که د انس مثلا د مشرکین د مکې لپاره طاغوت ابو جهل بن هشام امیه بن خلف وغیرهما من طغات مکه، او د یهودو لپاره کعب بن الاشرف و حیي بن الاخطب وغیرهما

**درویش وایي:** چي په هره زمانه او په هر قوم کي دغه طواغیت سته چي په لباس کي د دوستانو خانونه معرفي کوي او په حقیقت کي دښمنان دي، او دغه طاغوتیت دوئ باسي له نوره څخه د ایمان وتاریکیو ته ته د انواعو د کفر او طغیان او شکوک او شبهاتو ته.

**پوښتنه:** دغو کافرانو خو نور د ایمان نه درلودئ حتی چي دا وویل سي چي طواغیتو دوئ له هغه نور ایماني څخه وظلمات ته د کفر وه ایستله؟

**ځواب:** په حدیث کي د بخاري او مسلم راغلي دي آنحضرت ﷺ وویل "ما من مولود الا يولد على فطرة الاسلام، اى استعداد قبول الدين المبين، فالمراد بالنور في الآية هو هذا النور والايمان الفطري "فابواه يهودانه او ينصرانه او يمجسانه"



Scanned by CamScanner

يعني مور او پلار يې سبب د يهوديت او يا نصرانيت او يا مجوسيت وگرځي، يعني په تعليم او تربيه او باعثه کول پر دغو اديانو باطله وو. نو د مولود مذکور لپاره مور او پلار طواغيت دي

أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ

دغه کسان دي صاحبان د اور د جهنم يعني يوم القيامة، او دوئ به په هغه اور کې همېشه او ابد الآباد وي

**پوښتنه:** تر "يخرجهم من الظلمات الى النور" وروسته خدای ﷻ داسي نه وويل "اولئک اصحاب الجنة هم فيها خالدون" د څه حکمت لپاره؟

**ځواب:** حکمت الهي تعظيم دی د حال د مؤمنانو په دې معنی چې بيان لفظي په هغو نعمتو سره چې خدای ﷻ دوئ ته په دار الثواب جنت کې اراسته او مهيا کړي دي ايفا نه سي کولای لان النعم الالهية في دار الثواب الجنة مما لاعين رئت، ولا اذن سمعت ولا خطر على قلب بشر، كما ورد في الحديث النبوي ﷺ فكيف يفى بها البيعان اللفظي

**پوښتنه:** د کفارو لپاره هغه عذابونه چې خدای ﷻ په دار البوار النار کې اراسته کړي هم بيان لفظي احاطه نسي پر کولای؟

**ځواب:** هو لکن النکات تطلب لمالم يقل لا لما قال فتدبر وهذا معنى قولهم النكتة للفار لا للقار.

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِي حَاجَّ إِبْرَاهِيمَ فِي رَبِّهِ

آيا ستا علم نه دی رسېدلی و هغه سړي ته چې ده دليل وايه د ابراهيم سره په باره کې د رب د ابراهيم.

**پوه سه:** چې دا سړی نمرود يې نوم و او اول سړی دی چې تاج يې پر سر ايښی دی او فساد في الارض يې شروع کړی دی، حتی د ډېر حماقت څخه يې دعوه د خدايي کړې وه. نو استفهام لپاره د تعجب د خلګو دی د نمرود وحماقت او خرګري چې څرنګه سره د علمه پر احوالو خپل ده دعوه د ربوبيت کوله.

**یوه سه**: چې دلیل د نمرود د ابراهیم ﷺ سره خو حجت نه و بلکه جدال و، لکن چونکه ده خبیث دا خپلې خبرې د حجت په ډول بللې نو ځکه خدای ﷻ تعبیر په حاج وکړی، نمرود زوی د کنعان و او هغه زوی د سام و او هغه زوی د نوح ﷺ و.

أَنْ آتَاهُ اللَّهُ الْمُلْكَ

یعني له دې سببه چې خدای ﷻ وده ته بادشاهي ورکړې وه، نو لام د تعلیل ورسره مقدر دی یعني تکبر د بادشاهي یې سبب د دعوی د ربوبیت سره د نمرود، مع ان الواجب علیه شکر ذالک الایتاء، کما یقال عادیتني لاني احسنت الیک.

**یوه سه**: چې بادشاهي د ټولې کرې د مځکې څلورو کسو کړې ده، دوه مسلمانان سلیمان ﷺ او ذو القرنین، او دوه کافران نمرود او بخت النصر البابلي علی مانطق به القرآن والاحادیث النبویة وکتب التواریخ الاسلامیة.

**فائده**: د بخت نصر اصلي نوم شداد بن عاد دی چې په بعض صحراو کې د عدن د ارم ښار جوړ کړی و.

**مسئله**: معتزله بادشاهي د کافر پر مسلمانانو ممتنع بولي بناء علی مذهبهم الباطل چې اصلح د بندګانو پر خدای ﷻ واجبه بولي نو تسلیط د کافرانو پر مسلمانانو خو اصلح د حال د مؤمنانو نه دی.

**والجواب**: ان ایتاء الملک للکافر امتحان لذالک الکافر وامتحان لعباده المؤمنین ثم هذه الآیة رد صریح لمذهبهم الباطل لان نمرود کان اشد کافر واقبح الکافرین مع انه تعالی اعطاه الملک علی المسلمین والکافرین.

**یوه سه**: چې د وجوب الاصلح للعبد پر خدای ﷻ باندې ډېر مفاسد لرې په شرح العقائد للعلامة التفتازاني رحمه الله کې وایي چې ابو علي الجبائي چې عمه شیخ د معتزله وو او شیخ ابو الحسن الاشعري دده شاګرد یوه ورځ جبائي مسئله د وجوب د اصلح پر خدای ﷻ بیانوله، چې شیخ اشعري چې په ډله کې د شاګردانو ناست د جبائي څخه یې پوښتنه وکړه چې درې ورونه وه، یو مسلمان و او پر اسلام مړ سو، او یو په کوچنې والي نابالغ مړ سو، او بل کافر و او پر کفر مړ سو، نو

ددې درود ورونو خاى به چيرې وي په آخرت کې. جبايي ورته وويل چې مسلمان به په جنت کې وي، او کوچنی ورور به يې خادم د جنتيانو وي، بلا ثواب ولاعقاب. نو اشعري ورته وويل که دې کوچني ورور خداى ﷻ ته وويل چې زما لپاره خو اصلح داوه چې زه دې بالغ کړى وايې تاچې ما ايمان راوړى وايې، اوس به زه هم استقلالا لکه نور جنتيان په جنت کې وايې. نو خداى ﷻ به څه جواب ورکوي، جبايي ورته وويل چې خداى ﷻ به ورته ووايي چې زه په تا خبروم چې ما لوى کړى وايې ته کافر کېدې. نو اصلح تالره داوه چې په کوچنيوالي مې مړې کړې، او له دوزخ څخه مې خلاص کړې. نو اشعري ورته وويل که هغه ورور چې پر کفر مړ سوى وو خداى ﷻ ته وويل چې په ما خو هم خبري وې چې زه کافر کېږم. نو زه دې ولې په کوچنيوالي نه وژلم زما لپاره خو اصلح د کوچني والي مرگ و چې له دوزخ څخه خو به اوس خلاص واى خداى ﷻ به څه جواب ورکوي. نو جبايي حيران او لا جوابه پاته سو. وترک الاشعري رحمه الله مذهبه وهو امام اهل السنة من يوم ذالک الى يومنا هذا والامام الثاني لاهل السنة والجماعة هو الامام ابو منصور الماتريدي دى والتفصيل لمذهب المعتزلة و اهل السنة والجماعة في کتب العقائد کشرح العقائد وشرح المقاصد للتفتازاني وغيرهما مطالعه کړئ.

## إِذْ قَالَ إِبْرَٰهِـۧمُ رَبِّيَ ٱلَّذِى يُحْىِۦ وَيُمِيتُ

چې وويل ابراهيم يعني و نمرود ته چې نمرود وده ته وويل چې ستا رب څوک دی چې ته ما وهغه ته وربولې. زما رب هغه ذات دی چې هغه حيوت او موت پيدا کوي.

**بوه سه:** چې چونکه د حقيقت الهي وبنونه ته لار نه وه، نو ابراهيم نمرود ته د خداى ﷻ په اثارو او افعالو سره وروښوو. من الاحياء والامامة چې په عالم امکان کي دا دوه کاره مشهوره دي.

**فائده:** اذ چې ظرف دی متعلق په "حاج" پوري دی او داجمله بيان د "حاج" ده. مظهري وايي چې شايد نمرود به دهري و، چې حوادث د دنيا بېله صانع اتفاقا پيدا کېږي. او دا به يې هم عقيده وه چې ذوى العقول د ممکناتو خالق د خپلو افعالو دى



Scanned by CamScanner

لکه مذهب د معتزله وو او د روافضو چي دی، راوي وايي چي ابراهيم چي نمرود ته هغه ورانديي خبره وکړه، نو نمرود دوه کسه واجب القتل يعني چي محکوم بالقتل وه د بندي خانې څخه راوه ايستل يو يې ايله کړی او هغه بل يې قتل کړی، نو يې ابراهيم ته داسي وويل.

قَالَ اَنَا اُحْيٖ وَاُمِيْتُ ؕ

**درويش وايي**: چي پوره قصه د ابراهيم ﷺ او د نمرود چي په زړه پورې حيرت انګيزه قصه ده او ډېره طويله قصه ده په خپل ځای کې ددې تفسير به راسي ان شاء الله تعالی، دلته خدای ﷻ په مختصره توګه لږ بيان کړی دی.

**فائده**: ابراهيم چي نمرود لوی غبي او غويي وليدی چي د خلق او کسب په فرق نه پوهيږي، نو يې انتقال وبل مثال اوضح ته د صنع د خدای ﷻ وکړی چي د تلبيس د خبيث قابل نه وو.

قَالَ اِبْرٰهٖمُ فَاِنَّ اللّٰهَ يَاْتِيْ بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَاْتِ بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ

ابراهيم وويل يعني نمرود ته چي زما خدای ﷻ راتګ کوي په لمر سره، يعني را ختړوي يې د مشرق له خوا، نو که ته خدای يې ته يې د مغرب له خوا راوخيژوه.

فَبُهِتَ الَّذِيْ كَفَرَ ؕ

نو حيران سو هغه څوک چي کافر وو يعني لکه د مخه چي يو تلبيسي جواب ورکړی د هغه ورته جواب څخه په دې دليل کې عاجز پاته سو.

**درويش وايي**: چي لفظ د "بهت" که څه هم پر صيغه د مجهولي دی لکن معنی يې د معلومي ده، او "الذي کفر" يې فاعل دی.

**فائده**: صاحب د روح المعاني "بهت" پر څو قرائته راوړی دی المذکور في الآية، بهت بفتح الباء والهاء فيجوز اينکون الفعل لازما ايضا، او دا هم پر دغه قرائت احتمال د تعديه هم لري، نو فاعل يې ابراهيم دی او الذي کفر ؛ يې مفعول دی ای غلب ابراهيم علی الذي کفر واسکته عن الاحتجاج.



Scanned by CamScanner

وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِينَ ﴿۲۵۸﴾

او خدای ﷻ هدایت نه کوي وهغه قوم ته چې ظالمان یعنې کافران وي، یا ولاړي ته د احتجاج مع الانبیاء او یا ولاړي ته د قبول د حق عند رویة المعجزات عن الانبیاء، لخبث باطنهم وسوء استعدادهم

**پوه سه:** چې مظهريؒ چې مور نقل ښندي وکړي هغه خبره یې کړې وه وروسته هم په دغه صفحه کې په تفسیر کي ددې آیت "فبهت الذي کفر" یې داسي ویلي دي چې د نمرود رایه داوه چې که ابراهیم له ربه ښخه خواست وکړي خدای ﷻ به لمر د مغرب له خوا ښخه راوخېژوي، انتهی، نو عجیبه خبره داده چې نمرود چې دهري وو نو څرنګه دده رایه دا وه چې ابراهیم که خدای ته خواست آه او سره ددې چې دهریان عالم لره صانع نه وایي لکه مظهريؒ چې هم دمخه تصریح په وکړه والله اعلم بمراد عباده

**درویش وایي:** چې بعض مفسرانو په تفسیر کي ددې آیت فبهت آه او په تفسیر کي ددې آیت والله لایهدي القوم آه" یوه په زړه پورې نکته داسې بیان کړې ده چې نمرود خو یو جاهل مغرور شخص و چې دعوه د خدایي یې کړې وه نو که ده ابراهیم ته د ان الله یاتي بالشمس الآیة په جواب کې داسې ویلي وایی چې لمر د مشرق ښخه خو زه راخېژوم ستا که رب ستا هغه دې د مغرب له خوا ښخه راوخېژوي، نو یو باطل جواب خو به وایي لکه نمرود چې د ابراهیم د هغه دلیل ان ربي الذي یحي ویمیت یو باطل غلط جواب ووایه انا احي وامیت، لکن خدای ﷻ د نمرود خوله او زړه د ابراهیم د وروستني دلیل یعنې فان الله یاتي بالشمس آه واړول حتی تحیر او مبهوتیت په دریاب کې ډوب کړی چې داهم د خدای ﷻ د قدرت عظیمه دلیل دی، او په عین حال کې د ابراهیم معجزه هم ګڼل کېږي چې دونده مغرور متکبر شخصیت یې د غلط او باطل جواب ورکولو ښخه یې پر ګوډ وکړی او د شرمندګي په دریاب کې یې ډوب کړی، او د نمرود د خدایي د دعوې غلطیا وخلګوته خصوصا دده واتباعو ته تر لمر ښکاره کړه ولې چې رب باید مبهوت او لاجواب نه وي.



Scanned by CamScanner

**درویش وایي**: چي هذه نکتة عجیبة.

**پوه سه**: چي راوي د قصې د نمرود وايي چي نمرود چي سر کښېي وکړه او پسله مبهوتيت يې ابراهيم په اور کي واچاوه کماسيناتي، نو خدای ﷻ پر قوم د نمرود غوماشي مسلطي کړې، چي ددوئ غوښې به يې خوړلې او ويني به يې څښلې نو صرف هډوکي به يې پاته سوه، او نمرود پر خپل حال باقي وو اخيراً خدای جلت قدرته يوه غوماشه پر مسلطه کړه چي دده په پزه ننوتله او دده مغزونه يې خان ورساوه او کرار کرار به يې دده ماغزه خوړله، نو نمرود څلور سوه کاله هم پر دغه حالت و چي غوماشي به نبش په جګ کړی ده به هغه خای په مطرقه ټاکاوه فبقى في هذا العذاب اربع مائة سنة كما ملک اربع مائة سنة ثم مات بالعذاب المذكور، او نمرود هغه سړی وو چي مناره يې ډېره لوړه جوړه کړې وه د خدای ﷻ د جنګ لپاره، نو خدای ﷻ هغه لويه مناره د بېخه څخه پر دوی راوه نړول چي ټوله قوم دده تر لاندې سو او مړه سوه، شيخ عطار وايي

سوی او خصمی که تیر انداخته پشه کارش کفایت ساخته

وفي بعض التفاسير نقلا وقد وجدت صخرة عظيمة وعليها اسطر قديمة وهي هذه فرحک بشيئ من الدنيا دليل على بعدک من الله وسکونک على شيئ مما في يدک دليل على قلة ثقتک بالله ورجوعک الى الناس في الشدة دليل على انک لم تعرف الله، انتهى قال السعدي الشيرازي قدس سره

شنیدم که جمشید فرخ سرشت بسر چشمه برسنگی نوشت
برین چشمه چون مابسی دم زدند بر فتند چون چشم برهم زدند
گر فتیم عالم بمردی و زور ولکن نه بردیم با خود بگور
برفتند وهرکس درود آنکه کشت نماند بجز نام نیکو وزشت

# أَوْ كَالَّذِي مَرَّ عَلَىٰ قَرْيَةٍ

**درویش وایي**: چي بعض مفسرين وايي چي دا جمله عطف ده پر "الم تر" والتقدير او رئيت مثل الذي فعل كذا اى مارئيت مثله فتعجب منه، نو پر دې تقدير کاف زائد نه دی.

**پوښتنه**: په دمخه کي خدای ﷻ حرف تشبیه نه راوړي بلکه حرف الم ترى الى الذي حاج الآیة او دلته یې حرف تشبیه راوړی څه حکمت دی؟

**ځواب**: لان المنكر للاحياء بعد الموت كثير والجاهل بكيفية اكثر من ان تحصى بخلاف مدعي الربوبية لانهم قليلون في الغاية.

**یوه سه**: چي مراد له قریه څخه بیت المقدس دی. او تېرونکی یې عزیر بن شرخیا و. وهذا هو الاشهر الاظهر، په عمومي تفسیرو کي راغلي دي چي په بني اسرائلو کي چي څه وخت شر او فساد او ترک د احکامو د تورات نهایت ډېر سو، نو خدای ﷻ عقابا لهم بخت نصر بابلي پر مسلط کړی او بخت نصر په شپږ لکه فوج پر دوئ حمله وکړه حتی شام یې هم فتح کړی، او بیت المقدس یې خراب کړی، او بني اسرائیل یې درې حصې کړه، یوه حصه یې ووژله، یوه حصه یې شام ته واستوله. او یوه حصه یې له ځانه سره د مریي توب په توګه بوتله، دریمه حصه چي یا بالغه ښځي یا نابالغه هلکان وه یو لک نفره وه. او دا نفر بخت نصر پر خپلو سردارانو او قومندانو ووېشله، او هر سردار او قومندان ته څلور نفره ورسېدله. او عزیر ﷺ هم په جمله کي د اسیرانو بېول سوی و. نو ډېره مده وروسته چي خدای ﷻ دی خلاص کړی یو خر ور سره و او پر بیت المقدس تېرېدی. او بیت المقدس پر ډېر بد حالت و او لوټي لوټي یې ولېدی.

**درویش وایي**: چي بعض مفسران وایي چي دغه تېرېدونکی ارمیا ﷺ و چي د خضر په نامه شهرت لري. او هغه روایت چي له مجاهد ؒ څخه منقول دی چي دا تېرودونکی یو کافر و چي په بعث بعد الموت کي یې شک و. مظهري ؒ وایي وهذا ليس بشيئ ولي چي کافر د دونده کرامت لائق نه دی لکه په دې قصه کي چي په راسي.

**سوال**: کېدای سي چي دغه کافر دې بعد ما رایٔ من الاحیاء بعد الاماتة کما سیجئ ایمان په یې راوړی وي، نو دا احیاء دده د کرامت لپاره نه وه بلکه د ده د ایمان راوړلو لپاره وه؟

**ځواب**: دا خو ایمان بالغیب نه دی بلکه ایمان بالمشاهده دی ولا عبرة بهذا لایمان کما لایخفی.

**فائده**: بعض مفسران وايي چې كاف ، زائد دی وتقدير الكلام الم ترى الى الذي حاج ابراهيم في ربه او الذي مرمأآه.

**يوه سه**: بعض مفسرينو په اعراب او عطف كې ددې پر سابق آيت داسې بعيده او د بلاغت د قرآن لوی احتمالات راوړي دي چې راوړه يې بې تضيع الوقت بله فائده نه لري فلهذا اعرضت عنها.

## وَّهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوشِهَا

او هغه قريه خالي وه او دېوالونه يې نړېدلي وه پر بامو يعني دمخه يې بامونه نړېدلي وه، او وروسته يې دېوالونه پر بامو رانړېدلي وه.

## قَالَ اَنّٰى يُحْيٖ هٰذِهِ اللّٰهُ بَعْدَ مَوْتِهَا

**درويش وايي**: چې مراد له حيوة او موت څخه معنا حقيقي نه ده، بلكه مراد د حيوة څخه تعمير او آبادي د بيت المقدس ده. او مراد له موت څخه خرابي د بيت المقدس ده چې عزير ﷺ وليده.

**يوه سه**: چې كلمه د "انی" چې استعمال يې په استبعاد كې كېږي له دې سبب عزير نه ده ويلې چې دده د خدای ﷻ په قدرت كې شک و، او يادا تعمير د بيت المقدس يې له قدرت څخه د خدای ﷻ بعيد باله. بلكه دا استبعاد يې نظر وعادت ته د مخلوق و. يعني چې كوم مخلوق به وي چې دا ټولي خرابۍ د بيت المقدس به از سر نو په آبادۍ سره بدلي كړي، نو د عزير ﷺ چې خر د سپرلۍ ورسره و د بيت المقدس په خرابو كې ګرځېدی او درختي د انګورو او اينځرو وغيرهما ډكې وې، نو يې اينځر وشكول او ټوكرۍ ته يې واچول يعني چې بل وخت به يې وخوري او د انګورو اوبه يې وايستلې او يوڅه يې وڅښلې او يوڅه اوبه يې د بل وخت لپاره په كټورې كې واچولې ، او خوب ورغلی نو په يوه لوړه كنډواله كې يې خر وتاړه، او ټوكرۍ د اينځرو او اوبه د انګورو يې وسر ته كښېښولې او بيده سو او په هغه خوب كې مړ سو.

فَأَمَاتَهُ اللَّهُ مِائَةَ عَامٍ

**پوه سه:** چي اماتة د عزير ﷺ پر اجل موعوده نه و، بلکه لپاره د اظهار د قدرت عظیمه خپل وچي عزير ﷺ وویل انی یحي هذه الله بعد موتها.

**فائده:** خدای ﷻ سترګي د انسانانو او د سباعو او د مرغانو دده او د خره پر لیدو ړندي کړي اظهاراً لقدرته الجلیلة. او خر خو مړ سو او ښخه مده وروسته یې غوښي ورستي سوې او هډوکي یې سره جلا جلا سوه او د لمر د تېرېي ښخه تک سپین سوه، او عزير ﷺ چي بیدېدی ځوان و، نو څه وخت چي اویا کاله د مرګ دده تېر سوه په روایت د مظهري پس له دې چي بخت نصر یوې غوماشي مړ کړی کمامر في قصة نمرود، نو خدای ﷻ ملکه یو بادشاه مسلمان ته چي د ملوک ښخه د فارس و راواستوله چي ولاړ سه بیت المقدس پر بهترین هیئت جوړ کړه، او اباد یې کړه. نوم د هغه بادشاه یوشک و نو یو شک د زرو کسانو قومندانانو سره چي د هر قومندان تر قومندي لاندي درې لکه خلګ وه بیت المقدس ته راغلله او دېرش کاله یې کار پر وکړی او بیت المقدس یې پر ډېر احسن صورت جوړ کړی او باقي مانده بني اسرائیل په اطرافو او اکنافو کي چي د عالم دنیا وه بیرته سره جمع سوه خپل وطن ته راغلله، او یوشک چي خپله وظیفه سر ته ورسوله او بني اسرائیل یې په بیت المقدس کي جمع ولیدل بیرته خپل وطن فارس ته ستانه سوه. او د عزير ﷺ د مرګ سل کاله پوره سوه.

ثُمَّ بَعَثَهُ

او بیا دی د خپل ځایه خدای ﷻ وپاڅاوه، بعث د لمر لوېدو پر وخت و، نو خدای ﷻ یوه ملکه ورته راواستوله

قَالَ كَمْ لَبِثْتَ

ملکي ورته وویله چي تا به څونده درنګ کړی وي یعني په خوب کي

قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا

نو ده وویله چي یوه ورځ، لکن دی خو په وخت کي د څاښت بیده سوی و

نو ده چي وکتله لمر لا ولاړ و دده خیال د ورځي د بیدیدو د لمر خیال پر راغلی نو یې وویل

أَوۡ بَعۡضَ يَوۡمٍۚ اضرابا عما قال اولا قَالَ بَل لَّبِثۡتَ مِاْئَةَ عَامٖ

یعني نه ورځ درنګ ده او نه بعض ورځ ده بلکه تا درنګ کړی سل کاله یعني له رخته څخ د بیدېدو. یعني ته سل سنه مړ وې بیده نه وې

فَٱنظُرۡ إِلَىٰ طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمۡ يَتَسَنَّهۡۖ

او وګوره چي بله د قدرت الهي علامه ووینې چي ستا طعام یعني اینځر او ستا د څښاک اوبه یعني عصیر العنب هیڅ تغیر یې نه دی کړی سره د تېرېدو د مدت مدیده سل کاله، نو ده چي ورته وکتل داسي ورته معلوم سوه چي اینځر لکه تازه چي یې له درختي څخه شکول سوي وي، او عصیر ته چي یې وکتل داسي ورته برېښېدله لکه دستي چي د انګورو څخه را ایستل سوي وي.

**فائده**: کسائي رحمه الله او یعقوب رحمه الله لم یتسن وایي بحذف الها في الوصل واثباتها في الوقف، او نور قراء یې لم یتسنه بالهاء وایي وقفا ووصلا، نو هغه څوک چي دا ها په وصل کي ساقطوي هغه دغه ها د سکت بولي زائد یې بولي، او هغه څوک چي نه یې ساقطوي وصلا ووقفا هغه دا ها اصلي بولي.

**فائده**: دا خلاف پر دې مبني دی چي اصل څو "سنة" دی او ها د لام کلمه د اصلي، ان قدر ان اصله سنهة بدلیل تصغیرها علی سنیهة وقد قالوا ان التصغیر یرد الکلمات ال اصلها، او هغه څوک چي ها د اسکت بولي هغه وایي چي اصل د سنة سنو و، نو واو په سبب د فتحه د ماقبل په الف بدل سو او په جزم سره حذف سو نو په وقف کي ها پر بالا کړه.

**پوښتنه**: دمخه دوه شیه ذکر سوه یعني طعام وشراب: نو باید لم یتسنها او یا لم یسنیا ویل سوی وایي؟

**ځواب**: په تاویل د غذاء یې ضمیر مفرد ورته راجع کړی.



Scanned by CamScanner

## وَانْظُرْ اِلٰى حِمَارِكَ

یعنې څرنګه یې هډوکې سره جلا سوي او پیوندونه یې شکېدلي دي او بوسیده سوي دي، نو تاته به دا درمعلومه سي چې رښتیا پر ما سل کاله تېر سوي دي.

**درویش وایي:** چې بعض مفسرین وایي چې د وانظروا الی حمارک معنا داده چې د عزیر علیه السلام خر پر خپلو پښو ولاړ و لکه هغه ورځ چې ده تړلی و، او ژوندی و سره له دې چې تېر سل کاله یې شی هم نه و خوړلی او نه یې اوبه څښلي وې، او د غاړې رسی یې هم نوې وه.

**درویش وایي:** چې دا تفسیر که څه د قدرت الهي یوه لویه علامه ده لکن بیا هم ضعیف دی، ولې چې وانظر الی حمارک ته ضرورت نه و بلکه پر دغه تفسیر باید داسې ویل سوي وایي فانظر الی طعامک وشرابک وحمارک آه.

## وَلِنَجْعَلَكَ اٰيَةً لِّلنَّاسِ

**پوه سه:** چې واو استینافي دی او لام متعلق بمحذوف، والتقدیر فعلنا ذالک ای احیائک واحیاء حمارک وحفظ ما معک من الطعام والشراب من التغیر لنجعلک آیة للناس ای الموجودین من بني اسرائیل.

## وَانْظُرْ اِلَى الْعِظَامِ كَيْفَ نُنْشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوْهَا لَحْمًا

او وګوره و هډوکو ته یعنې د خره.

**پوه سه:** چې اهل حجاز او بصره دا آیت "ننشزها" بالراء وایي چې معنا یې نحییها کما في قوله تعالی ثم اذا شاء انشره، او باقي قراء یې بالزاء وایي چې معنا یې نرفعها من الارض ونرکب بعضها مع بعض.

**پوه سه:** چې کیف منصوب دی په ننشز او په سبب د تضمن معنا لره د استفهام دمخه سوی دی او ټوله جمله حال ده له عظام څخه، او بیا څرنګه موږ په اغوندو یعنې په هډوکو غوښې

**فائده:** عظام يې جمع راوړه او لحم يې مفرد له دې سببه چې عظام خو صورة ډېر دي او غوښې خو ظاهرا يو صورت يې دی، روی: چې عزير ﷺ د اسمان له خوا څخه اواز واورېدی ايتها العظام البالية المتفرقة ان الله يامرک ان ينضم بعضک الی بعض کما کان وروسته يې غوښې او رګونه او پلي ورکړې، وروسته يې روح پکښې پوه کړه، نو خره ښېله نعره وکړه او ژوندی سو.

**درویش وايي:** چې د هغه علماؤ تاویل چې موږ دمخه هم رد کړی ددې آيت څخه يې رد صراحةً رد معلومېږي کما لايخفی فتدبر.

## فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ قَالَ أَعْلَمُ أَنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ۝

نو چې عزير ﷺ ته دا احياء الموتی عيانا ومشاهدة معلومه سوه، نو بيې وويل چې په دې پوهېږم چې خدای ﷻ پر هر شي قدرت لري، او خدای ﷻ ته هيڅ شی چې اراده يې ورته وکړه ګران نه دی، روی: چې عزير ﷺ په ګمان ګمان سره هغه خپلي محلې ته ورغلی لکن نه ده په خلګو کې هيڅ څوک پېژندله او نه خلګو دی پېژندی، او نه يې کوم سرای پېژندی، ولې تعميرات تول ده دده له وخته څخه بدل سوي وه، اخير الامر په توهم سره خپل کور ته ورغلی په کور کې يوه ډېره سپين سرې ښځه وه چې په سترګو ړنده وه او په پښو شله چې زمانه د عزير ﷺ يې ليدلې وه، نو عزير ﷺ وهغې ښځې ته وويل چې دا کور د عزير دی هغې ورته وويل هوا کور خو د عزير دی لکن د عزير نوم تا څنګه واخستی هغه خو سل کاله کېږي لاپته دی، فبکيت بکاء شديدا، قال عزير اني عزير ښځې ورته وويل سبحان الله دا کله کېدای سي چې ته دي عزير يې، عزير ﷺ ورته وويل چې خدای ﷻ سل کاله مړ کړم او بيرته يې ژوندی کړم، ښځې ورته وويل چې عزير خو مستجاب الدعوات و، نو که ته په رښتيا عزير يې ته خواست وکړه خدای ﷻ ته چې ما په سترګو بنا کړي نو زه دې پېژنم، نو عزير چې دعاء وکړه په قدرت د خدای ﷻ ښځه په سترګو بناء سوه، او بيا يې سپين سرې چې شله وه تر لاس ونيوله او وه يې ويله قومي باذن الله ښځه بې تکليفه ولاړه سول، نو ښځې

چي عزیر ته وکتل وه یې ویل اشهد انک تعزیر بیا ښځه ورسره وه ویوې محلې ته د بني اسرائیلو چې هورې خلګ ډېر ناست وه او د عزیر زوی چې عمر یې یو سل و اتلس (۱۱۸) کاله و هم موجود و او د زامنو زامن یې لاهم سپین ږیري وه، نو ښځي په بلند اواز وویل یا بني اسرائیل هذا عزیر، خلګو ښځي ته وویل دروا غ مه وایه عزیر به تر اوسه څرنګه ژوندی پاته وي، ښځي خلګو ته وویل چې تاسي خبر یاست چې زه ړنده او شله هم وم نو دد غه سړي په دعاء سره زه خدای ﷻ هم په سترګو بینا کړم او پر پښوو یې هم ولاړه کړم، نو خلګ ورولاړ سوه، نو د عزیر زوی وویل چې زما د پلار خو د دوو ورږو په منځ کي یوه توره لاروه لکه نوي میاشت، عزیر چي لمن ورته پورته کړه هغه نښاني پکښي وه.

**راوي وایي** چې بخت نصر چې پر بیت المقدس حمله وکړه څلوېښت زره قاریان د تورات یې قتل کړه، او د تورات ټولي نسخې یې وسوځلې، نو د هیڅ چا سره نسخه د تورات نه وه او نه د چا په حفظ کي تورات و، نو عزیر ټوله تورات له یاده څخه دوی ته ووایه بلا نقص حرف، نو یو سړي چې په سبي کي بیول سوی و، او پسله مرګه د بخت نصر بیرته بیت المقدس ته راغلی و، هغه وویل چې ماته پلار وویل او هغه ته زما نیکه ویلي وه په ورځ د سبي زموږ موږ تورات په یوه خوم کي واچاوه او زما د نیکه په باغ کي مو ښخ کړی، نو که تاسي زما د نیکه باغ ماته وښایاست زه به تورات درپیدا کړم ان شاء الله، نو خلګ ورسره ولاړه او هغه باغ یې وروښووی، نو خلګو کرار کرار د هغه باغ شنل شروع کړه او تورات یې په هغه خوم کي روغ رمټ پیدا کړی، نو هغه تورات چې عزیر عن ظهر القلب ویلی و د تورات مدفون سره برابر و. فعند ذالک قال بني اسرائیل عزیر ابن الله تعالی عن ذالک علوا کبیرا.

**فائده**: مظهري په نقل د محمد بن اسحاق صاحب السیر والمغازي داسي لیکلي دي چي تېرهدونکی پر بیت المقدس په وخت کي د خرابي ارمیاء و وهو الخضر علیه السلام.

**درویش وایي**: چي هیڅ مفسر دا نه دي ویلي چي خضر و او خر ورسره و او

بیا سل کاله خدای ﷻ مړ کړی الی اخیر الآیات، او نه دا چا ویلي دي چې د خضر نوم ارمیاء و نو دا خبره د محمد بن اسحاق که نقل د مظهري هم صحیح وي د منلو وړ نه ده کما لایخفی. او بیا مظهري په ص (۳۶۷) د ارمیاء نوم چې دده په نیز خضر دی کمامر په طویل بیان سره کړی دی. او هم په دغه مخ کي بیا د ارمیا نوم یې ذکر کړی، او بیا یې هم په دغه مخ کي داسي لیکلي دي اقبل ارمیاء علی حمار له معه عصیر عنیب، نو چې بیت المقدس ته یې وکتل او هغه یې خراب ولیدی نو یې داسي وویل انی یحي هذه الله بعد موتها الخ.

**درویش وایي**: چې دا ټولي خبري خو د ارمیاء دي چې محمد بن اسحاق یې خضر بولي، او هم په دغه مخ کي یې ویلي دي ثم ربط ارمیاء حماره بحبل والقی علیه النوم فاماته مائة عام الآیة، نو ارمیاء خو دده په نیز خضر و. نو ګویا خضر سل کاله مړ سو ولم ینقل به احد من المفسرین ولا من المحدثین رح ثم قال ای الملک لارمیاء آه. ثم نقل الکلام یعني المظهري في ص (۳۶۹) الی الروایة المشهورة عند المفسرین واهل الحدیث یعني ان المار هو العزیر ؑ ثم ساق المظهري الکلام علی ان المار هو عزیر فتامل في هذه العبارات.

**درویش وایي**: چې برسوي مصنف د روح البیان یوه باریکي بیان کړې ده چې پښتو ژباړه یې داده، چې په دې قصه کي د عزیر ؑ تنبیه ده پر دې باندي چې دعاء کونکی چې آداب د دعاء پر ځای کړي دعاء یې ژر قبلیږي بیله مشقته پر داعي، او که یې آداب د دعاء نه کړه پر ځای نو داعي ته تکلیف پېښیږي او اجابت د دعاء یې ځنډیږي. د مثال په توګه ابراهیم ؑ چې وویل یعني خدای ﷻ ته یې خواست وکړی ﴿رب ارني کیف تحیی الموتی﴾ اول یې ثناء د خدای ﷻ وویله یعني رب، وروسته یې خواست د کیفیت د احیاء الموتی وکړی. نو خدای ﷻ دا کیفیت د احیاء الموتی په ابراهیم کي نه بلکه په مراغانو کي په ولیدی کماسیاتي عنقریب. او خواست یې بلا مهلته ورقبول کړی، او عزیر ؑ چې اولاً داسي وویل ﴿انی یحي هذه الله بعد موتها﴾ نو خدای پاک دغه خواست دده په ځان په ولیدی او پسله سله کاله مرګ دده انتهی.



Scanned by CamScanner

وَاِذۡ قَالَ اِبۡرٰهٖمُ رَبِّ اَرِنِیۡ كَیۡفَ تُحۡیِ الۡمَوۡتٰیؕ

**یوه سه**: چې عامل د "اذ" محذوف دی ای اذکر، والمعنی په یاد او ذکر کړه ای محمدﷺ هغه وخت چې ابراهیم ووېل ای خدایه زما په ما وروښې چې ته څرنگه مړي ژوندي کوې.

**یوه سه**: چې له ذکر څخه د وخت مراد ذکر دی د ماوقع في الوقت من قصة ابراهیم

**فائده**: مراد له روئیت څخه روئیت بصري دی یعني په سترگو لیدل یعني ای خدایه ته مړي ژوندي کړه چې زه ورته گورم تاچې ماته عین الیقین بلکه حق الیقین پیداسي چې اعلی د مقاماتو د یقین دی.

**یوه سه**: چې صحیح شان نزول ددې آیت دادی چې ابراهیمؑ یوه ورځ د دریاب پر غاړه یو مردار سوی خر ولیدی چې دریاب به څپه ووهل او خر به اوبو پټ کړی د دریاب حیواناتو د خره د غوښو په خوړلو بخت سوه او چې دریابي څپه به ولاړه او خر به ښکاره سو د وچې حیواناتو به یې په غوښو خوړلو بخت سوه، نو ابراهیمؑ د تعجب په دریاب کې غرق سو، نو داسې یې ووېل چې زما خو یقین دی ته دا خر له بحر او بر څخه خدایﷻ جمع کوې لکن ته یې په ما وروښې چې ته یې څرنگه جمع کوې او ژوندي کوې یې، او نور شان نزول هم مفسرانو ذکر کړي چې په راوړلو کې یې فائده نسته، او شان نزول چې دروېش ذکر کړی، مروي له حسن بصري او د قتاده او د عطار خراساني او د ابن جریج رحمهم الله تعالی اجمعین څخه دی.

قَالَ اَوَلَمۡ تُؤۡمِنۡؕ

خدایﷻ ورته ووېل ایا ستا ایمان نه دی پر دې چې زه قادر یم پر احیاء الموتی وجمع اجزاء الموتی بعد تفرقها.

**پوښتنه**: خدایﷻ خو په دې خبر و چې ابراهیم قوي تر د خلگو و په ایمان کې پر احیاء الموتی، نو فائده د سوال مذکور به څه وي؟

**ځواب**: فائده ددې سوال داده چې سامعان جواب د ابراهیم واوري.



Scanned by CamScanner

# قَالَ بَلٰى وَلٰكِنْ لِّيَطْمَىِٕنَّ قَلْبِىْ

نو ابراهیم علیه السلام وویل چې هوا خدایه زما ایمان دی پر احیاء الموتی ستا، لکن سوال مې له دې سببه وکړی چې زما زړه ارام سي او یقین مې وحق الیقین ته ورسیږي چې وعلم استدلالي او علم بالوحي ته د سترګو لیدل هم ورضم سي.

**فائده**: متعلق د حرف جر په لیطمئن کې محذوف دی ای سئالت ما سئلت لیطمئن.

**فائده**: بعض علماؤ په دې پښتنه کې د ابراهیم علیه السلام واذ قال ابراهیم رب ارني کیف تحي الموتی" ډېرې وږدې خبرې کوي یعنې چې دا سوال د منصب سره د نبوت او خلة دده مناسب نه و، ولې چې له دې سوال څخه توهم د شک د ابراهیم کېږي په احیاء الموتی من جانب الله کې.

**درویش وایي** چې دا توهم په قرآني آیاتو سره دفع سو حیث سئال الله عنه بقوله اولم تؤمن، واجاب عنه ابراهیم بلی ولکن لیطمئن قلبي، نو بیا د توهم او شک څه منشاء پاتېږي لکن مع هذا بعض محققین رح د دفع د توهم د شک لپاره داسې وایي چې که قرآني سوال او جواب د خدای جل جلاله او د ابراهیم علیه السلام تر منځ هم نه وایی بیا هم رب ارني کیف تحیی الموتی منشاء د توهم د شک په ابراهیم کې نه سوه کېدای، ولې دا سوال خو له علمه څخه پر کیفیت د احیاء الموتی دی تاچې ابراهیم پر کیفیت د احیاء الموتی احاطه علمي ورته حاصله سي، او په ایمان کې د احیاء الموتی له جانبه څخه د حق سلطانه دا شرط نه دی چې سړی په تفصیل او تصویر د احیاء الموتی هم علم لري، نو ابراهیم طلب د علم د داسې شي وکړی چې اصل ایمان پر علم د هغه موقوف نه وو یعنې العلم بالکیفیة ولا تلازم بین الایمان باصل الشیئ والعلم بکیفیة.

**درویش وایي** چې ددې لپاره ډېر مثالونه موجود دي، مثلاً زموږ ایمان دی پر دخول د مؤمنانو جنت ته او د کافرانو دوږخ ته او پر دې چې القبر روضة من ریاض الجنان او حفرة من حفر النیران، او دغه رنګه هر مرور پر پل صراط الی



Scanned by CamScanner

غیر ذالک مع عدم علمنا بکیفیة تلک الامور.

**پوښتنه:** څرنګه به صحیح وي نفي د شک له ابراهیم ﷺ څخه او سره ددې چې په حدیث کې د ابو هریره ﷺ، چې روایت یې بخاري او مسلم دواړو کړی دی علیه الصلوٰة والسلام ویلي دي نحن احق بالشک من ابراهیم؟

**ځواب:** ابو سلیمان الامام الخطابي وایي لیس في الحدیث اعتراف بالشک على نفسه ولا على ابراهیم بل فیه نفي الشک عنهما یعني اذ لم اکن اشک فابراهیم اولى بان لایشک وانما قال النبي ﷺ ذالک تواضعا وهضما لنفسه.

**درویش وایي:** چې ومثل هذا التواضع والهضم لنفسه ماقال النبي ﷺ في الحدیث المذکور في بیان حسن صبر یوسف ﷺ على طول الحبس، ولو لبثت السجن طول مالبث یوسف لاجبت الداعي وقصة طول لبث یوسف ﷺ في السجن یې په تفسیر کې د سورة یوسف راسي ان شاء الله تعالى، والدلیل على کون قول رسول الله ﷺ تواضعا ان النبي ﷺ کان اشد بلاءً من یوسف ﷺ بل عن سائر الانبیاء علیهم السلام ومع ذالک قد صبر ﷺ على تلک البلایا والفتن من جهة الکفرة الفجرة صبرا جمیلا ولهذا ورد في الحدیث النبوي ﷺ ما اوذي احد مثل ما اوذیت آه.

**درویش وایي:** چې څوک تاریخ د ۲۳ کالو د نبوت د علیه السلام کاملا وتماما مطالعه کړي نو به دا ورته یقین سي چې رسول الله ﷺ اشد صبرا وو پر بلایا و تر یوسف او وجه د حدیث مذکور آنفا به هم ورته معلومه سي.

## قَالَ فَخُذْ اَرْبَعَةً مِّنَ الطَّيْرِ فَصُرْهُنَّ اِلَيْكَ

ووېل خدای ﷻ وابراهیم ته چې ته دراخله څلور د مرغانو څخه، چې یو طاؤس و او بل چرګ و، او بل کارګه و، او بله کوتره وه، او بعض راویان په ځای کې د کوترې بابنه ذکر کړې ده.

**فائده:** تخصیص د مرغانو خدای ﷻ وکړی له دې سببه چې دغه مرغان و انسانانو ته نږدې دي او خواص د حیوانانو ټولې پکښې دي، او بیا فصرهن الیک من صاره یصوره او صاره یصیره والمعنی واحد یعني وځان ته جمع کړه



Scanned by CamScanner

چي ته فكر په كښې ووهې او ښې وپېژني او شكلونه د ټولو هم ورته معلوم سي تاچي وروسته تر احياء ددغو مرغانو ورته معلومه سي چي هيڅ جزء د اجزاؤ څخه ددوئ له ځايه څخه نه دى بې ځايه سوى، راوي وايي چي ابراهيم ﷺ دغه څلور مرغان ذبح كړه او ښكي او غوښي ددوئ يې سره وكوټلې او سره ګډې وډې يې كړلې او سرونه ددوئ سره له ځان سره خوندي كړه، بيا خداى ﷻ امر ورته وكړى.

# ثُمَّ اجْعَلْ عَلٰى كُلِّ جَبَلٍ مِّنْهُنَّ جُزْءًا

او بيا وګرځوه پر هر غره يعني چي تاته نژدې وي غرونه دې يو جزء ددغو مخلوط اللحوم د مرغانو.

# ثُمَّ ادْعُهُنَّ يَأْتِيْنَكَ سَعْيًا

او بيا دغه مرغان در وبوله يعني قل لهن تعالين باذن الله نو به دا مرغان راسي وتاته په ځغاسته، راوي وايي چي ابراهيم ﷺ هم دغه سي وكړه، نو د مرغانو غوښي له يوه غره څخه په طيران وبل غره ته نقل سوې حتى چي د څلور سرو مرغانو بدنونه جوړ سوه، نو بيا په ځغاسته هر مرغه وخپل سر ته راغلی او ابراهيم ورته كتله او د خداى ﷻ وعظيم قدرت ته يې تعجب كاوه.

# وَاعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۶۰﴾

او په دې پوه سه چي خداى ﷻ غالب پر خپل مراد دى هيڅ شى يې له خپل مراد څخه نه سي منع كولاى، او په هر كار او شي كي حكمت لري يعني كه څوک په پوهېږي او كه نه.

**درويش وايي:** چي پوه سه چي په دغو څلورو مرغانو كي څلور صفتونه ستته چي هغه په نفس انساني كي هم ستته، په طاؤس كي زينت ستته چي وززونه وغيره يې ډېر ښائسته دي، او په كارګه كي طول امل د ژوند ستته. او په چرګ كي ډېر شهوت ستته او په هيلۍ كي ډېر حرص ستته. فاشار بهذه الآية الى ان من لم يذبح نفسه بالمجاهدة في دفع هذه الصفات الذميمة عن نفسه لم يحي قلبه

بالمشاهدة وتحلي انوار صفات الجلال والجمال الالهيه لانهم قالوا التخلية مقدمة على التحلية بالحاء المهملة والاول بالخاء المعجمة.

**درويش وايي** چي صاحب د روح المعاني وايي چي په دې طيور اربعه وو کې اشاره ده وهغه څلورو مرغانو ته د عالم غيب چي عبارت دي د عقل او زړه او نفس دی او روح دی چي په قفس کې د جسم بنديان دي، وروسته آلوسي دې اشارې ته ډېره توضيح ورکړې ده او لوی بيان يې ليکلی کړی دی.

**درويش وايي** داسي اشارات بيانولو ته څه ضرورت دی، ولې چي د طالبانو ذهن د معنا مراد في القرآن څخه بلې خوا ته اوړي، ددوی توهم دا کېږي چي په قرآن مبارک کې هم دغه معنا مراد ده ولېس ککت.

**فائده** امام مظهري رحمه الله د عطار خراساني رحمه الله ددې څلورو مرغانو په باره کې داسي نقل کړی دی چي يوه به شنه ايلی وي او بل به تور کارگه وي او بله به سپينه کوتره وي او بل به سور چرگ وي.

**درويش وايي** چي دا رنگونه د مرغانو په کوم حديث کې راغلي دي، او يا د يو صحابي قول دی، مظهري بيا ددې قول د عطار توجيه کړې ده چي دا رنگونه د و عناصر اربعه وو ته اشاره ده ثم بين ذالک.

**درويش وايي** چي دا صرف طبع ازمايي ده مظهري آه. ولله در البيضاوي حيث قال چي په دې آيت کې اشاره ودې ته ده چي ژوند د نفس په حيوة باندي په دې سره کېږي چي سړی په حب الشهوة والزخارف چي صفت د طاوس دی وژني، او حمله بې خايه چي چرگ په مشهور دی وژني بې، او خسته د طبع او طول الامل چي کارگه په مشهور دی وژني به يې، او ترفع او لوړ والی چي په کوتره کې سته له خانه څخه به يې ايسته کړي، نو به خدای تعالی ته ورسېږي يعني الهي معرفت په احسنه وجه سره ورته حاصله سي او حيوة جاوداني اخروي په دار النعيم جنت کې وي بلکه په لوړو مانيو کې د جنت په مقيم وي آه بزيادة.

**پوښتنه**: بعض تاويلي اشارات تا ناخوښه کړي او بعض دي قبول کړي سبب يې دی؟

**خواب**: هغه تاویل چې د احادیثو مبارکه وو سره سمون خوري او د دې تفسیر د مطالعه کونکو فهم ته في الجملة نژدې وي فقیر یې خوښ بولي. دا توهم دې څوک نه کوي چې زه رد د بعض تاویلاتو صوفیانه کوم العیاذ بالله. دا سوال او خواب د حاسدانو د دفع حسد لپاره دی.

# مَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِىْ سَبِيْلِ اللهِ

مثال او حال د هغو کسانو چې صرفوي خپل مالونه په لار کې د خدای ﷻ یعني کالجهاد وصلة الرحم والانفاق علی الیتامی والارامل او په بناء کې د مساجدو او یا په بناء د عامة المنفعة ځایو وغیر ذالک. وافضل ذالک الانفاق الزکوة المفروضة ثم وثم

# كَمَثَلِ حَبَّةٍ

لکه حال د هغه دانې یعني تخم دی.

**پوه سه**: چې ایرږن یا باجرې وغیر ذالک اوه سوه دانې له یوې دانې څخه راوزي.

**پوښتنه**: مشبه خو حال د الذي ینفقون دی، او مشبه به خو حال د حبة دی فکیف التشبیه؟

**خواب**: ټوله مفسرین په یوه خوله وایي چې تقدیر د مضاف ضروري دی یا د مبتداء په خوا کې یعني مثل نفقه الذین آه، او یا د خبر په جانب کې یعني کمثل باذر حبة یعني شنه کونکي د دانې.

# اَنْۢبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ

یعني راشنه کړې دغه دانه اوه وږي.

**پوه سه**: چې نسبت د انبات وه حبة ته بناء پر عادت الهي دی ورنه منبت حقیقة خو خدای ﷻ دی.

# فِىْ كُلِّ سُنْۢبُلَةٍ مِّائَةُ حَبَّةٍ

په هر وږي کې سل دانې وي چې مجموع اوه سوه کېږي.



Scanned by CamScanner

وَاللّٰهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَآءُ

او خدای ﷻ مضاعف کوي و هغه چاته چي خوښه يې وي يعني من عباده

**بوه سه:** چي تضاعف مربوط په اخلاص پوري د بنده دی او يا په وخت پوري د انفاق او يا په محل پوري د انفاق مثلا منفق به د رياء او سمعه څخه ډېر لري وي، ولي چي دا شرک خفي دی، او مياشت به د روژې مثلا او محل د انفاق مسکين دا متربة وي او يا يتيم ذا مقربة وي مثلا الى غير ذالک من اسباب التضاعيف.

وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿۲۶۱﴾

او خدای ﷻ فراخه دی فضل يې، او خبر دی په نياتو د بندگانو كما روى البخاري ومسلم وغيرهما ﴿انما الاعمال بالنيات وانما لامرء ما نوى الى اخير الحديث﴾ وورد في الحديث النبوي ﷺ صدقة المؤمن تدفع عن صاحبها آفات الدنيا وفتنة القبر وعذاب يوم القيامة، وفي الحديث الصحيح الساعي على الارملة والمساكين كالمجاهد في سبيل الله، قال السعدي الشيرازي رحمه الله

يکی از بزرگان اهل تميز | حکايت کند زا بن عبدالعزيز
که بودش نگينی در انگشتری | فرومانده از قيمتش مشتری
بشب گفتی آن جرم گيتی فروز | دری بود در روشنائی چو روز
قضارا در آمد يکی خشک سال | که شد بدر سيمايی مردم هلال
چو در مردم آرام وقوت نديد | خود آسوده بودن مروت نديد
چو بيند کسی زهر در کام خلق | کيش بگذرد آب شرين بحلق
بفرمود بفر و خنندش به سيم | که رحم آمدش بر فقير ويتيم
بيک هتقه نقد ش تباراج داد | بدرويش مسکين ومحتاج داد
فتاد ند دروی ملامت کنان | که ديگر بدستش نيايد چنان
شنيدم که ميگفت وباران دمع | فروميدويدش بعارض چو شمع
که زشتست پيرايه بر شهر يار | دل شهری از ناتوانی فگار
مرا شايد انگشتری بی نگين | نه شايد دل خلق اندو هگين



Scanned by CamScanner

خنک انکه آسایش مرد وزن گزیند بر آسایش خویشتن
نکردند رغبت هنر پروران بشادی خویش از غم دیگران
بستان سعدي شیرازي قدس سره

**پوښتنه**: په دمخه نږدې حدیث کې تېره سوه انما الاعمال بالنیات آه، او په بل صحیح حدیث کې راغلي دي چې نیة المؤمن خیر من علمه، نو ددې حدیث مبارک به څه معنا وي؟

**ځواب**: روح البیان والا وایي چې مورد د حدیث مذکور عثمان ﷺ دی چې علیه السلام وویل چې که چا یو محکم څاه یعني پر فلاني ځای جوړ کړی خدای ﷻ لوی اجر عظیم به ورکړي، نو عثمان ﷺ نیت او قصد وکړی چې هغه څاه به جوړ وي، لکن یوه کافر دمخه تر عثمان ﷺ هغه څاه جوړ کړی، نو علیه السلام وویل نیة المؤمن یعني عثمان خیر دی تر عمل د کافر.

**درویش وایي**: چې په دې حدیث کې یوازي مؤمن ذکر سو نو ضمیر وکافر ته راجع کول اضمار قبل الذکر دی الا ان یقال المعهود کالمذکور، لکن اولی په ځواب کې داده چې د مؤمن څخه جنس مؤمن مراد دی نو د حدیث معنا داده چې یو مؤمن چې ریاء د سمعة یو غوبی خیرات کړي مثلا، او یا ریاءً وسمعةً مهمان خانه جوړه کړي او خلګو ته ډوډۍ ورکوي، یو بل مسکین بالفعل سړی دا قصد وکړي که ماته خدای ﷻ روپۍ راکړې زه به هم غوایي خیراتوم او مېلمانه به خورومه، نو ددغه مسکین نیت د هغه مرایي تر عمل خیر دی لان في عمل المرایي شرک خفي، او نیت د مسکین خالصا لرضا اللّٰه ﷻ دی، او بعض مفسرین د حدیث مذکور داسي ترجمه کوي چې نیت مجرد د مؤمن یعني بېله عمله خیر دی تر عمل مجرد د نیت څخه، کالوضوء للتبرد لا للثواب، لکن بعض علماؤ دا جواب تر تنقید لاندې نیولی دی چې اعمال د خیر خو بعض بېله نیت نه دي صحیح لکه لمونځ بېله نیته نه دی روا، او بعض افعال الخیر وه نیت ته ضرورت نه لري کقرائة

القرآن والاذكار، نو په كوم بعض كي نيت د مؤمن خير تر عمل دى.

**فائده**: انفاق د عامة الناس په مال سره دى يعني بېله ريا او سمعة، ددوى ثواب جنت دى او انفاق د خواصو اعني اولياء الكرام رح په تزكيه د نفس د رزائلو ملكاتو څخه او تصفيه د زړه د محبت څخه د مال بالانفاق في سبيل الله، نو ددوى ثواب نظر دى الى وجه الله الكريم في جنة النعيم، اللهم اجعلنا منهم بجاه نبيك المجتبى المنعوت بما زاغ البصر وما طغى، ع باكريمان كارها دشوار نيست

## الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

هغه كسان چي نفقه كوي خپل مالونه په لاره كي د خداى ﷻ

**پوه سه**: چي رسول الله ﷺ چي اصحاب كرام ﷺ امر كړه په كومك سره په غزاء كي د تبوك چي ډېره سخته غزاء وه او ډېر مسافت هم په مخ كي و، او ډېره سخته گرمي هم وه، نو عبدالرحمن بن عوف ﷺ خلور زره درهمه د كومك او صدقي په توگه وعليه السلام ته راوړه او عبدالرحمن ﷺ وويل چي ما اته زره درهمه درلوده. نو خلور زره مي خان ته مي خان او عيال ته راوگرځول او خلور زره مي وخداى ﷻ ته په قرض وركوم، نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل بارك الله فيما امسكت وفيما اعطيت. او حضرت عثمان بن عفان ﷺ د غزاتو سره د تبوك په زر اوښانو سره د كتو او د نورو شيانو چي د اوښانو سره مناسب شيان وه كومك وكړى، او عبدالرحمن بن سمره ﷺ وايي چي عثمان ﷺ سره د اوښانو د كومك يو زر ديناره هم راوړي وه او د عليه الصلوة والسلام په لمن كي يې ور واچول، او عليه السلام لاس پكښي واهه، او دا يې ويله چي عثمان ته تر دې وروسته هر څه عمل وكړي ده ته ضرر نسته، رواه البغوي ﷺ، نو دا آيت نازل سو ﴿الذين ينفقون اموالهم في سبيل الله الآية﴾

**درويش وايي**: چي نفس انفاق في سبيل الله خو ښكاره دى، لكن چي "من"

يا "اذى" او يا رياء ورسره ملګري وي هغه ډېر کار فاسدوي يعني په اخرت کې يې هيڅ ثواب نسته لکه په پاکو اوبو کې د څاه چې مرداري ورولوېږي نوټولې اوبه د څاه مرداروي، نو ددې د بيان لپاره خدای پاک دا آيات نازل کړه.

**درويش وايي:** چې په اخلاص سره د صدقاتو وزن درنېږي که څه هم لږ وي. او په من او اذا او يا رياء له منځ ځخه بالکليه نيستي کېږي که څه هم ډېرې وي.

ثُمَّ لَا يُتْبِعُونَ مَآ أَنفَقُوا مَنًّا وَلَآ أَذًى لَّهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٢٦٢﴾ قَوْلٌ مَّعْرُوفٌ وَمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ مِّن صَدَقَةٍ يَتْبَعُهَآ أَذًى وَاللَّهُ غَنِيٌّ حَلِيمٌ ﴿٢٦٣﴾

او وروسته تر انفاق نه کې په پسې په "ماانفقوا" سره احسان اچول پر منفق عليه باندې. صورت د من يې دادی چې منفق ومنفق عليه ته وايي چې ما څونده احسانونه ستا سره کړي دي. يعني لايعتد المنفق بالانفاق على المنفق عليه. او نه دي منفق عليه ازاره وي، صورت د ازار دادی چې منفق موذي ومنفق عليه ته يا داسي ووايي چې ماڅونده انفاق پر تا کړی تا زما هيڅ شکر نه دی اداء کړی، او يا ورته ووايي چې تر څو پوري ماته راځې او ما ازاره وي، او يا داسي ورته ووايي چې تر څو به ته سوال او فقر کوې نه شرمېږې، او يا داسي ورته ووايي چې دونده پنډ او څوان يې او فقر کوې ولې مزدوري نه کوې، وامثال ذالک من کلمات الاذى. قوله لهم اجرهم آه، نو دوی لره اجر او ثواب دی په ورځ کې د اخرت، او ګاهې په دې دنيا هم خدای ﷻ ومنفق مذکور ته عوض او اجر ورکړي.

**پوښتنه:** الذين ينفقون آه مبتداء وه او متضمن و معنا لره د شرط کماتقرر في النحو. او دا قول د خدای ﷻ "لهم اجرهم آه" يې خبر دی، نو څه حکمت الهي دی چې پر خبر يې کلمه د فاء نه کړه داخله تاچې پر سببيت د ماقبل مابعد لره يې دلالت کړی وايي؟



Scanned by CamScanner

**خواب**: ددې لپاره یې فاء سببیه نه راوړه چې ترتب د اجر پر انفاق وترک المن والاذی ښکاره خبره ده، نو راوړو ته د فاء سببیه ضرورت نسته. او نه به بېره پر منفقین مذکورین وي يعني په مستقبل الزمان کې يعني په ورځ کې د قيامت. او نه به دوئ غمجن وي پر ما مضی من امور الدنيا په دې معنا چې هغه مؤمن چې انفاق مذکور په دنيا کې نه وي کړی هغه به په آخرت کې غمجن وي چې کاشکي ما ورته انفاق کړی وایي يعني حين يرى ثواب المنفقين بلا من ولا اذى في العقبى من عجائب قدرة الله. په حديث شريف کې راغلي دي چې يوه ورځ حسن بن علي رضي الله عنه د خپلې مور فاطمة الزهراء رضي الله عنها قميص د طعام راتيولو لپاره په شپږ درهمه خرڅ کړی، يوه سائل ورته ودرېدی او د شيئالله په ويلو يې سوال خندې وکړی، حسن رضي الله عنه هغه شپږ درهمه وسائل مذکور ته ورکړه، وروسته حسن رضي الله عنه يوه اوښه په اجل او پور له يو چا څخه راتيول بائع ولاړی، حسن يو ګړی اوښه وګرځول، بل سړی ورته راغلی اوښه يې په نغدو روپو په ګټه لاهم خندې راتيول. حسن رضي الله عنه په بائع پسې وګرځېدی په دې نيت چې د اوښې قيمت به قبل حلول الاجل وهغه ته ورکړي او په ګټه به يې طعام رانسي، هرڅه سعي چې يې وکړه بائع يې پيدا نه کړی، نو عليه الصلوة والسلام ته يې دا موضوع پېش کړه. نو عليه السلام ورته وويل چې سائل رضوان خازن الجنة و، او بائع د اوښې ميکائيل عليه السلام و، او مشتري يې جبرائيل عليه السلام و فنزلت هذه الآية كذا في روح البيان

**درويش وايي** چې اکثره مفسران رح پر دې دي چې دا آيت په شان کې د عثمان بن عفان رضي الله عنه او عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه نازل سوی دی وقد مر عنقريب

**مسئله** که يو سړی فقير ته خو يو شی ورکړي لکن من يا اذى يې ورسره ملګري کړه. بعض فقهاء رح وايي چې د صدقې ثواب خو يې نسته او عذاب د من او اذى پر ده سته، او وهب بن منبه رحمه الله وايي چې لا اجر له ولا وزر عليه، او بعض متحور فقهاء رح وايي چې د اصل صدقه ثواب يې سته لکن په من او اذى سره يې تضاعف له منځه ولاړی



Scanned by CamScanner

**پوښتنه**: خدای ﷻ مونږ امر کړو په دې سره چې تاسې په صدقه سره پرچا من او احسان مه اچوئ، او سره له هغه خدای ﷻ وايي ﴿بل الله يمن عليكم آه﴾
**ځواب**: ټوله شيان که اعيان دي او که اموال دي او که افعال د عبادو دي ټوله مال او ملک د خدای ﷻ دي، او ملک د رب ﷻ د بل چا نه دی، او د بنده که مال دی او افعال دي د خدای ﷻ له خوا ځخه دي او د بل چا په ورکړي شي سره خو څوک احسان پر چانه سي اچولايی، د بنده مثال د من اچولو داسي دی لکه چي يو سړی خپل مربی ته روپی په لاس ورکړي چي فلانـي فقير ته يې ورکړي، نو مربی چي هغه روپی وهغه فقير ته ورکړي، نو حق د "من" او "اذی" لري کلا وحاشا، او د آية مذکوره مضمون خو دادی چي خدای ﷻ مسلمان ته وايي ﴿قل﴾ اې محمد ﷺ يعني ومسلمانانو ته ﴿لاتمنوا علي اسلامكم، بل الله يمن عليكم ان هداكم للايمان﴾ حسين كاشفي رحمه الله وايي

آنچه که بدهی چو دهنده خداست — منت بيهوده نهادن خطاء است
هر چه ميدهی می ده ومنت منه — وآنچه پشيمان سوی آن هم مده

سعدي شيرازي قدس سره وايي

چو انعام کردی مشو خود پرست — که من سرورم وديگران زيردست
چو بينی دعا گوی دولت هزار — خداوند را شکر نعمت گذار
که چشم از تو دارند مردبسی — نه تو چشم داری بدست کسی

په بعض رواياتو کي راغلي دي چي ابراهيم عليه السلام پنځه زره پر که پسونه درلوده، او ددې مواشيو د سپو په غاړه د سرو زرو طوقونه وه، نو يوه ملکه په صورت بشري ورته راغله او ابراهيم عليه السلام د خپلو مواشيو ننداره کوله په دښت کي، ملکي سړي وويل "سبوح قدوس رب الملائكة والروح" نو ابراهيم عليه السلام چي دا واورېدل هغه سړي ته يې وويل دا ذکر يو وار بل مکرر کړه سم نيمی ددغو مواشيو يې ستا، ملکي بل وار ذکر مذکوره مکرر کړی، نو ابراهيم ور ناري کړې چي يو وار يې بل ووايه ولک جميع ما ترى من مالي، فتعجب الملك، وقال جدير ان يتخذك الله خليلا، ته لائق ددې يې چي خدای ﷻ ته خليل خپل



Scanned by CamScanner

بللي يې ويجعل لک في الملل والنحل ذکرا جميلا، او خدای ﷻ به تاته درکوي به آينده ملتو کې ذکر جميل

پوه سه چي نحل عطف تفسير دی د ملل، ولهذا سمی الکتاب الذي صنفه محمد عبدالکريم الشهرستاني ؒ في بيان مذاهب اهل الارض. بکتاب ملل والنحل، په دې بيت بليغ عربي کي ښه فکر وواهه، درويش به يې ترجمه هم درته وکړي.

صنوان من منح سائله ومن ومن منع نائله وضن

يعني دوه مثله شی چي څوک ورکړي وسائل ته لکن من پر وکړي، داسي دی لکه چي يو سړی منع وکړي له نائل څخه يعني سائل څخه، او بخل په وکړي و حاصل البيت انه لا فرق بين المعطی المان والمانع البخيل.

**درويش وايي** چي دغه بيت که بېله حرکاتو او د شد څوک نوشته کړي شايد ډېر دقيق الفهمه سړی به يې معنا کوي. مثلا داسي يې نوشته کړي لکه دمخه چي موږ نوشته کړي وه، او که حرکات او شد ورکړي لکه دا اوس چي نوشته دي. نو په ترجمه يې سړی اسانه پوهېدی سي.

صِنْوَانِ مَنْ مَنَحَ سَائِلَهُ وَمَنَّ وَمَنْ مَنَعَ نَائِلَهُ وَضَنَّ

قوله قول معروف آه، او رد د سائل په قول معروف سره يعني په ښه خبره سره چي هغه نه سي په زهير مثلا ورته ووايي چي خدای ﷻ دي پرده وکړه، خدای ﷻ دي ښه رزق در کړي فعلا خو زه هم تنگدست يم ورنه ستاخو حق و، امثال ذالک، او بخښنه وکړه وسائل ته چي ډېر دي په عذاب کړي او په بار بار سره غوښتنه درڅخه وکړي، او الحاح په سوال کي وکړه بهتر دی تر هغه صدقې چي ازار د سائل ورسره وي

**سوال**: خير خو اسم تفضيل دی نو په مفضل عليه کي خو هم نفس خير والی غواړي، او سره له دې چي په هغه صدقه کي چي اذی او ازار ورسره وي هيڅ خيريت نه سته؟

**ځواب**: دغه صدقه چي ازار ورسره وي که څه هم په واقع کي خو هيڅ خير

والي نه لري لکن په زعم د منفق خو خیر پکښې دی.

**درویش وايي**: وقد مر الاختلاف في امثال هذه الصدقات وعلى مذهب البعض فيها. خیر ایضا فتدبر فيما مر من الاختلاف، او خدای ﷻ غني دی ستاسي د صدقاتو څخه پر فقراؤ باندي، ولي فقیر ته به خدای ﷻ له بله خوا رزق ور ورسوي، صرف ستاسي اغنیاؤ امتحان یې کاوه، امام شعبي رحمه الله وایي که مصدق خان خپل وثواب ته د صدقه ډیر محتاجه نه وباله تر فقیر وصدقه ته فقد ابطل صدقته.

**فائده**: صدقه یوازي په مال کي نه ده حصر بلکه بل تجري في کل معروف مثلا الکلمة الطیبة والشفاعة الحسنة والاعانة في حاجة احد وعیادة مریض و تشییع جنازة وتطییب قلب مسلم کل ذالک صدقه، روح البیان.

**حکایت**: یو بادشاه چي د یو ولي الله سره یې ډیر اخلاص درلودی، نو په ډیر منت او زاریو سره یوه شپه هغه ولي الله مېلمه کړی ولي الله چي ډوډی له بادشاه سره وخوړل، نو بادشاه خپل تخت او زیبا حرم سرای او ښې ښې میوه داري درختي او ډول ډول ګلان د ګل باغ یې هم ورښکاره کړه، او ولي الله ته یې وویل چي څرنګه بولي زما بادشاهي او دغه ځایونه چي ماپه تا ولیدل. ولي الله ورته وویل چي ددې ټولو یو ګوز قیمت دی، د بادشاه خوا خندي بده سوه، او په اهانت یې له کوره څخه وایستی، خیر ولي الله ولاړی خپل کور ته او دا بله شپه د بادشاه سخت پر نس درد سوه او نس یې وار په وار له باده څخه پړسېدی، آخیر الامر هر څه علاج طبي چي یې وکړی نه در آرامېدی او نه پاړسوب کښېته کېدی. خو ناچار هغه ولي الله یې راوباله، هغه چي راغلی بادشاه ورته وویل چي پر ما یو دم وکړه، ولي الله ورته وویل چي دم په دې شرط درباندي کوم چي تا به خدای ﷻ جوړ کړي لکن بادشاهي به ماته راسپاري، شاه چونکه ډیر په عذاب و، نو تر بادشاهیت یې خپل صحت خیر وباله. او ولي الله ته یې وویل که زه خدای ﷻ جوړ کړم تر شاهي تاته در تېریم، ولي الله بسم الله الرحمن الرحیم ووایه او د شاه پر نس یې لاس ورتېر کړی،

بادشاه یو غټ او اوږد بد بویه ګوز واچاوه او جوړ سو، نو بادشاه سم دلاسه ولي الله ته وویل راسه زما پر تخت کښېنه، صبا به زه حرم سرای در خالي کړم او ته به ورته راکډه سې. ولي الله ورته وویل چي زه حاجت نه لرم وداسي شاهي ته چي قیمت یې بدبویه ګوز و. لکن ته په بادشاهي او په شاهي منزله او ګل باغ مه مغروره کېږه بلکه د خدای ﷻ شکر وایه، او د خدای ﷻ په عبادت کي مال خان او مال صرف کړه ولي الله خندي ولاړی.

**درویش وایي:** چي هغه ډلي معروفة الحال دا حکایت وامثالها درواغ بولي او دا صرف موضوعي حکایات بولي، او هغه حدیث قدسي مبارک چي په شان کي د رسول کریم ﷺ راغلی دی چي په نور الظلم او ابو المنتهی کي مذکور دی، یعني لولاک لماخلقت الافلاک ولولاک لما اظهرت الربوبیة دغه معلوم الحال ډلي دا صرف موضوعي بولي، دوئ وایي چي فلاني او فلاني محدث دا حدیث موضوعي بللی دی او سره له دې چي امام مظهري رحمه الله چي لوی محدث دی د جلد لسم (۱۰) په ص (۳۰۳) کي دا غه حدیث راوړی دی او اشاره وضعف ته یې فضلا عن الوضع هم نه ده کړې، او سره له دې چي امام مظهري رحمه الله په ټوله خپل تفسیر کي چي یو حدیث راوړی، نو که ضعیف و، ضعف یې بیانوي، او که منکر وو نکارت یې یې بیانوي، ویقول في بعض الآحادیث هذا حدیث ضعیف جدا او منکر جدا الی غیر ذالک، او د امام مظهري تفسیر دغه مخالفي ډلي هم مني چي صحیح تفسیر دی

## يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُبۡطِلُواْ صَدَقَٰتِكُم بِٱلۡمَنِّ وَٱلۡأَذَىٰ

اې هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی تاسي مه باطلوئ خیراتونه خپل، یعني ثوابونه د خیراتو په من سره پر سائل او په ازار سره ددۀ، وقد مربیان صورة المن والاذی.

**یوه سه:** چي دا قضیه سالبه کلیه ده یعني بشیئ من المن والاذی د عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایله "لایدخل الجنة



Scanned by CamScanner

منان، ای في الصدقات ولاعاق ای لوالدیه او لاساتذته رواه النسائي والدارمي
**فائده:** مراد دخول اولی دی.
**فائده:** ابن عطیه رحمه الله دلته یو سوال کړی دی چې مذهب د اهل السنة والجماعة خو دادی چې سیئات حسنات نه سي باطلولای خلافا للمعتزله. نو د من او اذی په صورت کې خو حسنه چې صدقه ده له مخه صادره سوه، او وروسته سیئه په من او اذی پوري ملحق سوه، نو څرنګه په سیئه لاحقه سره حسنه سابقه باطلېږي، صاحب د روح المعاني داسي جواب ورکړی دی چې خدای ﷻ په هغه صدقه چې صاحب به یې من او اذی کوي خبر دی هغه صدقه نه قبلوي، حتی چې کرام کاتبین ته هم خدای ﷻ یوه نښاني ورښوولې ده چې هغه دا صدقه د مال او موذي په لست کي د حسناتو نه لیکي، او زموږ او د معتزله وو اختلاف په حسنه مقبوله کي دی انتهی مع الزیادة.

**كَالَّذِي يُنفِقُ مَالَهُ رِئَاءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ**

**پوه سه:** چې کلمه د کاف منصوب المحل ده مفعول مطلق دی لقوله لاتبطلوا ای ابطالا کابطال الذي چې نفقه کوي مال خپل لپاره د روښت د خلګو نو رئاء الناس منصوب دی مفعول له دی، او ایمان یې نه وي پر خدای ﷻ او پر ورځ د آخرت.
**فائده:** عدم ایمان پر خدای ﷻ او په ورځ د آخرت قید د ابطال د ریاء صدقې لره نه دی، ولې که سړی مؤمن پر خدای ﷻ او پر ورځ د آخرت هم وي، دغه صدقه یې هم په ریاء سره باطلېږي، بلکه دا قید خدای ﷻ ددې لپاره ورایه چې انفاق ریاء د مؤمن له شانه څخه نه دی بل هو من شیون الکافر، او مؤمن لره نه ښایي چې ځان د کافر سره مشابه کوي.
**پوه سه:** چې د مرائي مثال داسي دی چې یو سړي پر شکل د کالدارو یو څو کودري په یوه خلطه کي اچولي وي او په بازار کي یې په شاوي، نو خلګ چې ورته ګوري دا وایي چې ددې سړي څونده ډېري کالداري په شا دي لکن که یې یو دکاندار ته دغه کودري دی ورورې هیڅ شی نه په رانیول کېږي، نو



Scanned by CamScanner

ده د پلنډو د کوه رو جزاء صرف او صرف د خلګو خبري وي چې ددې سړي خونده کالداري په شا دي، دغه رنګه د مرايي ثواب او جزاء د خلګو خبري دي چې فلانی خونده لوی منفق دی، مګر په بازار کې د آخرت هيڅ شی له نعمتو څخه د آخرت نه په راتيول کيږي

فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ تُرَابٌ فَأَصَابَهُ وَابِلٌ فَتَرَكَهُ صَلْدًا

يعني حالت عجيبه د مرايي لکه حال د صافي ښوويې ډبري دی.

**پوه سه:** چې "صفوان" بعض اهل لغت وايي چې جمع دی، چې مفرد يې صفوانة دی، او بعض اهل لغت وايي چې مفرد ددې او جمع يې صفي دی، او پر هغه ښويې ډبري باندې لږ خاوري پرتې وي

**پوه سه:** چې لږ والی د خاورو له تنکير څخه معلوميږي، نو ورسيږي هغې ښويې ډبرې ته غټ غټ څاڅکی باران لکه د پسرلي يا د دوبي باران، نو پريږدي هغه باران هغه ډبره ښويه. يعني هغه ګرز چې پر و، باران يې خندي يوسي

لَا يَقْدِرُونَ عَلَىٰ شَيْءٍ مِّمَّا كَسَبُوا

نو قدرت نه لري دغه کسان، يعني رياکاران پر يو شي د هغه انفاق چې دوی رياء کړی وي، يعني په ورځ کې د قيامت ثواب يې نسته لانه لاثواب قطعا للشرك الخفي

**فائده** ضمير د لايقدرون راجع و موصول سابق ته دی وجمع الضمير باعتبار الجنس او الفريق

وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ ﴿٢٦٤﴾

او خدایﷻ هدايت نه کوي و هغه قوم ته چې کافر وي، يعني ما داموا محبين للكفر

**پوه سه** چې په دې آيت کې اشاره ودې ته ده چې من او اذی او رياء له خواصو څخه د کافرانو ده لعدم ايمانهم بالبعث بعد الموت والثواب والعقاب، نو بايد مسلمانان دغوی په خواصو خان ورګډ نه کړي



Scanned by CamScanner

**فائده**: بعض سلف صالحینو رح له ریاء څخه د خان ساتلو په خاطر به بې صدقه د رانده فقیر په لاس کې ور ایښوول چې دا فقیر یې هم ونه پېژني، او بعضو به د یو بده مسکین په پټو یا بله جامه پوري به یې روپۍ ور غوټه کولې وعلى هذا فقس، وفي الحديث الصحيح قال رسول اللهﷺ ان اخوف ما اخاف عليكم الشرك الاصغر، صحابه کرامو رض وویل چې شرک اصغر څه شی دی یا رسول اللهﷺ، قالﷺ الرياء" چې په ورځ د جزاء الاعمال الحسنة ریاکارانو ته خدای ﷻ وایي چې ورسئ تاسي هغو کسانو ته چې تاسي ددوئ د روئیت لپاره دا عمل صالح کاوه چې د هغو سره به یو ثواب پیدا کړئ، سعدي شیرازي قدس سره وایي:

طریقت همین که اهل یقین نکو کار بودند و تقصیر بین
بروی وریا خرقه سهلست دوخت گرش باخدای در فروشی نکوست
همان به گر آبستن گوهری که همچون صدف سر بخود دربری
وگر آوازه خواهی در اقلیم فاش برون حله کن گو درون حشوه باش

**درویش وایي**: چې په دې حدیث کې د ابو هریره رض چې مسلم یې روایت کړی دی او ګڼ شمیر مفسرینو رح یې هم روایت کړی دی داسي راغلي دي، چې خدای ﷻ چې ورځ د قیامت سي د خلګو د قضاوت لپاره نازل سي یعني متوجه سي، او هره ډله د خلګو پر زنګنو ناست وي، نو اول خدای ﷻ هغه درې قسمه خلګ راغوښتي کړي، یو حافظ القرآن وقاریه، او بل هغه سړی چې په غزاء او جهاد في سبیل الله کې وژل سوی وي، او بل هغه سړی چې خدای ﷻ اموال کثیره ورکړي وي، نو اول حافظ القرآن ته یعني علاوه تر نورو نعمتو دا ورته ووایي چې ما تاته تعلیم د ماانزلته علی رسولي نه وو کړی؟ حافظ ورته ووایي بلی یاربي، نو خدای ﷻ ورته ووایي چې تا نو څه عمل وکړی فیما علمت، یعني لرضائي؟ نو قاري ورته ووایي ما وایه قرآن په ساعاتو د شپې او د ورځي، یعني ستا د رضاء لپاره، نو خدای ﷻ ورته ووایي کذبت او ملکې هم ورته ووایي کذبت، نو خدای ﷻ ورته ووایي چې ستا په قرائت قرآن کې دا



Scanned by CamScanner

غرض و چې خلګ ووايي چې فلانی قاري دی. هغه خو ئانه وویل سوه.

**پوه سه**: چې دا تکذیب د خدایﷻ ددې قاري په قید محذوف کې دی یعني ستا د رضاء لپاره، وقد صرح بهذا القید بعض المحدثین رح. او بیا صاحب المال راوغواړي. او خدایﷻ به ورته ووايي چې ماتاته فراخي د مال نه وه درکړي، او د بل له احتیاجه مې نه وې خلاص کړی. قال بلی یارب. خدایﷻ به ورته ووايي چې تا نو څه عمل وکړی في ماآتیتک یعني من المال. هغه غني به ورته ووايي چې ما په هغه مال سره صله رحمي د اقرباوُ سره کوله. او نور خیراتونه مې کوله یعني ستا د رضی لپاره. نو خدایﷻ به ورته ووايي کذبت او ملکي به هم ورته ووايي کذبت، یعني په هغه قول چې ستا د رضا لپاره بلکه تا ددې لپاره دا خیراتونه وغیره کوله چې خلګ ووايي چې فلانی جواد دی وقد قیل، وروسته بیا هغه سړی ورته حاضر کړي چې په في سبیل الله یعني جهاد کې وژل سوی وي. نو خدایﷻ علاوه تر نورو نعمتو دا ورته ووايي چې ته پر څه باندې وژل سوی یې مجاهد ورته ووايي چې تا امر په جهاد في سبیل الله سره کړی و، نو ما هم جهاد وکړی حتی چې شهید سوم یعني لپاره د اعلاء د کلمة الله، خدایﷻ به ورته ووايي کذبت او ملکي به هم تولې ورته ووايي کذبت، یعني په دې قول کې چې لپاره د اعلاء د کلمة الله، او خدایﷻ به ورته ووايي چې تاخو ددې لپاره جهاد کاوه چې خلګ ووايي چې فلانی ډېر دلاوره سړی و، وقد قیل، وروسته علیه الصلوة والسلام داسې وویل اولئک الثلاثة اول خلق الله تسعربهم النار یوم القیامة.

**درویش وایي**: لعل المراد بکون هؤلاء اول، اولیتهم في المسلمین.

**فائده**: تولـه محدثین وایي چې نقل د حدیث بالمعنی روا دی، نو لـه دې کبله دغه مذکوره حدیث مفسرینو په مختلفو الفاظو راوړی دی، او په ترتیب کې ددغو درو کسانو هم په تفاسیرو کې فرق موجود دی، او دغه رنګه بعض مفسرینو هغه قیود مذکوره في هذا التفسیر صراحةً راوړي دي، لکن نـه داده چې سړی ماخذ ته د حدیث مذکوره چې مسلم دی رجوع وکړي.

**درویش وايي:** چي احاديث شريفه په باره كي د وخامت د رياء ببخي ډېر دي، له ابو هريره ﷺ څخه روايت دى چي رسول كريم ﷺ وويل چي خداى ﷻ وايي "انا اغنى الشركاء عن الشرك من عمل عملا اشرك فيه معي غيره تركته وشركه، وفي رواية انا منه بريئ هو للذي عمله له" رواه مسلم، وعن جندب ﷺ، من سمع اى عمل للسمعة سمع الله به، ومن يرائي يرائي الله به، متفقه عليه. يعني سمعه او رؤيت عوض دى او ثواب د آخرت ورلره نشته، وفي حديث رواه احمد ﷺ بسنده عن ابي سعيد ﷺ عن رسول الله ﷺ قال اذا جمع الله الناس يوم القيامة ليوم لاريب فيه نادى مناد من كان اشرك في عمل عمله لله احدا فليطلب ثوابه من عند غير الله فان الله اغنى الشركاء عن الشرك. وهذا بحث طويل لعله ينجر الى الملال.

**درویش وايي:** چي دا مرض وبايي په اوسني زمانه كي يې له جهالو او عوامو څخه سرايت كړى دى وعلماء او خواصو ته، وان شئت مصداق ماقلت فتفكر في الدورات المتعارفة في بلد كويټه يعني "دورة الصرف" دورة النحو" دورة المنطق" دورة اصول الفقه" وغير ذالک خصوصا ترجمة القرآن العظيم الذي انزله الله تعالى في (۲۳) من زمان النبوة، وصاحب دورة القرآن يقرئها للطلبة في اربعين يوما وغايته في شهرين، والى الله المشتكى.

# وَمَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ

**بوه سه:** چي په دې آيت كي مفسرين رح تو له مضاف محذوف بولي په قرينه د مشبه به، يعني مثال د نفقاتو د هغه كسانو چي مالونه خپل نفقه كوي او صرفوي يې لپاره د طلب د رضاء د خداى ﷻ، نو مرضات مصدر ميمي دى يعني رياء او سمعه كار د عاشق الهي نه دى، وفي المثنوي

عاشقان را شاد مانی وغم اوست ❁ دست مز دو جرت خدمت هم اوست
غیر معشوق ار تما شایی بود ❁ عشق نبود هر زه سودایی بود
عشق آن شعله است کوچون برفروخت ❁ هرچه جزء معشوق باقی جمله سوخت



Scanned by CamScanner

حافظ شیرازي مېګوید

تو بنده ګی چون ګدایان بشرط مزد مکن       که خواجه خودروش بنده پروری داند

والحاصل ان الخدمة بالاجرة لاتناسب الرجولية فان من علم علما يقينيا ان مولاه كريم يقطع قلبه عن ملاحظة الاجرة وتجيئ اجرته من ذالک الكريم على التمام والكمال.

**حكايت:** رابعه عدويه يا بصريه چي يوه مينخه وه چي د خوانی او پيغلتوب په وخت کي ډېره ښائسته وه او د بادار ظاهري ډېره خدمت ګاره وه، نو به هغه په وخت کي به په ډېرو روپو يوه مشتري د بل بائع څخه راتيول، او ډېر به هر بادار نازوله، رفته رفته چي د رابعه عمر تېرېدی کرار کرار يې حسن ظاهري مخ پر زوال کېدی، آخير الامر د سر وېښتان يې سپين سوه، او مخ يې زړ او ګونجي ګونجي سو، او له خدمته هم ولوېده، نو اخيري بادار ددي رابعه و هغه ځای ته بوتله چي مريان او مينځياني به پکښي خرڅېدلې او رانيول کېدلې، يوه ورځ تر مابنامه يې په ګنج کي د برده فروشی دروليې وه، هيڅ چا يې طلب د رانيولو ونه کړی، دوهمه ورځ هم هکذا تېره سوه، دريمه ورځ يو سړی چي په مخکښې دوو ورځو کي هم په ګنج کي حاضر و، پر رابعه يې زړه وسو چي وچ شوندان به بادار په ګنج کي درولېوه ورته راغلی مالک ته د رابعه يې وويل چي مينځه دي په څو ده، آخير الامر پر درې درهمه يې فيصله د قيمت سره وکړه، او رابعه يې رانيوله. تر ګنج چي يې راوه ايستله، نو هغه مشتري ورته وويل چي ما صرف د زړه سوي له کبله ته رانيوله. نه د خدمت لپاره ورځه زما له خوا ازاده يې، سړی چي ځندي ولاړی رابعه وه يوه دېوال ته کښېښستل، او سر يې په ګرېبان د فکر کي پټ او خپل د ځوانی د بادارانو د عزت او خدمت وختونه يې وريياد کړه، او تر سترګو يې اوښکي بهېدلې، آخير الامر يې خدای ﷻ ته مناجات وکړی چي خدايه ظاهري باداران څو تول بېوفاء ثابت سوه، ته اې خدايه چي حقيقي بادار يې اوس زه ستا وخدمت او عبادت ته مخ در اړوم ته څو به مي خپل له درباره نه شړې لکه

مجازي بادارنو چي وشرلم.

**درویش وایي:** چي چونکه د رابعه په زړه کي عشق حقیقي د معبود قرار ونیوی. نو په قرار د هغه حدیث قدسي چي خدای پاک وایي ﴿من تقرب الي شبرا تقربت الیه زراعا ومن تقرب الي زراعا تقربت الیه باعا ومن یمشي الي اتیته هرولة او کما قال﴾ (رواه کتب الصحاح اکثرها) نو خدای پاک رابعه خپله مقبوله مینخه وګڼله. وروسته رابعه یو یوه نژدې غره کي د بصرې یوه چینه پیدا کړه، او هغې ته نژدې یې یو غار د عبادت لپاره وټاکی. لږ مده به رابعه بصرې ته راغله او یو څه دوډی به یې پیدا کړه او هغه به لمر وچه کړه او میده به یې کړه او د اوبو سره به یې خوړله، وروسته تر څو مدې به د بصرې خلګو هغې ته ښه مکلفه ډوډی غره ته وروړله او دې به هغه خوړله او او شپه او ورځ به یې د خدای ﷻ لپاره لمونځونه او عبادتونه کول او روژې به یې نیولې او اذکار الهیه به یې هم ویله، نو میاشتي چي تېرېدلې مخور علماء د بصرې به ددې زیارت او ملاقات ته ورتله، روایت دی چي رابعه به زائد تر صلواتو خمسه وو په هر شبانه روزه کي دوه سوه نفلي لمونځونه هم کوله، یوه ورځ چي علماء ددې په ملاقات کي حاضر وه، رابعه ددې څخه پوښتنه وکړه چي تاسي عبادت د خدای ﷻ له څه سببه کوئ؟ بعض علماؤ وویل چي له عذاب څخه بېرېږو په ورځ کي د قیامت، رابعه ورته وویل چي تاسي خو له بېرې دا عبادت کوئ، اخلاص د خدای سره مو څه شی دی. بعضو وویل چي موږ عبادت د خدای ﷻ کوو په طمع دجنت في یوم القیامة، رابعه ورته وویل چي تاسي مزدور کاره یاست او مزدوري هم ډېله غواړئ، اخلاص د خدای ﷻ سره مو څه دی، نو ملایانو دې ته وویل چي ته نو د څه لپاره عبادت کوې؟ رابعه ورته وویل چي که خدای ﷻ له سره دوزخ نه وایی پیدا کړی فرضاً نو خو بېره له دوزخه به نه وایی، او داغه رنګه که یې جنت فرضاً نه وایی پیدا کړی، نو خو طمع د جنت به هم نه وایی، لکن خو بیا هم ما به عبادت د خدای ﷻ کولایی لانه المولی وانا امته وللمولی حق العبادة علی الاماء والعبید.



Scanned by CamScanner

**درویش وايي:** چي دغه دی مقام حقيقي د عبوديت او اخلاص د خدای ﷻ او مقام د عشق حقيقي للمولی ﷻ انتهی الحکاية.

# وَتَثْبِيتًا مِّنْ أَنفُسِهِمْ

او ثابت گرځول د خپل اسلام وي، او تصديق يې وي پر ما وعده الله من الثواب علی ذالک الانفاق.

**پوه سه** چي "وتثبيتا" عطف دی علی "ابتغاء مرضات الله" او کلمه د "من" ابتدائيه ده داخل پر منشی ده ای تثبيتا ناشيا من انفسهم، قاضي بيضاوي وايي چي له دې آيت څخه دا فهمېږي چي حکمت الهي په انفاق کي تزکيه او پاکول دي د نفس د منفق د بخل او له حب المال څخه آه، مظهري ؒ دا پر تفريع کړې ده ومن ثم قال ابو حنيفة ؒ لايجب الزکوة في مال الصبي حتی يؤديها الولي من مال الصبي، لان الحکمة في الزکوة ابتلاء المکلف ببذل ماهو شقيق الروح ابتغاء مرضاة الله وذا لايحصل باداء الولي انتهی، او بعض مفسران د آيت ترجمه داسي کوي وتثبيتا للمال الی يوم الآخرة، ولي چي د مال منفق ثواب آخيرت ته پاتېږي والمال الغير المنفق فهو الهالک ويوافق ذالک التوجيه ماروی عن ابن مسعود ؓ قال قال رسول الله ﷺ ايکم مال وارثه احب اليه من ماله (څوک دی له تاسي څخه چي مال د وارث دي خوښوي تر خپل مال) قالوا يا رسول الله ﷺ ما منا احد الا ماله احب اليه من ماله وارثه (صحابه کرامو ؓ ووېل يا رسول الله ﷺ نسته هيڅ څوک مگر خوښ خپل مال لري تر مال د وارث) قال ﷺ فان ماله ماقدم ومال وارثه ما اخر (رسول الله ووېل چي ما د سري هغه دی چي د مخه يې واستاوه يعني آخيرت ته بالانفاق لمرضاة الله، او مال د وارث هغه دی چي ده وروسته پرېښوی ورثه وو ته رواه الترمذي، غرض د عليه السلام دا وچي عموما خلگ خو کوشش کوي چي ورثه ورته ډېره شتمني پرېږدي، او د انفاق في سبيل الله څخه ډډه کوي حتی فرضي زکوة لا هم پوره نه ورکوي.

**درویش وايي**: ويدل عليه التوجيه المذكور ما روى الترمذي بسنده عن عائشة ﷺ انه عليه الصلوة والسلام ذبح شاة" يعني وروسته عليه السلام دباندې ولاړی بیرته چي کور ته راغلی، نو بې له عائشه ﷺ څخه پوښتنه وکړه ما بقى من شاة، د پسه يو څه غوښي پاته سوي؟ عائشه ﷺ ورته وويل چي يو ولی بې پاته سوی دی، ددې غرض دا و چي توله پسه مو خيرات کړی يو ولی يې کور ته پاته سو، قال رسول الله بقى كلها الا كتفها يعني توله پسه پاته سو يعني ورخي ته د آخرت. يعني هغه غوښي چي مسکینانو ته ورکړه سوې هغه باقي دي مګر يو کتف يې چي تاسي د خوراک لپاره راوګرځاوه.

**پوه سه**: چي مال د انفاق في سبيل الخير لمرضات الرب جل سلطانه کار د سخیانو دی، او د روح ښندنه په لار کي د حق ﷻ کار د عاشقانو دی، قال المولوي المعنوي مولوي جلال الدين البلخي ثم الرومي في مثنوي السامي

آن درم دا دن سخی را لائق است جان سپردن خود سخای عاشق است
نان دهی از بهر حق نانت دهند جان دهی از بهر حق جانت دهند
درشریعت مال هرکس مال اوست در طریقت مال ما مملوک اوست

حافظ شیرازي چه خوش مرائیده که میگوید

هرگز نمیرد آنکه دلش زنده شد بعشق شبت برجریده عالم دوام ما

ودر جای دیگر میگوید

واز درون پرده زعشاق مست پرس کین حال نیست زاهد عالیمقام را

حاصل آنکه زهد وتقوی چیزی دیگر است اما عشق حقیقی ازو بالاتر است

**درویش** هیچ مدان میگوید که چون عاشقان حقیقي ذات والای حق ﷻ بدیدار انوار ذاتي وصفاتي آن ذات والا صفات درپرده عمومي شب مشرف گردند، از غایت سرور اینچنین اظهار آن میکنند.

تعالی الله چه دولت دارم امشب که آمد ناگهان دلدارم امشب
چو دیدم روی خویش سجده کردم بحمدالله نکو کر دارم امشب

بدانید که مراد شاعر از آمدن دلدار ظهور انوار ذاتی است، ومراد از



Scanned by CamScanner

سجده سجده شکر است برین نعمت عظمی، که عاشقان حقیقی معبود حقیقی را در بعض شبها بطور برق خاطف میسر میشود

کشد نقش انا الحق بر زمین خون چو منصور دار کشی بر دارم امشب
برات لیلة القدری بدستم رسید از طانع بیدارم امشب
همی ترسم که حافظ محمو گردد ازین شوری که در سر دارم امشب

كَمَثَلِ جَنَّةٍ بِرَبْوَةٍ أَصَابَهَا وَابِلٌ فَآتَتْ أُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ

**پوه سه:** چې "کمثل" خبر دی د "مثل الذین آه" والمعنی مثال د نقې د هغه چا چې په مبتداء کې ذکر سوه لکه حال د هغه باغ دی چې واقع وي پر یو لوړ ځای چې مستوي مخکه يې وي، يعني چې اوبه پکښې بهيږي، اوبه نه پکښې دريږي چې مځکه يې کمزورې کړي او نه له اوبو څخه لوړه وي چې اوبه نه ور خيژي حتی چې میوه يې تږی سي په سبب د عدم الماء، وانما قيد الجنة بهذا القيد لان اشجا مثل هذه الجنة تکون احسن وازکی کمايدل عليه التجربة، او ورسيږي و باغ غټ ته څاڅکي د باران يعني چې ښې اوبه په درختو کې جاري سي، نو ورکړي دغه باغ میوه خپل هره میوه چې وي چې درختي د هغې میوي په دغه باغ کې موجودي وي، دوه مثل منصوب على الحال يعني مثل ماکانت تثمر بلا وابل

فَإِنْ لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ ۗ

او که دغه باغ ته نه ورسيږي وابل فطل يعني يکفيها هغه باران چې کوچني څاڅکي يې وي، والفرض ان تلک الجنة تثمر على تقديري اصابة الوابل وعلى تقدير اصابة الطل، ولي چې پر مرتفعه مستوي مځکه چې باغ وي هوا يې سره وي، نو په هر صورت میوه کوي، والحاصل ان نفقات د مؤمن نه ضائع کيږي بلکه که نفقات د مؤمن يو داسي شی ورضم سي چې تضاعف د اجر واجبوي مثل حسن الاخلاص ووضعها في المواضع اللائقة لها تتفاعف اجرها وثوابها الى ماشاء الله تعالى اولايضم اليها مايوجب التضاعف لايبطل اصل العمل ويوجب الاجر والثواب لامحالة

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿٢٦٥﴾

او خدای ﷻ په ټولو عملو ستاسي خبر دی.

**پوه سه:** چي دا جمله تعلق په دواړو ډلو پوري لري يعني المنفقين بالمن والاذى والرياء، نو د هغو لپاره وعيد دی، او د منفقين لمرضات الله، نو د هغو لپاره وعد دی.

**پوه سه:** چي دا راتلونکی آيت ربط لري د هغه آيت سره يا ايها الذين آمنوا لاتبطلوا "الآية.

اَيَوَدُّ اَحَدُكُمْ اَنْ تَكُوْنَ لَهٗ جَنَّةٌ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۙ لَهٗ فِيْهَا مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ ۙ

**پوه سه:** چي همزه لپاره د استفهام انکاري دی، يعني نه ده خوښه د يوه ستاسي چي ده لره دي وي يو باغ د خورما او د انګورو، او بهيږي لاندي تر درختو د هغه باغ ولي د اوبو، او ده لره علاوه تر انګورو او خورما په دغه باغ کي ټولي مېوې موجودي وي، لکه اينځر شپتالو انار وغيرها.

**پوښتنه:** د آيت په نص سره دا ثابته سوه چي په دې باغ کي ټولي مېوې موجودي وي، نو تخصيص د خرما او د انګورو د څه لپاره وسو؟

**ځواب:** تخصيص يې لپاره د شرف ددغو دوو مېوو وکثرة منافعهما وسو.

وَاَصَابَهُ الْكِبَرُ

او ومالک د باغ ته کلان سالي رسېدلې وي، يعني چي پر کسب او مزدوری قدرت نه لري.

**پوه سه:** چي کلمه د واو لپاره د حال، او قد ورسره مقدر دی کماتقرر في النحو، ای والحال انه قد اصابه الكبر.

وَلَهٗ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَآءُ ۪

او مالک لره د باغ اولاد وي کوچنيان نر او ښځي يعني هغه هم پر کسب او مزدوری قدرت نه لري، والجملة للعطف على اصابه.



Scanned by CamScanner

فَاَصَابَهَآ اِعۡصَارٌ فِیۡهِ نَارٌ فَاحۡتَرَقَتۡ ؕ

نو باغ ته ورسېږي اعصار، اعصار هغه تند باد دی چې لوړې خوا ته پورته کېږي لکه يو ميل، او په هغه اعصار کې اور وي يعني سخت تود باد وي، نو باغ يې وسوځل سي، يعني په سبب د تود باد، او ټولې مېوې له منځه ولاړې سي، والحاصل لکه د دغه باغ والا چې د کامل احتياج دده ومېوې ته د باغ احتراق د مېوو د باغ يې نه دی خوښ په دار الفنا دنيا کې، نو څرنګه خوښ لري يو ستاسې چې حسنات او انفاق دده لغوه سي په سبب د من يا د اذی يا د رياء په ورځ کې د قيامت چې دی و هغو حسناتو ته کامل حاجت لري په دار البقاء کې، فيخيب وتحسر ابدا.

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الۡاٰيٰتِ لَعَلَّكُمۡ تَتَفَكَّرُوۡنَ ﴿۲۶۶﴾

او دغسې خدای ﷻ په قرآن کې تاسې ته يعني ستاسې د هدايت لپاره آيات بيانوي، ددې لپاره چې تاسې فکر وکړئ په هغو آياتو او په مقتضی د هغو آيتو عمل وکړي لئلا يلحقکم تحسر وندامة يوم القيامة، مع انه لا ينفع يومئيذ کمالايخفی.

**موعظت:** عاقل سړی هغه دی چې عبادت د خدای ﷻ په اخلاص کوي، او همېشه خدای ﷻ ته التجاء کوي چې ما له طاغوت خفي څخه او ما له شرک خفي څخه خلاص کړي، وهو الرياء والسمعة، فان الخلاص من هاتين الآفتين مبني عن الاخلاص.

قال السعدي رحمه الله

همينست پندت اګر بشنوی ... که ګر خار کاری سمن نه دروی

يعني که چا تخم د خوزانو وکړی، د ګلانو حاصل به پر وانه خلې، وفي المثل العربي وبالکاس الذي تسقی تشرب، او د علي ﷺ بن ابي طالب څخه روايت دی چې عليه الصلوة والسلام ووېل چې صدقه چې له لاسه د صاحب الصدقه ووځي دمځه تر دې چې په لاس کې د سائل واقع کېږي پنځه خبرې



Scanned by CamScanner

کوي يعني باللسان الحال
(۱) تقول كنت قليلة فكثرتني (۲) كنت صغيرة فكبرتني (۳) وكنت عدوا فاجبتني (۴) وكنت فانيا فابقيتني (۵) وكنت محروسا والآن صرت حار سالک، كذا في روح البيان، وقال بعض الشعراء:

زان پیش که دست ساقی دهر — در جام مرارت افگند زهر
از سر بنه این کلاه و دستار — جهدی بکن و دلی بدست آر
کین سر همه سالی باکله نیست — وین روی همیشه همچو مه نیست

**درويش وايي:** ومن بلاغات البرسوي رحمه الله فمن ساعده المال فلينفق في سبيل الله الملک المتعال وليشكر على غني ومدد فلا يقطع رجاء احد.

**فائده:** په صحيح حديث کې راغلي دي من قطع رجاء من التجاء اليه قطع الله رجائه. د تاريخ په پاڼو کې راغلي دي چې يو عالم چې دا حديث ووايه ډېر بې وژړل، او په دې کې حيران پاته سو چې ددې حديث په تر څه اندازې مراعات او عمل به په کوي، نو يو صالح عالم عامل ته روان سو چې ددې حديث په باره کې پوښتنه ځني وکړي، او د خپل زړه شک زائل کړي، د هغه صالح ځای ته ورغلی، د هغه صالح په لاس کې ډوډۍ ده او سپي ته يې نيولې ده، سپي ډوډۍ خوړله، او هغه عالم سلام ورته وواېه هغه صالح وعليک ورته وواېه او ورته ولاړ نه سو لکه پخوا چې به دغه عالم ددې صالح وملاقات ته ورغلی هغه به ورته ولاړ سو، او بنه احترام د هغه عالم به يې وکړی، نو چې سپي په ډوډۍ موړ سو، نو هغه صالح سړی ورته ولاړ سو او د عالم مېلمه سره يې هغسې لطف او پوښتنه وکړه، او ددې په عذر کې چې زه اول ولې ورتاته نه سوم ولاړ، داسې يې ووېل لم اقم امتثالا لقوله عليه السلام من رجاء الى آخر الحديث، نو دې سپي ماته اميد ډوډۍ راوړی و، نو زه تاته نه سوم ولاړ خشية ان اقطع رجائه، نو عالم چې دا خبره د صالح ولي واورېدله، نو حيران پاته سو، يعني په دې معنا چې د انسان رجاء وسړي ته خو څه کوې د سپي رجاء به هم سړی نه قطع کوي، نو يې بالا نوره پوښتنه نه ځني وکړه، او

تعجب یې وکړی وکرامت ته د صالح په باب کي د ولایت.

**فوائد شتی:** په روایت کي د معاذ راغلي دي چي آنحضرت ﷺ چي دی ویمن ته د حاکم په توګه استاوه، نو په اخیر ملاقات کي یې د وداع وعلیه السلام ته وویل ماته وصیت وکړه. علیه السلام ورته وویل اخلص دینک یکفیک العمل القلیل، ته خلاص وګرځوه عملونه د دین خپل یعني د ریاء او سمعه څخه، نو ستا لپاره کافي دی لږ عمل. وفي الفتاوی التاتارخانیة که چا لمونځ شروع کړی خالصا لله تعالی، وروسته یې په زړه کي ریاء ورو ګرځېدل فهو علی ما افتتح علیه یعني لمونځ یې پر اخلاص باقي دی عارضي ریاء تاوان نه ورته کوي. والریاء انه لو خلی عن الناس لایصلی مثلا صلوٰة التهجد، او یا صلوٰة الضحی الی غیر ذالک ولو کان مع الناس یصلی.

**مسئله:** که یو سړي په اجتماع کي د خلګو لمونځ په تعدیل الارکان او خشوع سره کاوه، او چي یوازي به یې کاوه هغه تعدیل وغیره به یې نه کوله. نو دې سړي لره ثواب د اصل لمانځه سته نه د تعدیل وغیره.

**حکایت:** په اسلامي تاریخ کي وایي چي د یو شیخ الوقت یو حاکم الوقت بناء علی حسن الظن ډېر معتقد او مخلص و تقریبا لکه مرید. نو حاکم الوقت په ډېر عجز او نیاز شیخ الوقت ته دعوت د مهماني ورکړی او شیخ الوقت دا دعوت قبول کړی نو حاکم الوقت یو ډېره فوق العادة مطعومات شهیه ورته تیار کړه مابنام مهماني ته شیخ الوقت د خپله خانه سره یو نابالغه عاقل زوی هم را راهي کړی، خیر د حاکم کور ته چي ورغله حاکم الوقت یې ډېر احترام وکړی، او ګرده فامیل د حاکم الوقت خوشحاله دي، چي نن فلاني شیخ مرشد زمونږ کور ته راغلی دی، خیر د ډوډۍ چي وخت سو، نوکرانو د حاکم الوقت سترخوان او ډوډۍ او رقم رقم خواړه پر پراته وه حاضر کړه شیخ الوقت له یوه غابه په درو ګوتو یوه ګوله وکړه او له بل او بل غابه څخه یې هم، غرض دا چي دا ډېري محدودي ګولي یې وخوړلې او ډوډۍ یې بس کړه. حاکم الوقت ورته وویل صاحبه ډوډۍ دي ولي بس کړه شیخ ورته وویل چي زما همېشه دومره



Scanned by CamScanner

خوارک دی، ولي که په ډک نس ډوډی وخورم د شپې تهجد او ذکر د خدای ﷻ نه سم کولای، هرڅه چي حاکم الوقت اصرار وکړی چي ته مهرباني وکړه يو څو ګولۍ ډوډۍ زموږ لپاره وخوره، خو شيخ الوقت ونه منله، نو د ماخستن د لمانځه وخت چي داخل سو، حاکم الوقت شيخ ته وويل چي د ماخستن لمونځ په جماعت تبرکا زموږ په مهمان خانه کي به راکوې شيخ صاحب دمخه سو او حاکم الوقت او نوکرانو او د شيخ زوی تړونو اقتداء پسي وکړه، نو شيخ ښه په تعديل الارکان او خشوع سره پر طريقه د احسان لمونځ ورکړی، او تر لمانځه وروسته شيخ له حاکم څخه رخصت سو، کور ته چي ورغلی ماينې ته يې وويل چي سترخوان راواخله زه وږی يم، ماينې يې ورته وويل چي د حاکم له کوره څنګه وږی راغلې، شيخ ورته وويل چي ډوډۍ خو ډېره مکلفه وه لکن ما يې قصد ډېره ونه خوړل چي بيا د حاکم الوقت اعتقاد زما څخه بدلېدی. ولي چي دده به دا بدګمانۍ پيدا سوې وايي چي دا څونده خېټور پير دی، خير ماينې يې سترخوان ورته راواخستی او شيخ په وچه ډوډۍ خان تر پوزې پورې موړ کړی، زوی يې ورته وويل چي بابا لمونځ هم راوګرځوه، ولي چي پلاره تا تر اوسه پورې په کور کي په داسي خشوع او خضوع او احسان سره لمونځ نه وو کړی.

**درويش وايي**: چي دا يو مثال د رياء په هيئت کي د لمانځه و، په حديث شريف کي چي روايت يې ابو ذر الغفاري ﷺ کړی دی داسي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام وده ته وويل يا اباذر جدد السفينة فان البحر عميق، کښتۍ دي نوې کړه ولي چي درياب ژور دی "واکثر الزاد فان السفر بعيد" او توښه ډېره درسره واخله ولي چي سفر لېري دی، واقل من الحمولة فان الطريق مخوف، او بار دي سپک کړه ولي چي لار د بېرې ده، واخلص العمل فان المناقد بصير، او عمل په اخلاص کي يعني له رياء څخه خلاص کړه ولي چي کتونکي د عمل يعني خدای ﷻ د عمل په حال دانا دی.

**پوه سه**: چي مراد له تجديد څخه د کښتۍ تکرار دی د کلمة التوحيد "لا اله الا الله" او مراد له درياب څخه جهنم دی، او مراد له سفر څخه سفر د

اخیرت دی. کماقال الله تعالی "في یوم کان مقداره خمسین الف سنة آه" او زاد النعیم طاعات دي، او زاد الجحیم سیئات دي، او مراد په حمولة سره گنهونه دي، او مراد له اقلال او لږوالي ځخه نفي بالکلیة دي، او سبب د خوف د لاړي دادی چې ملکي د دوږخ چې زبانیه یې بولي درانه باروړو والا یعني غټ گناه کاران دلارې ځخه گرځوي. او هورې دروند بار د سړي بل څوک نه ورسره اخلي که څه هم قریب وي "ولا تزر وازرة وزر اخری" وقال الله تعالی وان تدع مثقلة الی حملها لایحمل منه شیئ وان کان ذا قربی" او مراد له ناقد ځخه رب جل وعلاء دی. ولي خدای ﷻ نه قبلوي مگر هغه عمل چې خالي وي د شرک او د ریاء ځخه. لماورد في الحدیث النبوي ﷺ القدسي "انا غني الشرکا، فمن عمل لي واشرک فیه غیري فاني منه بریئ" وقد مر مثل هذا الحدیث من قبل ایضا. برسوي رحمه الله مع زیادة.

**درویش وایي:** چې له وهب بن منبه ځخه روایت دی په قول د روح البیان چې خدای ﷻ ابلیس امر کړی چې ورسه محمد ﷺ او دده ټولو پوښتونو ته رښتیا ځوابونه ووایه، نو ابلیس په صورت کې د یو سپین ږیري سړي چې په په لاس کې یې لکړه وه وعلیه الصلوة والسلام ته راغلی، علیه الصلوة والسلام ورته وویل چې ته څوک یې ده ورته وویل انا ابلیس. علیه الصلوة والسلام ورته وویل د څه شي لپاره راغلی یې، ابلیس ورته وویل چې خدای ﷻ امر کړی یم چې تاله درسم او ستا وپوښتنو ته ځوابونه ووایم. علیه السلام وابلیس ته وویل چې ستا دښمنان څو دي زما په امت کې. ابلیس ورته وویل پنځلس دي.

(۱) اول دړ ټولو لوی دښمن مي ته یې.

(۲) امام د مسلمانانو چې عادل وي.

(۳) هغه غني سړی چې تواضع لري.

(۴) هغه سوداگر دی چې رښتیا وایي.

(۵) هغه عالم دی چې له خدایه بیربږي.

(۶) هغه مسلمان چې وبل ته نصیحت کوي، او د خیر ولاري ته یې رابولي.

(۷) هغه مسلمان دی چې زړه سوی لري یعني رحم دله وي.
(۸) هغه سړی دی چې له ګناه څخه توبه وکاږي او پر توبه ټینګ وي.
(۹) هغه مسلمان دی چې له حرامو څخه پرهېز کوي.
(۱۰) هغه مسلمان دی چې همېشه په اوداسه ګرځي.
(۱۱) هغه مؤمن دی چې صدقات ډېر کوي یعنئ فرضي او نفلي.
(۱۲) هغه مسلمان دی چې د خلګو سره په ښوو اخلاقو ژوند کوي.
(۱۳) هغه مسلمان دی چې خلګو ته يې نفع رسېږي يعني يا ديني يا دنيوي.
(۱۴) حافظ القرآن دی.
(۱۵) چې د شپې تهجد کوي او خلګ بیده وي.
علیه الصلوة والسلام ورته وویل چې څو دي ستا رفیقان زما په امت کي.
ابلیس ورته وویل لس دي.
(۱) باچا دی ظالم.
(۲) غني دی متکبر.
(۳) سوداګر دی خائن.
(۴) شارب الخمر.
(۵) کیسه بر (جیب وهونکی)
(۶) ریاء کاره.
(۷) خوړونکی د مال د یتیم.
(۸) مانع الزکوة.
(۹) طول امل والا.
(۱۰) تارک الصلوة. سعدي شیرازي وایي.

| | |
|---|---|
| غم و شادمانی نماند ولیک | جزای عمل ماند و نام نیک |
| کرم پای داردنه دیهیم وتخت | بده کزتو این ماند ای نیک بخت |
| مکن تکیه بر مال وجاه وحشم | که پیش از تو بودست وبعد از تو هم |

**درویش وایي:** چي پر ناقل په اتفاق د علماؤ تصحیح د نقل لازمه ده

تصحیح د منقول نـه ده پـر لازمـه، فتامـل. علاج الریـاء والسـمعة مـن شـرح الاسباب الروحانية.

**بوه سه:** چې علاج د ریاء دوه قسمه دی، یو دادی چې د ریاء اصول او ریښه سرې ورقطع کړي هغه په دې سره امکان پذیر دی چې سړی اسباب د ریاء له منځه یوسي، نو پوه سه چې اصل اسباب د ریاء درې شیان دي حب الدنیا، او شهوات او لذات فانیه، او ترجیح ورکول پر لذاتو د آخرت، او بل دادی چې سړی به حتی الامکان دفع د ریاء کوي په شروع کې د عبادت که بدني او که مالي وي، او بیا د هغې ریا چې په دفع کې به هم کوشش کوئ چې په منځ کې دعبادت ورته پیښیږي، نو په شروع کې د عبادت دي سړی وزړه ته متوجه سي چې یو شی له اثارو څخه د رَیاء پکښې سته او که نه، او که وه دفع دې کړي او عزم مصمم دي وکړي چې تر اخیره پوري د عبادت به زه پر دغه اخلاص یم. لکن شیطان خو نو تانه پریږدي پر دغه اخلاص بلکه د عبادت په منځ کې ریائي کارونه په زړه کې در اچوي.

**پوه سه:** چې خطرات د شیطان درې قسمه دي، اول دادی چې کاشکې ستا په دغه عبادت خلګ خبر وایي نو به ښه وایي، دویم دا چې کاشکې څوک راغلی وایی او زه یې په دې عبادت باندې لیدلی وایی، دریم دا چې کاشکې خلګو زما تعریف کولایی، او ماته یوه رتبه ددوئ په زړو کې وریبدا سوې وایی، نو سړی دې کوشش کوي چې دا درې خطرې دې هم لـه زړه څخه وباسي، قال السعدي الشیرازي رحمه الله

| | |
|---|---|
| قیامت کسی بینی اندر بهشت | که معنا طلب کرد ودعوی بهشت |
| گناه کار اندیشه ناک از خدای | بسی بهتر از عابد خود نمای |
| اللهم اجعلنا من طالبی المعانی | لا من اصحاب مجرد الدعاوی |

لکن الوصول الی هذه الرتبة کالکبریت، الاحمر وتوفیق الوصول الیـه من الله الاکبر، باکریمان کارها دشوار نیست.



Scanned by CamScanner

## يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْفِقُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا كَسَبْتُمْ

اې هغه کسانو چې ایمان يې راوړی تاسې صرفوئ يعنې په لاره کې د خدای ﷻ بعض د طيباتو د هغه مال چې تاسې گټلی دی ز

**پوه سه**: چې د "طيبات" تفسير بعض مفسرينو په حلالو مالونو سره کړی دی. او بعض وايي چې مراد له طيباتو ښه جياد او ښه مالونه دي لقوله تعالى ﴿لن تنالوا لبر حتى تنفقوا مما تحبون﴾ او علامه زمخشري رحمه الله په کشاف کې داسې تفسير کړی دی "من جياد ماکسبتم" او بعض حواشي د کشاف توجيه ددې تفسير داسې کړې ده وانما فسر الطيب بالجيد دون الحلال لان الحل استفيد من الامر لان الانفاق من الحرام لايؤمربه وبقرينة قوله تعالى "ولاتيمموا الخبيث منه تنفقون الآية" لان المراد هناک الردي من المال بدليل سياق الآية هناک کما لايخفى

## وَمِمَّآ اَخْرَجْنَا لَكُمْ مِّنَ الْاَرْضِ

او بعض له طيباتو ښه د هغو مالو چې ما را ايستلي دي ستاسې د نفع لپاره له مځکې ښه، لکه مېوې رنگارنگ، او دانې قسم قسم او معدنيات رقم رقم.

**پوه سه**: چې د ابن مسعود رضي الله عنه ښه روايت دی چې عليه الصلوة والسلام ووېل "لايکسب عبد مال حرام فيتصدق منه فيقبل منه ولا ينفق منه فيبارک له فيه ولا يترک خلف ظهره الاکان زادا له الى النار لا يمحو السيئ بالسيئ ولکن يمحو السيئ بالحسن ان الخبيث لا يمحو الخبيث" رواه احمد رحمه الله.

**فائده**: داؤد ظاهري وايي چې زکوة نسته مگر په نقودو کې او په څهارپايانو کې، او دا آيت د ابطال د داؤد ظاهري دی، او حجت دی د جمهورو پر ده باندې، ولې چې خدای ﷻ وايي "من طيبت ماکسبتم" او طيبات ماکسبتم عام دی عروض يعني قالين کمبلي موټران او مځکو او سرايونو ته هم شامل دی، لکن چې دا مذکوره شيان د تجارت لپاره وي.



Scanned by CamScanner

**درویش وایي**: وعلیه انعقد الاجماع ولایبالي بمخالفة داود الظاهري واتباعه من اهل الظواهر.

**پوښتنه**: نیت د تجارت په مذکوره شیانو کې ولې د زکوة شرط دی، او په نقودو او چهارپایانو کې شرط نه دی؟

**ځواب**: په اجماع د امت محمدیه ﷺ نماء شرط ده د وجوب الزکوة لپاره ولانمو في الاشياء المذكورة الا بنية التجارة، ويدل عليه ما روى عن ابن عمر رضي الله عنه ليس في العروض زكوة الا ماكان للتجارة" رواه الدار القطني.

**اختلاف الائمة**: که عروض لپاره د تجارت څو کاله خرڅ نه سوه، امام مالک رحمه الله وایي چې هیڅ زکوة نسته پکښې وان طال زمانه او چې خرڅ سوه یو زکوة پر لازم دی، او نور دري امامان رحمهم الله وایي چې د هر کال زکوة پر واجب دی وان لم یبع لان قوله علیه الصلوة والسلام یخرج الزکوة ممایعد للبیع عام یشمل لمابیع اولا.

**تفریع**: په سرای کې د استوګنې د سړي زکوة نسته هر څو قیمت چې لري، او که یو کوچنی سرای وي لکن د تجارت لپاره وي، په هغه کې زکوة سته، او د خپلې سپرلیا لپاره هرڅو لوړ قیمته موټر چې وي یعني که څه هم په لکوو روپو قیمت لري زکوة نسته پکښې، او که یو بېکاره موټر چې سړي د تجارت لپاره رانیولی وي که یې قیمت د زکوة نصاب ته رسېدی زکوة یې پر مالک واجب دی.

**درویش وایي**: وعلى هذا القياس مفروشات البيت، لکه کمبلې قالینې وظروف الاطعمة والسيارة للاجرة دون التجارة وغيرها من الامور الغير النامية الا بنية التجارة.

**درویش وایي**: چې چونکه کتابونه د فقه شریفې متکفل د تفاصیلو د مسائلو فقیه وو دي، نو ځکه درویش تفصیلي لست د مایجب فیه الزکات ومالا یجب فیه الزکوة په خپل تفسیر کې وبیان ته نه وسپاره لکن مع ذالک قالوا مالایدرک کله لایترک کله، فلا اعتراض على العبد الضعيف في بيان بعض المسائل الفقهية في التفسير، قوله تعالى "ومما اخرجناه آه.



Scanned by CamScanner

**پوه سه**: مفسرین رح وايي چي دا آيت په نفلي صدقاتو کي نازل دی واستدلوا بما رواه الشيخان واحمد والترمذي رح عن انس بن مالك رض قال قال رسول الله ﷺ "ما من مسلم يغرس غرسا او يزرع زرعا فياكل منه انسان او طير او بهيمة الا كانت له به صدقة. ويقولون ان هذا الا صدقة نفلية، والصحيح ان الآية في الزكوة، ولي چي ومما اخرجنا لكم آه داخل دی لاندي تر انفقوا وهو امر والامر للوجوب. فلا وجه لحملها على التطوع، نو مقصود په دې آيت کي امر دی په اخراج سره د عشر ما خرج من الارض.

**مسئله**: د ائمة رح ټولو اتفاق دی چي عشر په خورما او انگورو کي او په هغه دانو کي چي قوت په کېږي لکه غنم، جوار، وريښي ورجي وغيرها که چېري دغه درختي ياکښت اوبېدی د اسمان په اوبو يعني ديمه کښت و، او يا په چينو او يا د شېلو په اوبو او يا د رودو په اوبو چي په هغه کي کوم تکليف زارع ته نه وي متوجه. او نصف عشر دی که په سولغو د اوښانو يا غويو اوبېدی.

**پوه سه**: چي نن صبا چي کښتونه او درختي په باوړيو اوبېږي د مشينانو په ذريعه، زما شخصي رايه داده چي په دې غلو او باغو کي نصف عشر دی لان في سيقها موئنة ظاهرة للعوام والخواص.

**درويش وايي**: چي زما په شخصي رايه زه څوک نه مکلفوم ولعل العلماء لهم دلائل بحوالة الكتب الفقهية راجحة مماقلت على ان فيها العشر فليفتوا بذالك ويلقوا رائ العبد الضعيف في الحش، او پر دې هم علماء متفق دي چي په ونو او په لرگو چي مقصوداً يې اشتغال د مځکي نه وي په کړي، بلکه خدايي وابنه او لرگي وي زکوة نسته پکښي.

**تفريع**: نو په شپشتو کي او په شوتلو کي زکوة سته، ولي چي په هغو مقصوداً خلگ مځکي مشغول کوي. البته په چارتراشو او د غرو په لرگو چي د خدای ﷻ په قدرت سره شنه کېږي، که هر څو لوړ قيمتونه لري زکوة نسته.

**مسئله**: په ماسوا کي د اقسامو مذکوره وو اختلاف د ائمه موجود دی، د سراج الائمة ابو حنيفه رح په نېز په جميع اقسامو کي د ماخرج من الارض

مقصود ا اشتغال الارض بها زکوة سته که داني وي لکه تخمونه د بعض نباتاتو، او که میوي وي لکه شفتالو، اینځر، شلیل، الوبالو وغیرها او که له قسمه څخه د شنو شیانو وي، لکه رومیان، بانجن، سبزي، ترتېزک، ګندنه، پیاز وغیرها زکوة سته، د امام اعظم رحمه الله دلیل عموم د آیة مذکوره دی یعني وممّا اخرجنا آه، او بل دلیل یې عموم هغه حدیث مبارک دی چي بخاري، مسلم، ابو داوٗد، نسائي، او ابن ماجه له مختلفو صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه روایت کړی دی، یعني قوله علیه السلام فیما سقت السماء والعیون الی اخیر الحدیث کمامر عنقریب، او مذهب د امام مالک او امام شافعي رح دادی چي په هغو میوو او دانو کي چي قوت په کېږي لکه خرما، انګور، غنم، اوربشي، جواري، نخود، ورجي وغیرها کي زکوة سته لافي غیرها، او د احمد، ابو یوسف او محمد رح مذهب دادی چي هغه میوې داني چي د خلګو په لاسونو کي پاتېږي، او کېلي او یا وزني وي زکوة سته لافي غیرها، نو په پسته، بادام، زعفرانو او کنجدو وغیرها کي زکوة سته، او په خضرواتو کي زکوة نسته، دوئ دا دلیل وایي چي د حدیث طویل په یوه برخه کي داسي راغلي دي، واما القثاء یعني بادرنګ او بطیخ یعني خټکی او انار او نیشکر او خضروات فعفو عفی عنها رسول الله صلی الله علیه وسلم.

**درویش وایي**: چي دا حدیث له معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه دار قطني، بیهقي او حاکم نقل کړی دی، لکن دا حدیث محدثانو ضعیف ګڼلی دی، والتفصیل في شروح کتب الحدیث وفي المظهري ایضا، نور حدیثونه چي په عدم الزکوة في الخضروات دوئ ذکر کړي دي ټوله د ضعف او انقطاع څخه خالي نه دي، امام مظهري رحمه الله په دغو حدیثو کي ډېر طویل او په زړه پوري بیان کړی، د درویش تفسیر چونکه د عوامو وروڼو او د مساجدو د امامانو او خطیبانو لپاره دی، نو څکه جرح او تعدیل درویش په خپل تفسیر کي صرف نظر کړه.

**اختلاف الائمة**: یوه سه" چي اشتراط د نصاب په ماسوکي د نقودو او حیواناتو اختلاف دی، امام اعظم رحمه الله وایي لایشترط النصاب فیما خرج من

الارض بل تجب الزکوة فیها وان قل للعمومات المذکورة من الآیة الشریفة والآحادیث کمامر من قبل. او دا مذهب د ابو حنیفه رحمه الله مروي د عمر بن عبد العزیز، مجاهد او د ابراهیم نخعي رح څخه دی، او امام شافعي، مالک، احمد، ابو یوسف او محمد رح وایي چي یشترط النصاب فیما خرج من الارض وذالک النصاب پنځه وسق دی چي هر وسق به یې شپیته کاسي وي په هغو شیانو چي په اوسوقو خرڅیږي، او که په اوسوقو نه خرڅیږي، بیا یې نصاب هغه لوړ مایقدر به ذالک الجنس پنځه عدد دی، نو په پنبه کي په نیز د محمد پنځه انډي د وښانو دی چي هر انډی به یې دري سوه منه وي په من شرعي، او په زعفرانو کي پنځه منه شرعي نصاب دی.

**درویش وایي:** والدلائل والاجوبة من الطرفین مذکورة في مطولات کتب الفقه الحنفي، فاکتفینا بایراد المذاهب فقط، قال الله تعالی

## وَلَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيثَ مِنْهُ تُنفِقُونَ

او تاسي قصد مه کوئ وردي او خسیس او خبیث مال ته، چي تاسي د هغه خبیث او ردي څخه انفاق کوئ.

**پوه سه:** چي جار ومجرور په "تنفقون" پوري تعلق لري وقدم لرعایة الفواصل والجملة حال من فاعل تیمموا، له ابن عباس رض څخه روایت دی چي بعض اهل النخل به چواړي یعني د بیکاري خورما څخه تصدق کاوه، یعني عشر به یې روکاوه فنهوا عنه

**. پوه سه:** چي خبیث ضد د طیب دی چي په آیت سابقه کي ذکر سو، او ددوئ دوو دري معناوي دي (۱) الطیب بمعنی الحلال والخبیث بمعنی الحرام (۲) الطیب بمعنی الطاهر، والخبیث بمعنی النجس (۳) والطیب بمعنی الحسن والخبیث بمعنی الردي، والآیة السابقة وهذه الآیة وان جوز تفسیر الطیب والخبیث فیهما بالمعاني الثلاثة لکن قوله تعالی ولستم بآخذي الآیة والحدیث المروي عن ابن عباس رض المذکور آنفاً یدل علی ان المراد بالطیب الحسن وبالخبیث الردي والله اعلم بالصواب، وللناس فیما یعشقون مذاهب.



Scanned by CamScanner

## وَلَسْتُمْ بِاٰخِذِيْهِ

**بوه سه:** چي دا جمله حال له "واو" څخه د "تنفقون" ده، يعني حال دا دى چي تاسي نه اخلئ دغه خبيث مال په خپلو معاملاتو کي

## اِلَّآ اَنْ تُغْمِضُوْا فِيْهِ ؕ

**بوه سه:** چي دا استثناء مفرغ ده والمعنى لاتاء خذون هذا الخبيث في وقت من الاوقات او بوجه من الوجوه الاوقت اغماضكم يعني چي ستر ګي پر پټي کړئ، او "الا باغماضكم" کي ان مصدريه وي، او وخت نه وي ورسره مقدر کمافي المعنى الاول يعني که ستاسي پر يو سړي حق باندي وي او هغه تاسي ته دغه خبيث او ردي مال د جنس ستا د حق راوړي تاسي يې نه خندي قبلوئ مگر هغه وخت چي پر دنائت او خيانت يې ستر ګي پټي کړئ، يعني پوروړی ستا بد سړی وي، او ښه مال نه سې خندي اخستلای، نو دغه ردي مال غنيمت وبولئ او خندي وايه خلئ:

## وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ ﴿۲۶۷﴾

او په دې پوه سئ چي خدای ﷻ غني او بې پرواه دی ستاسي د انفاق او ستاسي له صدقاتو څخه، او امر د انفاق چي يې درته کړی دی ستاسي د نفع لپاره دی.

**بوه سه:** چي په دې آيت کي توبيخ او سرزنش دی ودغو منفقينو ته د خبيث او د ردي اموالو في سبيل الله للفقراء والمساکين ته، او خدای ﷻ مستحق دی د حمد که يې څوک حمد وايي د هغه نفع ده، خدای ﷻ د چا وحمد ته محتاج نه دی.

**بوه سه:** چي د متصدق مثال د کښت کونکي دی، او د کښت ګر چي اعتقاد وي پر خپل حصول د دانو له کښته څخه، نو دی کوشش کوي په کښت کي د يو ښه تخم برابرولو، ولي چي دی په دې پوهېږي چي ښه والی د تخم سبب دی د ښه حاصل او ډېر حاصل، نو د متصدق چي هر څو عقيده ټينګه

وي او ایمان دده پر خدای ﷻ او پر بعث بعد الموت باندي او پر ثواب او عقاب باندي وي، نو دی یو خو ژباتي صدقې کوي، او بل هغه ښه شی ورکوي، ولې خو دده یقین دی چې خدای ﷻ لایظلم مثقال ذرة وان یاتک حسنة یضاعفها ویؤت من لدنه اجرا عظیما، او بنده چې خپل محبوب شی وخدای ﷻ ته ورکړي، خدای هم خپل له خوا وده ته محبوب شي ورکوي، قال الله ﷻ هل جزاء الاحسان الا الاحسان.

**مسئله**: ددې آیت مبارک څخه دا وفهمېده چې کسب روا دی، او ښه د کسبو تجارت او زراعت دی، قال علیه الصلوة والسلام ان اطیب ما اکله الرجل من کسبه وان ولده من کسبه، یعني د زوی ګټه هم د پلار ده، او دغه رنګه افضل د صدقاتو هغه چې د عمل الید څخه وي، وکان داؤد ﷺ یاکل من عمل یده، یعني جنګي زغري یې جوړولې او هغه به یې خرڅولې، سعدي مېګوید

بقنطار زربخش کردن زگنج نباشد چو قیراط از دست رنج

په صحیح حدیث کي راغلي دي چې رسول کریم ﷺ یو وخت صحابه کرام ﷺ امر کړه په صدقاتو سره، نو چا ډېره صدقه راوړه او چا حسب الطاقة لږ صدقه راوړه، ابو امامة الباهلي ﷺ په دغه وخت کي حاضر و، او شونډان یې ښورولې، نو علیه السلام ورته وویل چې ته شونډان ښوروې څه وایې؟ ابو امامه ﷺ ورته وویل چې خلګ صدقې راوړي، زه خو مسکین یم شی نه لرم چې خیرات یې کړم، نو د خانه سره سبحان الله، والحمد لله، ولا اله الا الله والله اکبر وایم، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل چې دغه کلمات خیر دي تا لره تر یو مد سره زرو چې خیرات یې کړې پر مسکینانو.

نو عاقل سړی باید همېشه توب کوي پر اذکارو في اللیل والنهار او تصدق کوي پر فقراؤ او مساکینو بخلوص النیة والیقین في کل وقت وحین، سعدي رحمه الله

کرامت جوان مردي ونان دهیست مقالات بیهوده طبل تهي ست



Scanned by CamScanner

اَلشَّيْطٰنُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَأْمُرُكُمْ بِالْفَحْشَاۤءِ ۚ وَاللّٰهُ يَعِدُكُمْ مَّغْفِرَةً مِّنْهُ وَفَضْلًا ۗ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿۲۶۸﴾

او شيطان تاسي بېروي له فقر څخه، يعني كه مو انفاق وكړی، نو تاسي به پخپله وږي او فقران سئ، او تاسي امر كوي په فحشاء سره يعني منع د زكوة فرضي سره او يا په عمومي بدو كارو چي ترك د واجباتو دي، او كول د منهياتو، والتفسير العام اولى، والتفسير الاول بقرينة المقام كما لايخفى، او خدای ﷻ وعده له تاسي سره پر انفاق او يا پر عمومي عباداتو باندي، بخښه د گنهو اوبالا بود تر ما انفقتم، يا بالا ستاسي تر عباداتو يعني في يوم القيامة، او خدای ﷻ فراخه دی فضل او قدرت يي او ښه خبر دی د هر چا په عمل او نيت او اخلاص، فيجازيكم حسب اعمالكم ونياتكم، وقد روى البخاري قال رسول الله ﷺ انما الاعمال بالنيات. الحديث.

الاحاديث النبويه ﷺ: د ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل چي داسي ورځ نسته چي له اسمان څخه دي دوې ملكي نه راكښته كېږي، يوه ملكه وايي چي خدايه منفق ته عوض وركړې، او هغه بله ملكه وايي خدايه چي بخيل ته تلف المال وركړې، رواه البخاري ومسلم چي داسي حديث ته متفق عليه وايي، له ابو هريره رضي الله عنه روايت دی چي عليه السلام ويلي دي السخي قريب من الله قريب من الناس قريب من الجنة بعيد من النار، والبخيل بعيد من الله، بعيد من الجنة، بعيد من الناس قريب من النار، وجاهل سخي احب الى الله من عابد بخيل، رواه الترمذي.

## يُّؤْتِى الْحِكْمَةَ

**پوه سه**: چي مراد له حكمت څخه علم نافع دی چي سرې ورضا ته د خدای ﷻ رسوي، لا الحكمة المصطلحة، او داسي علم اصالة د انبياء عليهم السلام او وارثة د علماء صالحينو عاملينو دی، او په يو حديث مرفوع كي د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي الحكمة القرآن اى العلم بالقرآن.



Scanned by CamScanner

مَن يَشَآءُ ۚ وَمَن يُؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا ۗ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّآ أُولُوا الْأَلْبَابِ ﴿٢٦٩﴾

او که چاته ورکړه سي حکمت، نو په تحقیق ده ته ورکړه سو ډېر لوی خیر چي خیر د دنیا او آخرت پکښي درج دی.

**درویش وایي:** چي هر څه احادیث مبارکه چي په مدح کي د علماء او د علم راغلي دي مراد په هغو کي علماء عاملین دي په علم سره لا المجرد المسمی بالعالم او یا په مولوي یا په ملا وغیره سره، ولي چي هغه عالم په خپل سره عمل نه کوي هو والجاهل سواء بل العالم المذکور اسوء حالا من الجاهل لان الجاهل قد یعذر، او له څخه هغه علم مراد دی چي علم په امور دینیه سره وي کعلم العقائد وعلم التفسیر للقرآن العزیز وعلم الآحادیث النبویهﷺ وعلم الفقه، او هغه علوم دي چي په هغو نفع اخستل کېږي په علوم مذکوره وو کي کاللغة والنحو والصرف والمعاني والبیان والبدیع وغیرها من العلوم النافعة في العلوم الدینیة.

**درویش وایي:** چي طبرانيؒ له ابو امامهؓ څخه روایت کړی دی چي رسول اللهﷺ وویل لقمان وخپل زوی ته وویل "یابني" پر تا لازمه ده ناسته د علماؤ سره، او اوره خبري د پوهانو خلگو، ولي چي خدایﷻ ژوندی کوي قلب میت یعني جاهل زړه په رڼا د علم دین لکه چي خدایﷻ ژوندی کوي مړه مځکه یعني بې نباتاتو مځکه په غټ څاڅکي باران سره، واخرج البخاري ومسلم عن ابن مسعودؓ قال قال رسول اللهﷺ چي حسد نسته مگر په دوو خصلتو کي یو خصلت د هغه سړي دی چي خدایﷻ مال ورکړی وي، او دی یې مسلط کړی وي یعني توفیق یې ورکړی وي چي هغه مال هلاکوي یعني نفقه کوي یې په لاره کي د رب جل وعلا، او بل خصلت د هغه سړی دی چي خدایﷻ ده ته ورکړي حکمت یعني علم دین کمامر، نو دی په هغه قضاء او حکم کوي بین الناس ویعلمها او دی دغه حد اداء د علم دین وخلگو ته ښیي



Scanned by CamScanner

**بوه سه:** چي له حسد څخه غبطه مراد ده، ولې چي حسد حب د زوال د نعمت دی په بله څخه، دا خو کبیره ګناه ده. او غبطه تمنا کول دي د حال د مغبوط وهي جائزة بل مندوب، واخرج الطبراني رحمه الله عن ابي موسى الاشعري رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ يبعث العباد يوم القيامة ثم يميز العلماء، يعني علماء له نورو بندګانو څخه فيقول يامعشر العلماء، خدای ﷻ به وايي اې ډلې د علماؤ اني لم اضع فيكم علمي لاعذبكم، ماتاسي ته نه دی درکړی علم چي تاسي ته مې د عذاب اراده وايي اذهبوا فقد غفرت لكم، ولاړ سئ د بخښلي ياست، اللهم بحرمة سيد الانبياء ﷺ صدق هذا الحديث في هذا العاصي بانواع المعاصي الصغائر والكبائر وفي اخواني من العلماء مثلي.

**درويش وايي:** چي علامه بغدادي السيد الآلوسي رحمه الله په پای کي ددې حديث لاسي ليکلي دي وهذا بالنسبة الى حملة العلم الشرعي الذي جاء به حكيم الانبياء، ونبي الحكماء، حضرت خاتم الرسالة محمد جهات العدالة والبسالة ﷺ لا ماذهب اليه جالينوس وديمقراطيس وافلاطون وارسطاطاليس ومن مشى على اثارهم فان الجهل اولى بكثير مما ذهبوا اليه

**وَمَآ أَنفَقْتُم مِّن نَّفَقَةٍ أَوْ نَذَرْتُم مِّن نَّذْرٍ فَإِنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُهُۥ ۗ وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ ﴿٢٧٠﴾**

او هغه شی او مال چي تاسي نفقه کړئ که قليل او که کثير وي، په حق کي وي او که په باطل کي وي. نو تنوين او تنكير د نفقة لپاره د تعميم دی که څه هم دا نكره په اثبات کي واقع ده لكن تعميم په قرينه د مقام دی كما سيناتي، نو دا آيت لپاره د بيان د حكم كلي دی چي شامل تولو اقسامو ته د نفقاتو دی، وروسته تر دې چي بيان د نفقي في سبيل الله يې وکړی، او يا تاسي نذر وکړئ د يو شي يا له اموالو څخه او يا د افعالو څخه په دې نظر کي تنكير لپاره د تعميم دی، يعني که دا نظر په شرط سره وي له يو سړی چي ووايي، زما زوی مريض دی که خدای ﷻ راجوړ کړی زه به يو پسه ذبح کوم، او يا به درې روژې

نیسم مثلاً الی غیر ذالک، او یا بېله شرطه او قیده یې نذر پر ځان اېښی وي.
او عام تر دې که دا نذر په طاعت کې وي او که په معصیت کې وي.

**بوه سه**: چې نذر عقد د زړه دی او وینا په خوله ده مثلاً ووایي پر ما یې نذر، او یا ووایي لله علي ان افعل کذا او غیر ذالک من الصیغ الدالة علی لزوم الشیئ علی نفسه، والتفصیل في کتب الفقه، نو په تحقیق خدای ﷻ په خبر دی.

**بوه سه**: چې ان الله یعلمه کنایة د مجازات څخه یعنې انفاق او یا نذر که د خیر په کار کې وي او که لله وي، نو خدای ﷻ جزاء د خیر ورکوي، او که انفاق او نذر في الباطل او یا په معصیت کې وي. نو خدای ﷻ عذاب د دوزخ ورکوي.

**بوه سه**: چې چې کلمه د "فا" جزائیه ده که کلمه د ما شرطیه سي او زائده ده في الخبر که کلمه د ما موصوله سي.

**پوښتنه**: مرجع د ضمیر د یعلمه څو دوه شیه دي یعنې انفاق او نذر، نو ضمیر یې ولې مفرد راوړی؟

**ځواب**: په کتابو کې د نحو او د اصول الفقه وایي چې معطوف په لفظ د او هر څو شیان چې وي ضمیر مفرد ورته راجع کېږي، لان کلمة او لاحد الامرین او الامور، او دا ځواب ابن عطیه رحمه الله رد کړی دی په دې سره چې متعاطفین څو فعلین دي، یعنې په کمله د او، او ضمیر څو راجع ونفقه او نذر ته دی، او هغه په او سره نه دی عطف سوی، ددې سوال په ځواب کې چا داسې ویلي دي چې عطف د فعلین څو مستلزم عطف لره د مصدرینو دی، نو گویا مصدرین هم په او سره ذکر سوي دي، فصح ارجاع ضمیر المفرد الیها، ابن عطیه دا ځواب رد کړی دی په دې سره چې ضمیر څو مذکر دی قطعاً، او مصدر څو یوه نفقه ده چې مؤنث ده، او بل نذر دی چې مذکر دی فاعتبار احدهما دون الآخر ترجیح بلا مرجح، علامه بغدادي الوسي رحمه الله ددې سوال په ځواب کې داسې ویلي دي چې په ورته متعاطفینو کې په قرآن مبارک کې گاهې حال د



Scanned by CamScanner

متاخر معطوف په سبب د قرب معتبر سوی دی کما في قوله تعالی ﴿ومن یکسب خطیئة او اثما ثم یرم به بریئا﴾ آه حیث اورد الضمیر مذکرا راجعا الی الاثم باعتبار قربه وما نحن فیه من هذا القبیل. نعم في القرآن العزیز قد یعتبر اللفظ المتقدم مراعاةً للاولیة کما في قوله تعالی شانه واذا رأو تجارة او لهوا انفضوا الیها الآیة، حیث اورد التفسیر مونثا راجعا الی التجارة باعتبار الاولیة. او ابن عطیة چي په توجیه د راوړلو د ضمیر مفرد او سره ددې مرجع دوه شیه ویلي دي چي افراد د ضمیر په اعتبار د تاویل بالمذکور دی، علامه الوسي هغه وجه رد کړي، او دی وایي والتاویل في جمیع ماذکر في القرآن علی هذا الطریق من العطف تکلف مستغني عنه کما لایخفی.

**درویش وایي:** چي د بر مفسران وجه د افراد د ضمیر دا وایي چي دا ضمیر مفرد راجع دی ولفظ ته د "ما" لکن دا جواب هلته صحیح کېږي چي لفظ د ما موصوله سي او که ما شرطیه سي بیا دا جواب نه صحیح کېږي وقد مر الاحتمالان من قبل فتذکر وتدبر.

**پوښتنه:** دا تحقیق علمي د افراد د ضمیر، او په سوال او ځواب سره د علماو؈ تا وکړی په دې کي به عوام یا بعض خطیبان د جامع ګانو او مبتدي طالبان څه فائده تر لاسه کړي؟

**ځواب:** درویش ځو واره دا خبره مکرره کړې ده چي زما دغه تفسیر په یوه ډله پوري نه دی مربوط، یعني د یوې ډلي لپاره نه دی بلکه تفاسیر د قرآن کریم لکه دریابونه دي د هر چا سره چي هرڅونده ظرف او لوښي ورسره وي هغونه اوبه به له دریابو څخه د تفاسیرو وړي، نه عربي تفاسیر مطالعه کړه څومره تفاوت سره لري.

**یوه سه:** چي معنا د "ظلم" وضع د شي بېله هغه ځایه چي حق دا و چي دا شی هورې وضع سوی وای فیشمل هذه الآیة المنفقین بالریاء والمنفقین بالمن والاذی، والمتحرین للخبیث في الانفاق والمنفقین في الباطل.

والناذرين في المعصية والممتنعين عن اداء ما نذر في حق والباخلين في اداء الحقوق المفروضة او الواجبة مما اتاهم الله من فضله.

**پوه سه:** چي انصار جمع د نصير ده لکه احباب چي جمع د حبيب ده او يا جمع د ناصر ده لکه اشهاد چي جمع د شاهد ده، په هر صورت مراد د انصارو څخه معاونان دي چي سړى له عذابه څخه د خداى ﷻ خلاص کړي په ورځ د قيامت لا مدافعة ولا شفاعة.

## إِن تُبْدُوا الصَّدَقَٰتِ

که تاسي په ښکاره وکړئ صدقات.

**پوه سه:** چي کلبي رحمه الله وايي چي څه وخت چي هغه مخکنی آيت نازل سو يعني "وما انفقتم الآية" نو صحابه کرامو رضي الله عنهم د عليه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه، اصدقة السر افضل ام صدقة العلانية فنزلت هذه الآية، نو دا جمله تفصيل دی لبعض ما اجمل في الشرطية السابقة وبيان لها ولهذا ترک العطف بينهما لکمال الاتصال کما بين في علم المعاني.

**پوه سه:** چي جمهور مفسرين رح پر دې رايه دي چي مراد په دې آيت کي صدقات نفليه دي، او بعض مفسرين رح وايي چي صدقات مفروضه مراد دي لکه زکوة، او بعض وايي چي مراد عموماً نفقې دي.

## فَنِعِمَّا هِيَ

**پوه سه:** چي کلمه د فاء جواب د شرط ده چي "ان تبدوا" دی، او لفظ "نعم" فعل ماضي ده، او ابن جني رحمه الله وايي چي کلمه د ما چي د نعم ميم پکښي مدغم سوی دی نکره تامه ده، او منصوب د تميز دی د نعم له ضمير مبهم څخه، او هي ضمير راجع دی وصدقات ته په حذف د مضاف اى نعما ابداء الصدقات. اختلاف القراء.

**پوه سه:** چي ابن کثير، ورش او حفص رح دا لفظ په کسره د نون او د عين وايي لغة هذيل، او بن عامر، حمزه او کسائي رح يې په فتحه د نون په کسره د عين وايي على الاصل لانه کعلم وهذه القرائة هي المشهورة عند القراء اليوم



Scanned by CamScanner

## وَإِنْ تُخْفُوهَا

او که تاسي ورکړئ په پټه صدقات.

**پوه سه:** چي مراد له ښکاره صدقاتو څخه صدقات مفروضه دي یعني زکوة او عشر دی، او مراد له پټو صدقاتو څخه صدقات نافله دي.

**فائده:** په جمع کي د ابدا او اخفا د محسناتو بدیعیه وو څخه ضعة طباق دی یعني جمع الضدین في عبارة واحدة.

**مسئله:** په فقه کي مسئله ده که یو سړی په غناء چانه پېژندی او دده دا خیال و چي که زکوة په ښکاره ورکړم، نو خلګ به مي په غناء خبر سي، او دی یو بې چاره بې کسه سړی و، نو غله به کورته را ولوېږي، نو ددغسي سړي لپاره هم اخفاء اولی ده.

## وَتُؤْتُوهَا الْفُقَرَاءَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ

او تاسي دا صدقه د پټي ورکړې وه فقراؤته نو دا اخفاء ښه ده تاسي ته یعني تر ابداء لبعدها من السریاء.

**پوښتنه:** په مخفي صدقه کښي یې تصریح وکړه په ورکړه سره وفقراؤته، او سره ددې چي په ښکاره صدقه کي هم فقر د معطيٰ له شرط دی لانه لایجوز اعطاء الزکوة الی الغني.

**ځواب:** پټه صدقه به ګاهي غني سړی دعوه د فقر کوي، نو پټه صدقه به قبوله کړي، او په ښکاره صدقه سره خو غني د فقر دعوه نسي کولای، ولي چي خلګ یې پېژني چي دا سړی غني دی، او دی هم په دعوه د فقر عند الناس شرمېږي.

**پوه سه:** چي په افضلیت د صدقة السر ډېر احادیث مبارکه راغلي دي، منها هغه حدیث دی چي امام احمد رحمه الله یې د ابي امامه څخه روایت کړی دی چي ابو ذر رضي الله عنه علیه السلام ته وویل یا رسول الله اي صدقة افضل؟ علیه السلام ورته وویل صدقة سر الی فقیر، الحدیث ثم قرء الآیة المذکورة، واخرج



Scanned by CamScanner

الطبراني ﷺ مرفوعاً ان الصدقة السر تطفئ غضب الرب، او بخاري يو لوی اورد حديث راوړی دی "سبعة يظلهم الله في ظله الحديث او په جمله د هغو اوو کسانو علیه السلام داسې هم ذکر کړی دی "ورجل تصدق بصدقة فاخفاها حتى لا يعلم شماله ما تنفق يمينه.

**بوه سه**: چي مراد د يمين او شمال څخه من على شماله ومن على يمينه. ولي چي نفس چپه لاس او راسته لاس خو اهل د علم نه دي، ابن عباس ﷺ وايي صدقة السر في التطوع تفضل على علانيتها سبعين ضعفاً، وصدقة الفرضية علانيتها افضل من سرّها بخمس وعشرين ضعفاً.

**مسئله**: وعلى قياس صدقة العلانية والسر جميع الفرائض والنوافل في العبادات كلها من الصلوة والصيام وغيرهما.

## وَيُكَفِّرُ عَنكُم مِّن سَيِّئَاتِكُمْ

**بوه سه**: چي كلمه د من تبعيضي ده، ولي چي صدقات خو ټوله گنهونه نسي رژولای، او ضمير د "يكفر" راجع وخدای ﷻ ته دی، او بعض مفسرين وايي چي راجع دی و اخفاء ته والاسناد مجازي دی، والمعنى او خدای ﷻ به ورژ وي، او يا اخفاء الصدقات به ورژوي، او اخفش من زائد بولي، والله اعلم.

## وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿٢٧١﴾

او خدای ﷻ خبر دی په عمل ستاسي من الابداء والاخفاء. لايخفى عليه شيئ فيجازيكم على ذالك كله كه څه هم د ابداء او اخفاء فرق ستا په افضليت كي.

**بوه سه**: چي كلمه د ما يا موصوله ده والعائد محذوف اى تعملونه، او يا مصدريه اى بعملكم.

**مسئله**: ماسوا له حقوق الناس څخه په توبه على شرائطها د گناه کبائرو بخښنه خو يقيني ده، او موعود الهي ده په ښو ځايه كي د قرآن عزيز او په احاديث شريفه وو سره چي تقريبا حد ته د شهرت رسېدلي دي ثابته ده، او

حقوق الناس یا اداء غواړي او یا بخښنه د صاحب الحق غواړي.

**بوه سه:** چي غیبت او بهتان هم لـه حقوق الناس څخه دی، او په صدقاتو سره او یا د جمعي په لمانځه او نوافلو سره د صغائرو ګنهو بخښنه هم تخمینا یقیني ده، واما الکبائر فیرجی تخفیفاً واما عفوها ففي علم الله عزوجل. ولنعم ماقیل به بها نمي بخشند، وببهانه مي بخشند.

# لَيۡسَ عَلَيۡكَ هُدَىٰهُمۡ

یعني نه ده واجب او لازم پر تابانديِ ایها الرسول هدایت د خلګو یعني د کافرانو و ایمان ته رسېدل، او یا له نورو ګنهو څخه توبه کښل. ولي خو ته نه یه ایهاالرسول مګر بشیر د خلګو او نذیر ددوئ وما علیک الا البلاغ المبین.

# وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يَهۡدِي مَن يَشَآءُۗ

لکن خدای ﷻ هدایت کوي، المراد بهذه الهدایة الدلالة الموصولة الی المطلوب قطعا دی وهغه چاته چي د خدای ﷻ اراده وسي د هغه وهدایت ته.

**بوه سه:** چي شان نزول ددې آیت ابن عباس رضی الله عنه داسي بیان کړی دی، چي نبي کریم ﷺ موږ امر کولو یعني صحابه کرام رضی الله عنهم چي تاسي انفاق او تصدق مه کوئ مګر پر مسلمانانو، دده مبارک غرض دا و چي فقراء د کفارو به مجبوره سي و ایمان راوړلو ته، فنزلت هذه الآیة، نو معنا د آیت داده چي نسته پر تابانديِ چي تا خامخا خلګ یعني کفار مؤمنانوي حتی چي تا صدقات د صحابه کرامو رضی الله عنهم پر دوئ بندي کړي دي د ایمان راوړلو په غرض.

او ابن جریر رحمه الله داسي روایت کړی دی چي بعض انصارو رضی الله عنهم اقرباء درلودل په کفارو کي، نو دوئ و هغو ته چي فقراء به هم وه صدقه او خیرات به یې نه ورکاوه او مطلب به یې دا و چي تاسي په اسلام کي داخل سئ، فنزلت هذه الآیة.

**بوښتنه:** پر دې روایت مانعین د صدقاتو پر اقاربو کافرانو باندي خو صحابه کرام وه، نو د څه حکمت لپاره خدای ﷻ مخاطب علیه السلام وګرخاوه، نو داسي یې نه وویل لیس علیکم آه؟



Scanned by CamScanner

**ځواب**: چونکه علیه السلام ددوئ په دغه فعل راضي و کمایدل علیه الحدیث السابق په توجه الخطاب الیه.

## وَمَا تُنفِقُوا مِنْ خَيْرٍ فَلِأَنفُسِكُمْ ۚ

او هغه مال چي تاسي نفقه کوئ په لاروکي د بر لگه په غزواتو کي یا پر فقراء او یتامی او یا پر ذوي الارحام باندي من خیر یعني له نفس مال ځخه که لږ وي او که ډېر که نقود وي او که مطعومات، او که ملبوسات الی غیر ذالک، نو د هغه د انفاق نفع وتاسي ته راجع ده یعني په ورځ د قیامت لا الی غیرکم، نو چي نفع تاسي ته راجع ده نو باید چي خبیث او ردي مال نه کړئ نفقه، او دغه رنگه نفع د ورځي د قیامت په من او اذی او په ریا سره باطله نه کړئ، او یا معنا داده چي تاسي انفاق مه منع کوئ له فقیر ځخه که څه هم کافر وي، ولي چي ستاسي نفع په هر انفاق کي ستاسي په ورځ د آخرت، او نفع د کافر صرف دنیوي ده.

**فائده**: کلمه د ما شرطي ده جازم د تنفقوا دی، او منصوب محلاً دی په تنفقوا سره یعني مفعول یې دی، فاللفظ الواحد عامل ومعمول کلاهما او لفظ د من تبعیضي دی په من خیر کي او من خیر صفت د اسم شرط دی چي لفظ د ما دی او صفت مخصصه دی اشارة الی النهي عن انفاق جمیع المال، وهذا النهي بالنسبة الی اوساط المؤمنین کمالایخفی.

## وَمَا تُنفِقُونَ إِلَّا ابْتِغَاءَ وَجْهِ اللَّهِ ۚ

**پوه سه**: چي ما تنفقون په نېز د بعض مفسرینو رح خبریه ده لکن په معنا د انشاء ده یعني تاسي انفاق مه کوئ، او لفظ د الا استثنا مفرغ ده له اعم الاحوال والاسباب ځخه، ای لاتنفقوا بحال من الاحوال وسبب من الاسباب من المن والاذی والریاء مگر نه لپاره د طلب د وجه الله ای رضائه تعالی.

**پوه سه**: چي لفظ د وجه الله لپاره د تعظیم دی او د نفي د شرکت دی، ولي چي سړی چي ووایي فعلت ما فعلت لوجه زید کان اعلی واجل من ان یقول فعلته لزید لان الوجه اشرف الاعضاء في زید، ثم کثر استعماله کنایةً عن الشرف



Scanned by CamScanner

بمعنی فعلت کذا لشرف زید، او بله خبره داده چي سړی داسي ووايي فعلت کذا لزید یحتمل الشرکة یعني فعلته لزید وغیره، او چي سړی داسي ووايي فعلته لوجه زید اهل عرف دا فهموي چي خاص الخاص د زید لپاره یې دا کار کړی دی، او بعض مفسران رح وجه په معنا د ذات بولي، ای لذاته تعالی یعني لا لغیره تعالی، او بعض مفسران وجه په معنا د رضاء بولي کما ورد في آیة اخری ﴿الا ابتغاء مرضات الله﴾ او علامه بغدادي رحمه الله دا جمله پر خیریت باقي بولي، او دا جمله یا حال ده او یا عطف ده پر سابقه جمله یعني "وما تنفقوا من خیر الآیة" او استثناء هغسي مفرغ ده من اعم العلل واعم الاحوال والمعنی ما تنفقون بسبب من الاسباب الا لهذا السبب ای وجه الله، او في حال من الاحوال الا في هذا الحال ای طلب وجه الله. وحاصل المعنی اذا کان حالکم ان لا تنفقوا آه، او الا طالبین وجهه سبحانه لا موذین ولا مانین ولا مرائین ولا منفقین الخبیث فصدقاتکم ونفقاتکم نفع لکم في الآخرة ولا ضیر علیکم البتة.

**وَمَا تُنفِقُوا مِنْ خَيْرٍ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنتُمْ لَا تُظْلَمُونَ ﴿٢٧٢﴾**

او هغه څه چي تاسي یې انفاق وکړئ له یو ماله څخه یعني که قلیل او که کثیر وي، نو تنکیر د خیر لپاره د تعمیم دی کامل او پوره به در کړه سي وتاسي ته ثواب د هغه انفاق په ورځ د قیامت لکه چي مخکي تېر سوي آیتونه هم پر هغه دلالت کوي، او بعض مفسران رح وايي چي معنا د "یوف" داده چي په دې دنیا به خدای ﷻ عوض کامل درکړي، او ستاسي له ماله څخه خدای پاک شی نه کموي مع مالکم في الآخرة من الثواب الجزیل والاجر العظیم، او دا عوض دنیاوي په سبب د قبلولو د هغه دعاء د علیه الصلوة والسلام دی اللهم اجعل لمنفق خلفا ولممسک تلفا.

**فائده:** دا آیت په عموم سره دلیل دی ددې چي صدقه نافله وکافر ته هم روا ده کمامر في شان قوله تعالی لیس علیک هداهم آه فتذکر، واما الصدقة الواجبة کالزکوة التي اخذها مفوض الی الامام فلایجوز اخذها ودفعها



Scanned by CamScanner

للكافر، او ماسوا له زكوة څخه لکه صدقة الفطر والنذر والكفارة ففيه اختلاف والامام الاعظم رحمه الله يجوز دفعها للكافر. والظاهر قوله تعالى ويطعمون الطعام على حبه مسكينا ويتيما واسيرا والتفصيل في كتب الفقه فراجعها.

لِلْفُقَرَآءِ الَّذِيْنَ اُحْصِرُوْا فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ضَرْبًا فِى الْاَرْضِ

**پوه سه:** چي لام جاره متعلق دی په محذوف پوري چي له سياق څخه د کلام فهمېږي، ولهذا حذف ای اعمدوا للفقراء، او يا اجعلوا ما تنفقونه للفقراء او صدقاتكم للفقراء، والجملة استيناف في جواب سوال مقدر كانه قيل اين نجعل نفقاتنا، او الى اي فريق نصرف صدقاتنا فاجيب للفقراء آه. نو ترجمه د آيت داده چي صرفوئ صدقات او نفقات خپل وهغو فقيرانو ته چي بند کړه سوي وي په لاره کي د خدای ﷻ ای حبسهم الجهاد في سبيل الله عن الكسب والاجرة، په طلب کي د علومو دينيه وو، او دوئ طاقت نه لري په سبب د اشتغال په جهاد سره او يا په طلب د زدکړي د دين د تګ په مځکه کي لپاره د کسب يا تجارت.

**پوه سه:** چي دا آيت په قول د ابن عباس او د محمد بن كعب القرضي رض نازل سوی دی په شان کي د اصحابو الصفه.

**پوه سه:** چي سقيفه يا صفه د يوې ناحيې نوم دی په مسجد نبوي کي چي په دې صفه کي به درې سوه کسه اوسېدل د فقراؤ څخه د مهاجرينو چي نه يې کورونه درلوده او نه يې اهل او عيال درلودی، او دوئ ټوله اوقات خپل په زدکړه کي د دين او يا په جهاد کي بامر رسول الله ﷺ صرف کړی و، او ددوئ څخه بعض به په هره کوچنی ډله کي د مجاهدينو چي په عربي يې سريه بولي په امر د رسول الله ﷺ به وتله، نو ګاهې به په صفه کي پوره درې سوه کسه وه او بعض اوقات تر درې سوه کم اوسېدل. يعنې هغه وخت چي به ددوئ څه نفر جهاد ته واستول سوه، نو دا اصحاب صفه د مسلمانانو ګويا مهمانان وه. عيناً په شكل د طالبانو د ننی زمانې چي په مساجدو کي د مسلمانانو اوسېږي او يا په مدارسو اسلاميه وو کي اقامت پذير دي، لكن چي په صحيح

نوګه لیاره د زدکړې د دیني کتابو اوسېږي. نه هغه طالبان چې د ورځې یې سائیکلان تر بنګرو نیولي وي په بازارو کې ګرځي او د شپې تیپونه ورته چالان وي چې د سبقه وخت سي یوه عالم ته ورسي سبقانو ته یې غوږ نیولی وي نه یې فهم وي نه یې ادراک.

**چشم دید واقعه:** د درویش په جامع مسجد کې چې د کوټې په ښار کې واقع دی، دو منزله مسجد دی په لوړ منزل کې یې د طالبانو حجره هم سته. نو یو ماپښین زه د یو کار لپاره لوړ منزل ته ورو ختلم یوښه په ږیره پوخ طالب په حجره کې و، بخاري شریف خلاص ورته پروت و او تیپ هم ورته چالان و او طالب ورته بیده و.

**فائده:** اګرچه محدثانو رح په متفقه ډول دا آیت په شان کې د اصحاب صفه نازل بللی دی، لکن مقصود ددوئ حصر په اصحابو صفه وو کې نه دی بلکه اصحاب صفه رضي الله عنهم اولین او بهترین افراد دي د مضمون د آیاتو مذکوره وو مګر دا حکم جاري دی په ورته کسانو کې د اصحابو صفه الی یوم القیامة لکه درویش چې دمخه اشاره ورته وکړه.

## يَحۡسَبُهُمُ ٱلۡجَاهِلُ أَغۡنِيَآءَ مِنَ ٱلتَّعَفُّفِ

او ګمان کوي پر دغو اصحاب صفه وو رضي الله عنهم یعني وامثالهم بعدهم کما سبق آنفاً هغه څوک چې جاهل و ناخبره په حال ددوئ چې دا کسان غنیان دي له سببه د ځان ساتلو ددوئ له سوال څخه، نو کلمه د من لپاره د تعلیل د حسبان د جاهل آه.

**پوښتنه:** نو تعفف خو مفعول دی د یحسبوهم، نو له څه سببه داسي نه وویل سوه تعففاً یعني منصوبا علی انه مفعول له؟

**ځواب:** نحات په یوه خوله دا وایي چې شرط د نصب د مفعول له دادی چې فاعل دده او د فعل معلل به سره یو وي، او دلته هغه شرط نسته ولې چې فاعل د یحسب چې فعل معلل دی جاهل دی او فاعل د تعفف فقراء د اهل



Scanned by CamScanner

صفه دي، او بعض مفسران ﷫ وايي چي كلمه د من لپاره د ابتداء ده چې پر منشاء داخلېږي فمعنى الآية على التقدير المذكور ان حسبان الجاهل غناهم نشاء من تعففهم عن السوال

## تَعۡرِفُهُم بِسِيمَٰهُمۡ

**يوه سه:** چي فاعل د تعرف هر مخاطب دی چي اهل د معرف وي، ومعنى الآية ته اي مخاطبه پېژنې دوئ يعني فقر ددوئ په علاماتو ظاهره پر دوئ، لکه عجز، ژړ مخان، خيرني او څيري جامې، ابو نعيم د فضاله بن عبيد څخه روايت کړې دی چي بعض اوقات چي عليه السلام به د جماعت لمونځ کاوه بعض کسان به غوځار سوه د ولاړې څخه په سبب د غايت لوږي يعني اهل صفه﷞، نو بعض له صحرايانو څخه چي د اصحاب صفه غايت لوږه به نه ورمعلومه دا به يې ويل چي دا کسان لکه چي د جن يعني د صرع په مرض مبتلا دي.

**فائده:** وزن د سيماء عفلا دی ولي چي مشتق منه يې وسم دی چي په معنی د علامه ذی، نو چي صيغه د فعلا څخه جوړه سوه نو د فا او د عين تر منځ يې قلب مکاني وکړی، نو سوما جوړ سو بيا نو بيا يې واو په يا بدل کړی لسکونها وانکسار ما قبلها نو سيما جوړ سو.

## لَا يَسۡـَٔلُونَ ٱلنَّاسَ إِلۡحَافٗاۗ

او دوئ يعني اصحاب صفه﷞ ومن يماثلهم في الفقر والسيما سوال نه کوي له چا څخه په الحاف.

**يوه سه:** چي د الحاف او الحاح معنی يوه ده، هغه دا چي فقير په مسؤل منه چي غني دی مبنتی وي او ډېري ډېري زارئ ورته کوي هر څو چي غني دفع کوي چي خدای ﷻ دې درکړي ومثل ذالک من الفاظ الرد لايفارقه.

**يوه سه:** چي الحاف له لحاف څخه ماخوذ دی چي معنا يې تلتک دی، كما في قولهم الحفني من فضل لحافه يعني بعض د تلتک يې پر ما واچاوه، والمراد اعطاني من فضل ماعنده من ماله.



Scanned by CamScanner

**اعراب**: نصب د الحافاً په سبب ددې چې مفعول مطلق نوعي ده، یسئلون لان الالحاف نوع من السوال. او یا حال دی له ضمیر څخه د یسئلون ای ملحفین فالمصدر بمعنی الفاعل.

**سوال**: اهل عقل او نقل وایي چې نفي چې په یو کلام کې راسي چې په هغه کې یو قید وي، نو نفي د قید کوي فقط نو پر دي بنا معنی د آیت خو داسي کېږي چې اصحاب صفه خو سوال کاوه لکن الحاح یې نه کوله او سره ددې چې دوئ سوال هم نه کاوه. وهو المروي عن ابن عباس والیه ذهب الفراء والزجاج واکثر اهل المعاني، نو نفي په آیت کې متوجه وقید او مقید دواړو ته دی، کما في قوله تعالی ﴿لاتاکلوا الربوا اضعافاً مضاعفة﴾ او په دې آیت کې بله قرینه هم سته چې دوئ نه سوال کاوه او نه یې الحاح کوله، وهو قوله تعالی یحسبهم الجاهل اغنیاء. وقوله تعالی تعرفهم بسیماهم. او چا چې ددې آیت ترجمه داسي کړې ده چې دوئ خو اول سوال نه کاوه که په یې د ضرورت په سبب د چا سوال بعض یو وخت کاوه بیا یې الحاح نه کوله هغه ترجمه د اقول سره د صحابه وو او د امامانو مخالفه ده، بلکه که یې د اشاراتو څخه د آیات سابقه وهم منافي ده کما اشرنا الیه عنقریب فهذه الترجمة لیست بشیئ یعتد به.

وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَإِنَّ اللَّهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ﴿٢٧٣﴾

هغه شی چې تاسي نفقه کړی له ماله څخه یعني في وجوه الخیرات کالانفاق علی اهل صفه في ما نحن فیه نو په تحقیق خدای په هغه انفاق ستاسي خبر دی او علم پر لري، والمراد فیجازیکم في الآخرة او في الدارین، وفي الحدیث النبوي الذي اخرجه مسلم والبخاري عن ابي هریره چې علیه الصلوة والسلام وویل لیس المسکین الذي ترده التمرة والتمرتان واللقمة واللقمتان انما المسکین الذي یتعفف واقروا ان شئتم لا یسئلون الحافاً.

اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً

او هغه کسان چې انفاق کوي د خپلو مالو.



Scanned by CamScanner

یعنې په لاره کې د خیر په جهاد کې، یا فقراوٌ ته یا په صله رحمي کې الی غیر ذالک ممالایخفی، په شپه کې او په ورځ کې.

**پوه سه:** چې مراد له لیل او نهار څخه ټوله اوقات دي، او په پټه او په ښکاره.

**پوه سه:** چې مراد عموم د احوال دی.

**فائده:** خدای ﷻ لیل تر نهار دمخه کړه، او سر یې تر علانیه دمخه راوړی، لپاره ددې چې مسلمانان پوه سي اخفاء د صدقې او انفاق په پټه تر اظهار ښه ده وقد مر تحقیق ذالک عنقریب.

**فائده:** سراً وعلانیةً چې منصوب دي بناء یا پر دې ده چې دوه مصدره دي په معنا د فاعل دي، او حال دی له فاعله څخه د ینفقون ای حال کونهم مسرین ومعلنین، او یا دواړه صفت د مصدر محذوف دی ای انفاق سر و اعلان، نو مفعول مطلق د ینفقون دی وعلی کل تقدیر فالباء بمعنی في.

اختلاف المحدثین في شان نزول هذه الآیة: عبدالرزاق او ابن المنذر د عبدالله بن عباس ﷺ څخه روایت کړی دی چې دا آیت په شان کې د علي کرم الله وجهه نازل سوی دی، چې ده څلور درهمه درلوده، یو درهم یې د شپې وفقیر ته ورکړی، او بل درهم یې په ورځ کې او بل درهم یې په پټه او یو درهم یې په ښکاره ورکړی، نو علیه السلام چې خبر سو نو علي ﷺ ته یې وویل ما حملک علی هذا، یعنې ته پر دې څلور قسمه انفاق څه شي باعث کړې، علي ﷺ ورته وویل قال حملني علی هذا ان استوجب علی الله تعالی الذي وعدني فقال علیه الصلوة والسلام الا ان ذالک لک فنزلت الآیة، او ابن المنذر له ابن المسیب ﷺ څخه روایت کوي چې دا آیت ټوله په شان کې د عثمان بن عفان ﷺ او د عبدالرحمن بن عوف ﷺ په شان کې نازل سوي دي، چې دې دوو د جیش العسرة یعنې د تبوک په غزاء کې ډېرې لوی نفقې وکړې، او بعض محدثان رح وایي چې دا آیت په شان کې د ابوبکر صدیق ﷺ نازل سوی دی چې ده لس زره دیناره د شپې صدقه کړه او لس زره دیناره یې د ورځې اولس زره یې په پټه صدقه



Scanned by CamScanner

کړه او لس دیناره یې علانیةً نفقه کړه. لکن پر دې شان نزول جلال الدین سیوطي رحمه الله سوال کړی دی، چې تفصیل یې په روح المعاني کې دی.

**فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٢٧٤﴾**

نو دوئ لره دی هغه ثواب موعود د خدای جل جلاله په نېز یعني په ورځ کې د آخرت، او نه بېره سته پر دوئ او نه به دوئ غمناکه وي په ورځ کې د آخرت.

**پوه سه:** چې خوف د راتلونکي شي وبېرې ته وایي، او غم پر تېر سوي شي افسوس کولو ته وایي. یعنې په ورځ کې د آخرت به د دوزخ له عذاب بېره نه وي، او د دنیا د ژوند د عبس تېرېدو پښېماني او افسوس به نه وي ورسره.

**الَّذِينَ يَأْكُلُونَ الرِّبَوٰا**

**پوه سه:** چې ظاهره معنا د آیت خو داده چې هغه کسان چې خوري سود، لکن مراد دادی چې اخلي سود که یې خوري، او که بله نفع پر اخلي هره نفع چې وي مګر تخصیص د اکل په ذکر سره له دې وجهي وکړ سو چې معظم نفع چې مقصود په ربوا کې دی اکل دی.

**پوه سه:** چې ربوا په لغت کې زیات والي ته وایي کما في قولهم ربی الشیئ یربوا اذا زاد. او په شرع شریف کې فضل د مال په اموالو ربویه کې چې په مقابل کې یې عوض نه وي في معاوضة المال بمال.

**پوښتنه:** د ربوا لفظ په واو سره نوشته کېږي لکه د صلوة لفظ وجه یې څه ده؟

**ځواب:** دا بناء دی پر لغت د هغه چا چې لفظ د صلوة او زکوة او ربوا په تفخیم د لام وایي یا کاف یا با وایي او په اخیر کې د لفظ د ربوا وروسته تر واو الف لیکلی دی تشبیها بواو الجمع. نو لفظ د ربوا موافق سو له معنا سره د ربوا په دې معنا چې هر یو د لفظ د ربوا او د معنا د ربوا مشتمل دی پر زیادت غیر مستحقه. یعني په لفظ د ربوا پسله واو څخه الف دی لکه په جمع کې او سره ددې چې د لفظ د ربوا دا الف حق نه و. ولې چې دا الف حق د جمع دی کماتقرر في علم الصرف. او لفظ د ربوا خو جمع نه دی بلکه مفرد دی لکه په معنا کې د ربوا چې زیادت غیر مستحقه سته په معاوضه مالي کې

تشبیها بمعنی لفظ البیع لاشتمال کل واحد منها علی معاوضة المال بالمال بالرضا، وان کان احد العوضین ازید هذا ماقاله العلامة البغدادي رحمه الله.

لَا يَقُومُونَ إِلَّا كَمَا يَقُومُ الَّذِي يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطَٰنُ مِنَ الْمَسِّ

دوئ به نه ولاړېږي یعني په ورځ کې د قیامت الا قیاما کقیام، فکلمة مامصدریة والموصوف محذوف وهو قیاما، د هغه چا ولاړه چې دماغ یې شیطان ورګډ وډ کړی وي له مسه څخه یعني به الجنون چې وداسې سړي ته په اصطلاح مصروع وایي چې ګاهي ولاړ وي بې اختیاره د مخکې ومبتلي او ګاهي روان وي غوځار سي او بېهوښه سي، نو سود خور چې له قبره را ووزي په ورځ د قیامت محشرګاه ته به دغه ډول روان وي دا به یې علامه وي چې ټوله اهل محشر به په دې پوهېږي چې دغه سړی سود خور و، والی هذا ذهب ابن عباس وابن مسعود وقتاده رضي الله عنهم واختاره الزجاج رحمه الله.

**پوه سه:** چې ابن عطیه رحمه الله وایي چې مراد په دې آیت تشبیه ده د سود خور چې دی حرص لري په جمع کولو د دنیا په سود سره، او یوې خوا او بلې خوا ته څغلي کتاب د سود به یې په لاس کې وي، ددې پوروړي دروازه ورټکوي چې راوړه ماهواره سود، او بل دکان څټک څټک روان دی، دکان دار ته وایي چې د دوو میاشتو سود مې دربانديي دی مثلا راوړه د دوو میاشتو د سود روپۍ. لکه په پخواني زمانه کې د بعض پښتنو به دا دنده وه چې د هند په لویه وچه کې به یې روپۍ په سود هندوانو او مسلمانانو ته ورکولې، نو ابن عطیه وایي چې دغه مختلف حرکات د سود خورو مشابه کړه د حرکاتو سره د متخبط مصروع، او دا محاوره ابن عطیه دلیل کړی چې څوک چې په بازار او کوڅو کې حرکات مختلفه کوي نو خلګ وایي قد جن فلان، انتهی مع الزیادة، علامه بغداد رحمه الله په روح المعاني کې دا خبره د ابن عطیه په سختو الفاظو رد کړې ده، دی وایي ولایخفی انه مصادمة لما علیه سلف الامة، یعني مامر عنقریب في بیان معنی الآیة عند السلف المذکورین رح، او دی وایي چې د ترجمه د ابن عطیه مخالفه ده ما روی عن رسول الله ﷺ من غیر داع

سوی الاستبعاد الذي لا يعتبر في مقابلة النصوص، انتهى بحاصله.

**پوه سه**: چي معتزله او قفال د شافعيه وايي چي ان كون الصرع والجنون من الشيطان باطل لانه لايقدر عليه كما قال الله تعالى يعني حكاية من الشيطان يعني په ورځ كي د قيامت وخپلو اتباعو ته من المشركين وماكان لي عليكم من سلطان الآية او دوئ يعني معتزله وايي چي دا په آيت كي چي راغلي دا مبني پر زعم د مشركانو د عربو چي ددوئ دا عقيده وه چي شيطان يخبط الانسان فيصرع، وان الجن يمسه فيختلط عقله وليس لذالك حقيقة انتهى قولهم الفاسد وزعمهم الكاسد.

**درويش وايي**: چي سبحان الله واستغفرالله چي دوئ آيت قرآنيه حكايت بولي د اقوالو فاسده وو د مشركانو وما انزل القرآن الا لمحو خرافات العرب والمشركين، وهل هذا منهم الاجرة عظيمة على القرآن.

**درويش وايي**: ولله در المحقق الآلوسي رحمه الله في روح المعاني حيث قطع عرق الاعتزال باقوال النبي العربي ﷺ وقال هذا ليس بشئ، بل هو من تخبط الشيطان بقائله ومن زعمائه المردودة خزلهم الله اني يوفكون وكيف يخالفون قواطع الشرع المبين فقد ورد في الحديث الصحيح الذي رواه جماعة عظيمة من المحدثين، قال رسول الله ﷺ ما من مولود يولد الا يمسه الشيطان فيستهل صارخا، وفي رواية الا طعن الشيطان في خاصرته ومن ذالك يستهل صارخاً الا مريم وابنها لقول امها ﴿واني اعيذها بك وذريتها من الشيطان الرجيم﴾ وقال رسول الله ﷺ كفوا صبيانكم اول العشاء فانه وقت انتشار الشياطين الحديث، وقد ورد في حديث المفقود الذي اختطفته الشياطين وردته في زمن النبي ﷺ انه حدث من شانه معهم قال فجائني طائر كانه جمل الحديث وفي اكام المرجان في احكام الجان كثير من الاحاديث واعتقاد السلف الصالحين رح واهل السنة ان مادلت عليه الآحاديث النبوية امور حقيقية كما اخبر الشرع عنها، والتزام تاويل كلها يستلزم خبطا طويلاً لا يميل اليها المعتزلة ومن خذا خذوهم وبذالك وامثاله خرجوا عن قواعد



Scanned by CamScanner

الشرع القويم فاحذرهم والآية التي ذكروها في معرض الاستدلال على مدعاهم لاتدل عليه اذ السلطان المنفي فيها هو القهر والالجاء الى متابعته اى الشيطان لا التعرض والتصدي لما يحصل بسببه المرض او الهلاک ومن تتبع الاخبار النبوية وجد كثيرمنها قاطعا بجواز وقوع ذالک من الشيطان بل وقوعه بالفعل، والحديث الصحيح المروي عن رسول الله ﷺ ﴿الطاعون من وخزاعدائكم الجن صريح في ذالک﴾ انتهى كلامه الشريف.

**درويش وايي**: چي حكماء او اطباء ددي څخه منكر دي چي صرع او جنون دي له مس الشيطان والجن له خوا وي، دوئ وايي چي صرع وغيره له غلبي څخه د مرة خلط السوداء پيدا کيږي چي دوئ يې سودا محرقه بولي، وعلى التقدير التسليم لامنافات بين ما ورد في الآية وبين ماقالوا لان ماذكروه هو السبب القريب وما في الآية هو السبب البعيد، او ددي دوو تر منځ تلازم نسته. ولي گاهي له مس الشيطان څخه مرض او جنون نه سي پيدا لكه چي مزاج د ممسوس قوي وي په مس الشيطان باک ونه کړي غايته انه يحصل له غشي خفيف ثم يضيق، او گاهي جنون پيدا کيږي بهله مس الشيطان والجن څخه كما اذا فسد مزاج الشخص من الاخلاط الاربعة من دون عروض امر اجنبي كمس الشيطان والجن والجنون. الحاصل بالمس قد يحصل احياناً وله عند اهل الممسوس الحاذقين امارات يعرفون الجنون الحاصل بالمس بتلک العلامات، قال الآلوسي رحمه الله وهذا كالمشاهد المحسوس الذي يكاد يعد منكره مكابرا منكرا للمشاهدات انتهى كلامه الشريف.

**درويش وايي**: چي حدوث د مرض په مس د شيطان ثابت دی په قرآن او احاديثو نبويه وو سره قال الله تعالى في قصة ايوب عليه السلام ﴿رب اني مسني الشيطان بنصب وعذاب﴾ او عليه السلام ويوي مستحاضي ښځي ته وويل چي دغه وينې ستا وينې د حيض نه دي بلكه ركضة من ركضات الشيطان وهو حديث طويل رواه جميع اصحاب الحديث.

**پوه سه**: چي ولاړه د اكلة الربوی كما هو مذكور في الآية ددي سبب دی

چې سود خور چې د سود روپۍ خوري، خدای ﷻ وهغې ولي ته تربیه ورکوي او لویوي ددوئ په نسو کې حتی چې نسونه یې لکه خوني داسي سي، او په دې نسو کې ددوئ ماران ګرځي، نو نسونه ددوئ ډېر درانه وي، نو چې له قبره راپاځي ګاهي غوځار سي او ګاهي بېهوشه سي او ګاهي روان وي، وهذا معنی قوله لایقومون الا کمایقوم الآیة. او ابي سعید الخدري ﷺ له علیه الصلوة والسلام څخه روایت کړی دی چې ده مبارک وویل په حدیث د اسراء یعني لیلة المعراج چې زه جبرائیل ﷺ بوتلم وګڼ شمېر خلګو ته چې د هر سړي نس لکه خونه دومره وو، الی اخیر الحدیث رواه المظهري.

په یوه صحیح حدیث کې راغلي دي چې روایت یې مسلم کړی دی له ابن مسعود ﷺ او بخاري له ابي جحیفه ﷺ څخه قال لعن رسول الله ﷺ اکل الربوا وموکله، وفي روایت ابي داؤد والترمذي وکاتبه وشاهده وقال هم سواء.

**درویش وایي**: لعل مراد رسول الله ﷺ من المساوات المساوات في اصل الاثم لافي مقداره، او په روایت د احمد او دار قطني د عبدالله بن حنظله ﷺ چې په غسیل الملائکة سره شهرت لري راغلي دي چې علیه الصلوة والسلام وویل چې یو درهم د ربوا چې سړی وخوري او دی په خبر وي اشد دی تر شپږ دېرش (۳۶) واره زنی، وفي روایة ابن ماجه والبیهقي عن ابي هریرة ﷺ چې ده وویل چې علیه الصلوة والسلام وویل چې د سود اویا (۷۰) ګنهونه دي هغه اسانه ګناه یې داده لکه سړی چې له موره سره نکاح وکړي.

**درویش وایي**: چې د ربوا په باره کې خدای ﷻ دومره سخته خبره کړې ده چې په هیڅ ګناه کې یې دموره سخته خبره نه ده کړې یعني فان لم تفعلوافاءذنوا بحرب ورسوله کما سیاتي.

## ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوٓا إِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبٰوا ۘ

او دغه عقاب چې په دمخه آیت کې ذکر سو په دې سبب دی چې دوئ په ویله چې نه ده بیعه مګر مثل د سود. له دې آیت څخه دا واضح معلومه سوه چې هغه مذکور عذاب د تخبط مخصوص په کفاره سره دی، ولي چې دوئ

حرام شی چي سود دی حلال بولي، او تحليل د حرام يا بالعكس كفر دی په اتفاق د امت، او مسلمان سود خور ته كه څه هم سود خو ګناه كبيره ده لكن چونكه مسلمان حكم د حلال پر سود نه كوي بلكه خپل خان په كولو سره يې ګناه كار بولي، او د مسلمان لپاره خو كه يې شفاعت عليه السلام ونه كړي او يا په رحمت عامه د خدای ﷻ ونه بخښل سي، او كلمه د لا اله الا الله يې هم سبب د بخښي ونه ګرځي ابدي عذاب د دوږخ خو نسته باجماع اهل السنة والجماعة خلافاً للمعتزلة اذا مات صاحب الكبيرة بلا توبة فانه مخلد في النار كالكافر، لكن څو مده به په دوږخ كي وي ولا يعلم مدة مكثه في النار الا الله الملک الجبار.

**پوښتنه**: كلام خو په تحريم كي ربوا و، چي كفارو حلال بلل او خدای ﷻ حلال وګڼل، نو كفارو خو بايد داسي ويلي وايي انما الربوا مثل البيع يعني كما ان البيع حلال فالربوا حلال ايضا لانه مثله؟

**ځواب**: هو حق خو داغه و لكن كفارو د ډېر تعنت او ضديت څخه د حكم د قرآن چي په حرمت د ربوا يې كړی دی بيعه چي په اتفاق حلاله ده مشبه وګرځول او ربوا ورته مشبه به وګرځول په روا والي كي.

وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَوٰا

او حال دا دی چي خدای ﷻ حلاله ګرځولې ده بيعه او حرام يې ګڼلی دی سود، قالوا وللحال والجملة حال بتقدير قد في الماضي كما هو القانون النحوي، او يا واو استينافيه دی كما وقع في الهداية في كثير من المواضع، او يا واو عاطفه دي ومعنى الآية چي خدای ﷻ بيعه حلاله ګرځولې ده او سود يې حرام بللی دی فكيف يصح التشبيه بينهما كما وقع من الكفار الفجار.

**معذرت**: پوه سه چي امام مظهري در اينجا تفسير خود را فتاوى فقه ساخته واختلاف المذاهب را تفصيلاً اورده ونقص وابرام دلائل هم نموده وصفحه (۱۳) تفسير خويش بآن مسائل فقيه مزين ساخته وهيچ مفسر قرآن

کریم اینچنین نه کرده اند بلکه عموما مفسرین در بیان شان نزول آیات قرآنیة ودر بیان اعرابهای مشکل قرآن عزیز فرداخته اند، ونیز بعض مفسران حدیثهای نبویه بمناسبت آیات قرآنیة بیان فرموده اند، وبعض قصهای مناب آیات قرآنیه وتمثیلات بورتهای تفسیر سپرده اند ومسائل فقیه را بکتب فقها مذهب من المتون والشروح والفتاوی المعتبرة في المذاهب سپرده اند. ودرویش نه اینکار مظهري میکند ونه برکار مظهري انکار میکند حالا درویش به تفسیر قرآن رجوع میمناید

**فَمَن جَآءَهُۥ مَوۡعِظَةٞ مِّن رَّبِّهِۦ فَٱنتَهَىٰ فَلَهُۥ مَا سَلَفَ وَأَمۡرُهُۥٓ إِلَى ٱللَّهِۖ**

که چاته راغلي نصيحت يعني په باره کي د د تحريم د سود له جانبه څخه د خدای ﷻ يعني تبليغ رسول الله ﷺ، نو ده متابعت د نهي د خدای ﷻ وکړی يعني له سود خوری څخه يې توبه وکيل، نو هغه سرې لره دي هغه د سود روپی چي د مخه تر تحريم يې اخستي وي يعني د هغو اداء پر لازمه نه ده، وما مضى من الربوا قبل التحريم قد غفرله من المولى ﷻ او کار دغه سرې مفوض دی وخدای ﷻ ته يعني په مستقبل الزمان کي بې بيا سود وکړی نو که بې خدای ﷻ بخښي او که عذاب ورکوي

**وَمَنۡ عَادَ فَأُوْلَٰٓئِكَ أَصۡحَٰبُ ٱلنَّارِۖ هُمۡ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿٢٧٥﴾**

او که څوک بیرته وګرځېدی واکل د ربوا ته يعني سود، او يا و هغه قول ته (انما البيع مثل الربوا) نو هغه کسان ملازمين دي د اور او دوئ به په اور کي همېشه وي

**پوه سه** چي که مراد له عود څخه عود و هغه قول ته وي چي انما البيع مثل الربوا، نو خلود پر ظاهره معنی دی يعني همېشه والی ولي چي تحليل د حرام دی کافر سو، او د کافر ځای همېشه دوزخ دی، او که يې معنی عود وي واکل ته د ربوا نو مراد له "خلود" څخه مکث طويل دی مجازاً لان اهل الکبائر ليسوا مخلدين في النار عند اهل السنت والجماعة وان ماتوا بغير توبة



Scanned by CamScanner

کمامر، نو دا آیت پر دي تاویل له قبیله څخه د هغه آیت دی ﴿ومن یقتل مؤمنا متعمدا فجزائه جهنم خالدا فیها﴾

## يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبٰوا

**بوه سه** چي محق نقصان د شي دی حالا بعد حال حتی چي توله ختم سي لکه محاق د سپوږمۍ چي وار په وار یې نور کمېږي څو لمر یې واخلي ورکه سي د خلګو له سترګو څخه، والمعنی ههنا دادی چي مال د سود کرار په کمېږي او برکت به یې نه وي کما في حدیث ابن مسعود ﷺ عن النبي ﷺ قال ما احد اکثر ما لا من الربوا الا کان عاقبة امره الی قلة، رواه ابن ماجه او که فرضا د سود خور په ژوند مال یې لږ نه سي نو ده وروسته به یې عیال له قلت سره مخامخ سي

**درویش وایي** چي په کندهار کي یو سړی و سود خوره چي نوم اخستل به یې غیبت وي، ده په ژوند د سود مال یې ښه پر مخ روان و، او باغونه جائیداد مځکي یې رانیولي ده له مرګه وروسته رفته رفته یې د اولاد لاسه مځکي او باغونه ووتله حتی چي مزدوري او روزانې ته اړ سوه.

## وَيُرْبِي الصَّدَقٰتِ

او خدای ﷻ تربیه یعني دوچنده کوي صدقات که فرضي وي لکه زکوة او که نفلي وي، او ثواب یې ډېروي او ده او د عیال لپاره یې خدای ﷻ برکت پکښي اچوي، وفي حدیث مسلم الذي رواه عن ابي هريرة ﷺ ان رسول الله ﷺ قال مانقصت صدقة من مال" نه کموي مال د چا صدقه، یعني خدای ﷻ د صدقې عوض ورکوي "وما زاد الله بعفو الا عزا" او نه زیاتوي خدای ﷻ په عفوه سره یعني د یوه سړي چي بل سړي پر ده ظلم کړی وي او دی عفوه ورته وکړي مګر نه عزت د عفوه کوونکي "وما تواضع احد لله الا رفعه" او تواضع او عاجزي نه مختاره کوي یو څوک لپاره د خدای ﷻ مګر خدای ﷻ رتبه لوړه وي

## وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ اَثِيْمٍ ﴿٢٧٦﴾

او خدای ﷻ نه خوښوي یعني بغض ورسره کوي وهذا المعناه الکنائي



Scanned by CamScanner

ولې چې اګر چه خدای ﷻ د خپلو بندګانو سره محبت کوي په مقتضی د قیومیت او د رحمانیت خپل لکن په عارض د کفر او اصرار پر کفر هغه محبت په بغض بدلیږي

**یوه سه:** چې کفار صیغه د مبالغې ده مراد ځنې هغه خوک دي چې پر تحلیل د محرماتو لکه ربوا ههنا ټینګ وي او اثیم هم صیغه د مبالغې ده یعنې ډوب په ګنهو کې

## إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ

او په تحقیق هغه کسان چې ایمان یې راوړی وي یعنې پر خدای ﷻ په وحدانیت سره او پر علیه السلام په رسالت سره وبما جاء به رسوله او عملونه صالح کوي یعنې اوامر د خدای ﷻ او د رسول پر ځای کوي او د منهیاتو ځنې پرهېز کوي

## وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ

او لمونځونه پر خپلو شرائطو او فرائضو او واجباتو او سنتو پر ځای کوي، او زکوة د مال هم ورکوي

**یوه سه:** چې لمونځ او زکوة که څه هم په صالحاتو کې داخل وه لکن بیرته یې په خصوص ذکر کړه لان الصلوة راس العبادات البدنیة کما ورد في الحدیث النبوي ﷺ "الصلوة عماد الدین" وقال الله تعالی ان الصلوة تنهی عن الفحشاء والمنکر" والزکوة رئیس العبادات المالیة کما ورد في الحدیث النبوي ﷺ "الزکوة قنطرة الاسلام

## لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٢٧٧﴾

دوی لره دی ثواب د اعمال حسنه و ددوی په نبز د رب ددوی او هیڅ بېره نشته پر دوی یعنې په ورځ د قیامت یعنې حین یخاف الکفرة واهل الاعمال السیئة من عقاب الله ﷻ، او نه دوی غم کوي پر تېر سوي عمر د دنیا ولې چې دوی تونیه د ورځې د قیامت له دنیا څخه دمخه را استولي وه یعنې بخلاف الذین ضیعوا اعمالهم الدنیویة في المعاصي واللهو واللعب لانهم یحزنون علی ذالک.

**درویش وايي:** چي په مختلفو رواياتو کي د احاديث مبارکه وو راغلي دي چي مسلمانانو بعض د مکې مکرمې او بعض د مدينې منورې دمخه تر تحريم د ربوا يو پر بل باندي د سود روپۍ يا د سود خورما باندي وه، نو څه وخت چي تحريم د ربوا نازل سو، نو ددوئ به داسي خيال و چي موږ خو دا عقدونه د ربوا دمخه تر تحريم کړي دي، نو ددې ربوا اخستل به موږ ته روا وي. البته له دې وروسته به له عقد الربوا څخه پرهيز کوو. فنزلت هذه الآية

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَذَرُواْ مَا بَقِيَ مِنَ ٱلرِّبَوٰٓاْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ۝

اې هغه کسانو چي ايمان يې راوړی دی له خدای ﷻ څخه وبېرېږئ، او پرېږدئ هغه بقايا د سود چي ستاسو د خلګو په ذمه کي باندي پاته وي که چېرې تاسي د رشتيا ګو او د زړه مسلمانان یاست، والجزاء محذوف دل عليه ماقبله اى فذروا الخ او امتثلوا ما امركم الله به وانما قال ان كنتم آه اشارةٌ الى ان امتثال الاوامر والنواهي دليل صدق الايمان.

فَإِن لَّمْ تَفْعَلُواْ فَأْذَنُواْ بِحَرْبٍ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ

او که تاسي مابقي من الربوا نه پرېږدئ نو اعلان د جنګ وکړئ له خدای ﷻ سره او د رسول د خدای ﷺ سره.

**پوه سه:** چي د حمزه قرائت داسي دی "فآذنوا على زنة آمنوا" او باقي قراء يې بېله مده د الف وايي على ما هو المرسوم في المصاحف اليوم.

**پوه سه:** چي تنکير د حرب لپاره د تعظيم د جنګ دی وهو الحرب مع جنود الغيب. سعيد بن جبير له ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت کړی دی چي سود خور ته به په ورځ د قيامت داسي وويل سي خذ سلاحک للحرب. او په صحيح حديث کي راغلي دي قال رسول الله ﷺ اذا ظهر الربوا في قرية فقد احلوا بانفسهم عذاب الله، او د عمرو بن العاص څخه روايت دی چي ما واورېده له رسول الله ﷺ څخه چي وه يې ويل چي داسي قوم نسته چي په دوئ کي دې سود خوري ښکاره سي مګر خدای ﷻ به دوئ ونسي په قحط سره



Scanned by CamScanner

یعني کافر پرې مسلط کړي، او داسي قوم نشته چي په دوی کښي رشوت خوري ښکاره وي مګر خدایﷻ به په دوی دښمن پر مسلط کړي. رواه احمد.

**پوه سه**: چي پوهان علماء رح وايي چي حرب الله دوزخ دی او حرب الرسول توره ده. نو ځکه قاضي بیضاوي وایي چي ددې مقتضی داده چي اول دي له سود خوره څخه طلب د توبې وکړه سي که یې توبه له سوده نه کښل بیا دي امام المسلمین جنګ ورسره وکړي لکه د باغي سره.

**درویش وایي**: چي معنا ددې خبري د بیضاوي داده لکه امام مظهري رحمه الله چي وایي که چېري دې سود خور نفر د جنګ نه درلوده، نو امام المسلمین دې بندي کړي حتی یتوب. او که یې نفر د جنګ درلوده چي امام نه سوای بندي کولای فهو الباغي فالامام یقاتله. علماء رح وایي چي داغه حکم د تارک د فرض د فرائضو څخه د خدایﷻ لکه لمونځ، زکوة وغیرهما. او یا یو سړی عملاً پر یوه کبیره ګناه لکه زنی، شراب خوري، قمار بازي الی غیر ذالک او پر هغه ګناه باندي کلک او علانیه ولاړ وي کما هو الرائج الیوم في بعض بلاد المسلمین، ویدل علیه ما روی رزین رحمه الله عن عمر بن الخطاب رضي الله عنه في مناقب ابي بکر رضي الله عنه چي آنحضرتﷺ چي وفات سو او ابو بکر رضي الله عنه خلیفه سو، او بعض عرب له زکوة څخه په انکار سره مرتد سوه، نو ابکر صدیق د جنګ تیاري ورته ونیوله او دا یې وویله چي قسم په خدایﷻ که دوی له ما څخه منع کړي عقال یعني یو شی قلیل د زکوة یعني پر وجه د انکار لجاهدتهم. عمر رضي الله عنه وایي ماورته وویله یاخلیفه رسول الله تالف الناس وارفق بهم ته الفت د زړو د مسلمانانو طلب کړه او له نرمي ورسره وکړه. نو ابوبکر رضي الله عنه په ډېرو سختو الفاظو عمر رضي الله عنه ته داسي وویله اجبار في الجاهلیة وخوار في الاسلام یعني په جاهلیت کي ته اې عمره ډېر د زړه ډک سړی وې او په اسلام کي ډېر ضعیف القلب سوې یعني د مانعي الزکوة له جنګ څخه ډډه کوې او ماته وایې چي جنګ مه ورسره کوه. ابو بکر رضي الله عنه زیاته کړه قد انقطع الوحي وتم الدین یعني کما قال الله تعالی ﴿الیوم اکملت لکم دینکم واتممت علیکم نعمتي ورضیت

لکم الاسلام دیناً﴾ ا ینتقص وانا حي، آیا دین به څوک کموي او زه به ژوندی یم یعني په انکار د زکوة چي له امورو څخه د دین دی. او زه به ژوندی یم یعنې دا امکان نه لري معنا دا چي زه به حتما جنګ ورسره کوم تاچي دین پر خپل کمال پاته سي.

**درویش وایي**: چي واقعه د قصد د جنګ د مانعینو سره د زکوة. او نصیحتید عمرﷺ و ابوبکرﷺ ته چي جنګ مه ورسره کوه، او د ابوبکرﷺ دلائل د عمرﷺ سره او قناعت د عمرﷺ په رایه سره د ابوبکرﷺ په بخاري او مسلم او نورو صحاح سته وو کي په وجه اتم او تفصیل کامل سره مذکور دي فلیراجع الی الکتب المذکورة.

﴿وَإِنْ تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ لَا تَظْلِمُونَ وَلَا تُظْلَمُونَ﴾

او که تاسو توبه وکاږئ له اخستلو څخه د ربوا، نو ستاسو حق دی روس د اموالو ستاسي یعني روپۍ وغیره چي تاسو په اول وار په سود ورکړي وي یعني نه سود او ګټه چي تاسي په اوله ورځ پر پوره وري شرط کړې وه. او نه به تاسو ظلم کوئ پر پوروړو یعنې په اخستلو د سود. او نه پر تاسي ظلم کړه کیږي یعني د پوروړو له خوا یعني په نقصان د راس المال او یا په ځنډولو د راس المال.

**درویش وایي**: چي په حدیث متفق علیه د ابي هریرهﷺ داسي راغلي دي چي علیه السلام وویل مطل الغني ظلم الحدیث- یعني ځنډول د پور د پوروړي له خوا چي دی غني هم وي ظلم دی. بیضاوي وایي چي له دې آیت څخه دا فهمیږي چي که دغه سود خواره توبه ونه کاږي او پر تحلیل د ربوا ټینګ وي هغه راس المال یې هم حق نه کیږي ولي چي مصر پر پر تحلیل د ربوا مرتد دی او د مرتد مال غنیمت دی.

**پوه سه**: چي دا مذهب د امام شافعيؒ دی لکه چي بیضاوي هم شافعي المذهب دی، او د امام اعظم ابو حنیفهؒ مذهب دادی چي هغه مال چي ده په وخت کي د اسلام درلودی هغه مال وروسته تر قتل دده او یا چي دار الحرب ته ولاړ سي، و ورثه وو ته د دغه مرتد نقل کیږي. یعني چي مسلمانان

وي، او هغه مال چې ده په وخت کې د ارتداد کسب کړی و هغه یې غنیمت دی د بیت المال.

**پوه سه:** چې بغوي رحمه الله وایي چې دغه آیت چې نازل سو یعني فاذنوا بحرب من الله ورسوله آه، بنو عمر چې دېر مالونه د سود یې پر خلګو باندي وه او نور ګڼ شمېر سود خواره راغله، او علیه الصلوة والسلام ته یې وویل چې موږ توان او طاقت د حرب د خدای ﷻ او د رسول د خدای ﷺ نه لرو بل نتوب الی الله تعالی ورضوا براس المال.

# وَإِن كَانَ ذُو عُسْرَةٍ

**پوه سه:** چې بعض مفسران وایي چې کان تامه دی لایقتضی الخبر، نو معنا یعني ان وجد غریم ذو عسرة او بعض مفسران وایي چې خبر یې محذوف دی یعني ان کان ذو عسرة غریما.

# فَنَظِرَةٌ إِلَىٰ مَيْسَرَةٍ ۚ

**پوه سه:** چې "نظرة" خبر د مبتداء محذوف دی، ای فالحکم نظرة، او یا خبر دی مبتداء یې محذوفه ده، فالمعنی علیکم نظرة، نظرة مهلت ته وایي یعني ده ته به مهلت ورکول کېږي، او میسرة مصدر میمي دی په معنا د یسار یعني الغنی، د ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی من یسر علی معسر یسر الله علیه في الدنیا والآخرة رواه مسلم

# وَأَن تَصَدَّقُوا خَيْرٌ لَّكُمْ

او که معسر پوروړي ته پور ورو بخښي د هغه په ثواب کي خیر دی تاسي لره تر مهلت ورکولو، ولي چې په انتظار کي د پورورړي زړه نه بېغمه کېږي او په تصدق کي زړه بېغمه کېږي، او بعض مفسران وایي چې د تصدق هم انظار مراد دی، لکن درویش وایي چې پر دې تفسیر تکرار لازمېږي، نو ښه تفسیر هغه و چې موږ دمخه وکړی یعني الابراء عن الدین، له ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی وایي چې زه شاهدي اداء کوم پر رسول الله ﷺ چې ده وویل اول الناس یستظل في ظل الله یوم القیامة یعني في ظل عرشه اذ لاظل له تعالی لانه

يقتضي الجسمية، او يا مراد د ظل الله څخه رحمت الهي دی، فالمعنى يدخل في رحمته تعالى په ورځ کي د قيامت لرجل هغه سړی دی انظر معسرا، چي مهلت يې ورکړي وتنګدست پوروړي ته تر هغو چي يو شی پيدا کوي، او تصدق عليه مما يطلبه او يا خيرات وکړي د هغه مال چي ده به له هغه غوښتی يعني پور، او داسي وپوروړي ته ووايي مالي عليک صدقة ابتغاء وجه الله ويحرق صحيفته او هغه د پور حجت او کاغذ وسوځي، رواه الطبراني

**درويش وايي**: چي په متقاربه الفاظو د حديث مذکور بغوي په شرح السنة کي روايت کړی دی، او دغه رنګه روايت د عثمان بن عفان ﷺ څخه هم راغلی دی او د ابي اليسر څخه هم ورته حديث راغلی دی، او طبراني د اسعد بن زرارة ﷺ هم په قريبو الفاظو روايت کړی دی، او طبراني په اوسط کي هم له شداد بن اوس څخه روايت کړی دی.

## إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٢٨٠﴾

جواب د شرط او مفعول د "تعلمون" محذوف دی، يعني که تاسي پوهېږئ په ثواب د انظار او تصدق فافعلوا ذالک، او يا تعلمون نازل منزلة اللازمي دی يعني ان كنتم من اهل العلم، له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي ملکو د يو سړي روح چي په من كان قبلكم امتو کي وو قبض کړی، نو ملکو ورته وويل هل عملت خيرا قط تا يو عمل د خير کړی دی يو وخت؟ سړي ورته وويل يا نه مي دی کړی، ملکو ورته وويل چي ته فکر په عملو کي ووهه چي د خير عمل نسته پکښي، سړي ورته وويل نسته مګر دا که د خير کار وي چي ما وخلګو ته شيان په پور ورکوله نو مابه خپلو نوکرانو ته ويله که زما پوروړی غني هم وي لکن مهلت يې وغوښتی مهلت ورکوئ، او که مسکين و زما پور وربخښئ، نو خدای ﷻ ملکو ته وويل چي تاسي هم دده تر ګناهونو تجاوز وکړئ، رواه مسلم، عن عقبة بن عامر ﷺ، او په بخاري او مسلم کي له حذيفه ﷺ څخه ورته روايت راغلی دی وفي الحديث الصحيح چي رسول الله ﷺ وويل لايحل دين رجل مسلم فيوخره الا كان له بكل يوم صدقة، يعني هره ورځ ګويا



Scanned by CamScanner

دا سړی په مقدار د پور خیرات کوي، وفي الحديث الصحيح من انظر معسرا او وضع له انجاه الله من كرب يوم القيامة. كه چا مهلت د پور ورکړی وي و مسکین پوروړي ته او یا یې وز وبخښلی خدای ﷻ به نجات ورکړي وهغه سړي ته د تکلیفو د ورځې د قیامت، له ابو امامة الباهلي ﷺ څخه روایت دی چې ما یوه شپه جنت په خوب ولیدی چې پر دروازه یې نوشته وه چې د قرض ثواب په اتلس (۱۸) مثله دی او د خیرات ثواب په لس (۱۰) مثله دی، نو بعضې ملکې چې هورې حاضرې وې پوښتنه مي څخه وکړه چې ولې د قرض ثواب پر صدقه بالا دی؟ ملکو راته وویل چې په دې سبب بالا دی چې خیرات ګاهې د غني سړي په لاس کې واقع سي، او قرض غوښتونکی چاته نه ورځي مګر چې محتاجه وي، په صحیح حدیث کې راغلي دي چې آنحضرت ﷺ وویل چې درې خویه چې په سړي کې وي په ورځ د قیامت لکن سره له ایمانه دخل الجنة من اى ابواب الجنة شاء وزوج من حور العين كم شاء. (۱) من عفى من قاتل. یعني که چا له اولیاؤ څخه د مقتول عفو وکړه وقاتل ته (۲) تر هر فرضي لمانځه وروسته یوولس (۱۱) واره قل هوالله احد تر پایه پوري ووایي (۳) هغه سړی چې مسلمان پور خندي وغواړي هغه پور ورکړي، فقال ابو بکر الصديق ﷺ او احدى هن يا رسول الله قال او احدا هن لکن څوک چې له چا څخه پور غواړي نو باید نیت یې د اداء وي، ولي چې په حدیث شریف کې راغلي دي که چا د بل سړي پور وکړی او نیت یې د ورکړي و، خدای ﷻ به د هغه سره ملکې مقرري کړي چې هغه سړی ته دعاء کوي یعني د قدرت د اداء د پور.

**درویش وایي**: چې په اوسنی زمانه کې د پور او قرض ورکولو دروازه تقریبا بند: ده په سبب ددې چې په اوسنی زمانه کې څوک چې له چا څخه قرض غواړي په اوله ورځ کي خیال د ورکړي نه لري، او اوس خلګ چې پور له چا څخه وکړي غنیمت یې بولي، نو خلګ که څه هم روپۍ لري چاته یې پور او قرض نه ورکوي، ولي چې صبا ورځ چې دی دا پور له چا یعني پوروړي څخه غواړي تیار جنګ او مصیبت خندي جوړېږي، او بعض خلګ بېله ضرورته

پوروونه کوي په یوه بهانه او بله بهانه اخیر چي ډېري روپۍ په پور سره جمع کړي نو پوروړو ته پر نه داد کښېني او پوروړو ته وايي چي ماته تاوانونه رسېدلي دي زه اوس د بوالي یم هغه ته هغه حکومت او هغه ته هغه دي زور هرڅه چي دي له لاسه کېږي وه يې کړه، پوروړي اخیر الامر پر خای کښېني. او که بو سرای دغه مدیون درلودی پوروړو ته ووایه چي دغه سرای تاسي واخلئ او سره تقسیم یې کړئ. که هغه سرای مثلاً یو لک روپۍ ارزېدی په لس لکه یې پر خرڅ کړي، وروسته چي پوروړي په هغه سرای راضي سي او پور یې اداء کړي څو ورځي وروسته په هغه جمع کړي روپو دی تجارت شروع کړي.

او بعض کسان داسي هم سته چي ډېر پوروونه وکړي اخیر الامر له پوروړو څخه بل ملک ته وتښتي او ځان لاپته کړي، نو دداسي تکالیفو پر بناء څوک اوس وچانه پور او قرض نه ورکوي او د قرض دروازه بنده سو. او بعض خلګ داسي هم سته چي د فرائضو الهیه وو لکه لمونځ، روژه وغیره او د منهیاتو پابندي نه لري نو چي د خدای ﷻ پور نه ورکوي نو د مخلوق پور به څرنګه ورکړي، نو داسي فاسق او فاجر او شراب خور ته پور ورکول نه دي روا. ولي چي دی دغه د پور روپۍ په معاصیو کي صرفوي، وقال اللّٰه ﷻ تعاونوا علی البر والتقوی ولاتعاونوا علی الاثم والعدوان ولنعم ماقیل

واش مده انکه بینماز است ورخود دهدتش زفاقه باز است

کو فرض خدا نمی گذارد از قرض تو نیز غم ندارد

**وَاتَّقُوا يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى اللَّهِ ثُمَّ تُوَفَّىٰ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٢٨١﴾**

او وېرېږئ له هغي ورځي څخه چي تاسي به راجع کړه کېږئ وخدای ﷻ ته لپاره د حساب او جزاء چي ورځ د قیامت ده او ورځ د عدالت ده او حاکمِ رب العزت دی، نو د هغې ورځي لپاره تیاري وکړئ، باداء الاوامر وترک المنهیات چي من جملتها پور نه له خلګو څخه کول دي لپاره د خپل عیش او عشرت

بلکه پر مسکنت قناعت وکړه د چا مالونه مه ضائع کوه، او په هغه ورځ ورکول کیږي و هر سړي ته جزاء د ماکسبت او پر دوئ به ظلم نه کیږي په دې معنا چي چادي عمل دپر کړی وي او ثواب دي لږ ورکړي او یا دي عذاب ورمضاعف کړي. له ابن عباس ؓ څخه روایت دی چي دا ایت یعني واتقوا یوما الخ اخیري ایت دی چي پر علیه الصلوة والسلام نازل سوی دی. نو جبرائیل و علیه السلام ته وویل چي دا آیت ته کښېږده پر سر د دوه سوه اتیا (۲۸۰) آیتو د سورت بقرې، او علیه السلام پسله نزوله ددې آیت یوویشت (۲۱) ورځي حیوة و، او بعض راویان وایي چي یو اتیا (۸۱) ورځي حیوة و. او بعض وایي اوه (۷) ورځي. بعض راویان وایي چي د دوشنبې په ورځ چي دوې شپې د ربیع الاول تېري سوي وې، او صحیح داده چي دوولس شپې د ربیع الاول تېري سوي وې په وخت کي د زوال د قمري سنه (۱۱) په یولس د هجرت وفات سو انا لله وانا الیه راجعون

**پوه سه** چي علیه الصلوة والسلا د دوشنبې په ورځ له موره پیدا سوی دی، او د دوشنبې په ورځ نبي سوی دی. او مدیني منورې ته د دوشنبې په ورځ داخل سوی دی او د دوشنبې به ورځ عملونه د امت دده وړېښول کېږي. او د دوشنبې په ورځ په مدینه منوره کي د سیدنا عائشة ؓ په خونه کي یې روح وخدای ﷻ ته وسپاری.

**فائده** راویان وایي چي اتلس (۱۸) ورځي علیه السلام ناجوړی و، او صحابه کرام ؓ نوبت په نوبت یوښتني ته ورتله، او اخیري وصیت نبي کریم ﷺ وټولـه امت تـه دا کړی دی ﴿الصلوة وماملکت ایمانکم فانا لله وانا الیه راجعون﴾ وفي الحدیث قال رسول الله ﷺ من اصیب عصیبة فلیذکر مصیبته بي یعني بموتي فانها اعظم المصائب قال بعض الانصار ؓ الصبر یحمد في المواطن کلها الا علیک فانه مذموم

**مدینه منوره** تاریخ وایي چي پر اهل مدینه یوه ورځ د یوې خوشحالی راغلې ده چي هغو دونده خوشحالي نه وه لیدلې، چي هغه ورځ د رسېدلو د

علیه السلام ومدینې منورې ته وه، او یوه ورځ د لوی غم چې پر اهل مدینه باندې راغلی و او نه به راسي چې هغه ورځ د وفات د علیه الصلوة والسلام وه

**سوال:** ابن عباس ﷺ وویل چې اخیري آیت چې پر رسول الله ﷺ نازل سوی دی دغه آیت دی واتقوا یوما آه او سره ددې چې په بخاري، ابو عبید، ابن جریر او بیهقي کې داسې راغلي دي چې اخیري آیت چې پر علیه الصلوة والسلام نازل سوی دی آیة الربوا دی، نو پوښتنه داده چې ددغو دوو روایتو تر منځ تعارض نسته؟

**ځواب:** علامه بغداد رحمه الله په روح المعاني کې وایې چې مراد د ابن عباس ﷺ دادی چې اخیر حقیقي هغه آیت دی واتقوا یوما آه، او په حدیث کې د بخاري وغیره مراد دادی چې اخیري آیت د بیوع په بیان کې آیت الربوا دی کما قال محمد بن سلمة رحمه الله کما نقل عنه علي بن احمد الکرباسي رحمه الله، او یا مراد د بخاري وغیره د روایت داده چې ایت الربوا بعض د ما نزل علی رسوله ﷺ في آخیر حیوته کما یصرح به ما اخرجه الامام احمد رحمه الله فلا تعارض.

**درویش وایي:** چې چونکه خدای ﷻ په اخیري آیتو کې په انظار د معسر تاجیله امر وکړی، تر هغه وروسته یې هغه حقوق ذکر کړه چې اجل پکښې مشروط وي په یو طویل آیت کې د قرآن چې د آیة المداینة په نامه سره مشهور دی.

**درویش وایي:**

| | |
|---|---|
| دا د نیا ده بې وفا | خندي تلونکي انبیاء واولیاء |
| که د نیا بقی درلو د ای | نو به پاته وای محمد مصطفی |
| دا جل ورځ ده معلومه | په هغه ورځ به هرڅوک ځي له دنیا |
| عبید وایي دا تفسیر خدایه پوره کړې | بیا وتګ ته دی تیار عبید الله |
| دا تفسیر به خیر باقي وي د عاصي | بل عمل د خیر نه لرم رشتیا |
| د اتمام د دې تفسیر ایو بي | خواست کومه په دربار کې د الله |
| خاتمه غوارم له خدایه پر ایمان | خواست قبول کړې یا الله یا الله |



Scanned by CamScanner

## يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنتُمْ

اې هغه کسانو چې ايمان يې راوړی دی چې تاسې معامله وکړئ چې په هغه کې پور وي په ذمه د يوه معامله کوونکي.

**يوه سه:** چې ددې قيد چې په هغه معامله کې پور وي آه داده چې معامله د پور په پور سره وي چې بيع الکالي بالکالي يې بولي نه ده روا بالاجماع وبالحديث الذي رواه ابن عمر ﷺ بهذه اللفظ نهى رسول الله ﷺ عن بيع الکالي بالکالي رواه الدار قطني.

**فائده:** دا آيت شامل دی د پور بيع لره، سلم لره، اجارې لره، قرض لره، نکاح لره، خلع لره او الصلح لره.

## بِدَيْنٍ

**پوښتنه:** دين خو لفظ د تداينتم مفهوم سو نو د دين فائده څه ده؟

**ځواب:** فائده يې داده چې مرجع د ضمير د فاکتبوه پيداسي صراحةً.

**يوه سه:** دين" نکره ده له شرط سره چې "اذا" دی ملګری راغلی، او قانون نحوي دی چې نکره چې په حيز کې د شرط راسي هغه عامبرې، يعني هر پور ته شامله ده که پور ثمن وي لکه يو شی هر شی چې وي په پور يې خرڅ کړي او يا مبيع وي لکه په عقد سلم کې، او که مکيل وي لکه غنم، اوربشې، خرما او نور، او که موذون وي لکه سره زر سپين زر الى غير ذالک او که بيع لاس په لاس وي او که په موده وي.

## إِلَىٰ أَجَلٍ

تر مودې پورې، په دې قيد سره يې بيع د لاس په لاس ويستله، ولې چې په هغه کې ليکل نه غواړي، لکه چې نان وای ته چې روپۍ ورکړې دوه ډوډۍ خندې واخلې بلکه داسې رانيول بعث واشتريت هم نه غواړي.

## مُسَمًّى

چې هغه مده يې معلومه کړې وي، يا په ورځو او يا په مياشتو او يا په کلو، دا قيد يې ددې لپاره وو ايه چې بيع په ثمن موجل سره او يا سلم چې



Scanned by CamScanner

مبیعه یې اجل ده ترهغو نه دی روا چي مده یې معلومه نه وي، لان جهالة الاجل یفضی الی المنازعة بین المتعاقدین. نو په قرض کي تعین د اجل نه غواړی ولي چي قرض شرع شریف عاریة گڼلی. گویا هغه روپی یا بل شی چي پوروړی ورکوي عین هغه شی دی چي مالک ورکړی و. تاچي پور یې سود ونه گرځي

**مسئله** نو قرض که څه هم په اجل ورکړي لکن اجل نه دی لازم، یعني مالک د پور یې في الحال قبل الاجل حندي غوښتلای سي او پوروړی د اشتراط التاجیل بهانه نه سي ورته کولای

**فائده** ابن عباس رض هم دغه آت دلیل د جواز د سلم بولي، حیث قال اشهد ان السلف ای السلم المضمون الی اجل مسمی قد احله الله في الکتاب واذن فیه ثم قرء ابن عباس رض هذه الآیة

**مسئله** تعین د مدې په داسې ډول چي اختلاف پکښې وي نه دی روا نه په بیع کې او نه په سلم کې. لکه پښتانه چي وایي چي داشی در څخه رانسم تر لو پوري، او یا د حاجیانو تر راتگه پوري الی غیر ذالک لانه یفضی الی المنازعة بین المتعاقدین. ولي په لو کي تقدیم او تاخیر راځي، او داغه رنگه د حاجیانو په راتگ کې ډیر تقدیم او تاخیر وي کما هو المعلوم بالتجربة. نو بائع د اول لو په وخت یا د اول حاجي په راتگ کي به خپل پور غواړي، او مشتري به تر اخیري لو پوري او یا تر اخیري حاجیانو پوري پور ځنډوي وعلی هذه فقس الآجال المبهمة الاخر.

**پوه سه** چي امام مظهري رح په دې ځای کي لکه چي دده عادت دی مسائل د فقه شریف په باره کي د سلم وغیره سره د دلائلو د مذاهبو مختلفه وو او د نقض او د ابرام ډیري ښې خبرلي دي، نو که د متعلمانو هغه تفصیل ته شوق کېږي نو دده تفسیر دې مطالعه کړي.

**فاکتبوه**

نو تاسې هغه د پور ثبته او وعده نوشته کړئ، لپاره د ائینده یادگار او د

دفع د نزاع په وروسته کي.

**یوه سه**: چي جمهور د مفسرینو رح لکه روح المعاني، روح البيان، مظهري، بیضاوي وغیرهم وایي چي دا امر استحباب دی یعني که دائن او مدیون خط نه کړی سره نوشته پروا نه لري، لکن روح المعاني وايي چي ظاهر دا آیت خو دلالت پر دې کوي چي د هر پور حکم داغه دی یعني چي خط به سره نوشته کوي، او ابن عباس رض وایي چي دا نوشته کول د پور پیوازي په سلم پورې خاص دی یعني استحباب يې مخصوص په سلم پورې دی، او بعض فقهاء رح وایي چي ابن عباس رض د خط نوشته کول په سلم کي واجب بولي، او شعبي رحمه الله وایي چي خط نوشته کول او شاهدان درول او ګرو ورکول ټوله فرض وه او په دې آیت سره فان امن بعظكم بعضا الآية د ټولو فرضیت منسوخ سو. لکن نور مفسرین رح وایي چي په نسخ کي دا ضروري ده چي ناسخ به تر منسوخ وروسته نازل وي کماهو المسلم باجماع المفسرين والفقهاء رح، او دلته دا وروسته والی نسته ولي چي ټوله ایت المدانية په یوه وار نازل سوي دي، نو دا علامه ددې ده چي امر بالکتابة مستحب دی، کما في قوله تعالی في باب صلوة الجمعة فاذا قضيت الصلوة فانتشروا، نو انتشار خو واجب نه دی.

## وَلْيَكْتُبْ بَّيْنَكُمْ كَاتِبٌۢ بِالْعَدْلِ

او خط دې نوشته کړي یو کاتب ستاسي تر منځ په عدالت سره یعني کاتب باید حقوق د دائن او مدیون دواړه په نظر کي ولري نه دی نه دې مال او نه دې مده یکبني بالا بود کوي او نه دې کمبود کوي مراعاةً لحق احد الجانبين

**مسئله**: پر کاتب باندي دا امر وجوب دی، نو باید چي دائن او مدیون د کتابة الدين لپاره یو داسي کاتب پیدا کړي چي هم د فقه په احکامو خبر وي او هم دیندار وي.

**یوه سه**: چي دا آیت بیان دی د کیفیت د کتابت ماموربها بعد الامربها اجمالاً، او مفعول یکتب محذوف دی ولي چي له مقامه څخه فهمیږي یعني الکتاب، او د تقیید بالظرف چي بينكم دی فائده يې داده چي کاتب چي خط

نوشته کوي طرفین به دواړه حاضر وي نه به يې يوازې نوشته کوي او نه به يې په حضور کې د يوه طرف.

وَلَا يَأْبَ كَاتِبٌ أَنْ يَكْتُبَ كَمَا عَلَّمَهُ اللَّهُ

او منع به نه کوي کاتب مذکور له کتابت څخه د خط لکه چې خدای ﷻ ورده ته ښوولي وه، ولي لکه خدای ﷻ چې ده ته خط ورښوولی دی د هغه تعلیم په شکر کې د کاتب وبندګانو ته د خدای ﷻ نفع ورسوي، وهذا من قبيل واحسن کما احسن الله الیک.

فَلْيَكْتُبْ وَلْيُمْلِلِ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ

**پوه سه:** چې دا امر بالکتابت دی وروسته ترنهي له منع څخه د کتابت لپاره د تاکيد دی.

**مسئله:** دا امر په وجوب د کتابت مختلف فیه مجاهد رحمه الله يې واجب بولي که طلب خندي وکړي، او حسن بصري رحمه الله وايي چې دا کتاب واجب کفايي دی نو که کاتبان ډېر وه خو د يو کاتب په منع سره غاړې نه دې بندي او که کاتب فقط دا يو سړی و نو پر هغه واجب عين دی.

**درويش وايي:** تحمل د شهادت چې طلب خلق خندي وکړي قياس دی پر کتابت شبراً بشبر، او ضحاک رحمه الله وايي چې کتابة الخط او تحمل الشهادت په ابتداء کې واجب وه او په لايضار کاتب ولا شهيد سره منسوخ سوه وفيه مثل مامر عنقريب ان النسخ يقتضى تقدم المنسوخ على الناسخ وههنا ليس كذالك لان نزول آية المدنية كلها في زمان واحد.

او القاء او بيان به وکاتب ته هغه سړی کوي چې پرده پور باندې وي، ولي چې اقرار دده پر ده باندې حجت ګرځېدای سي شرعاً او د صاحب الدين خبرې ته اعتبار نسته چې مديون اقرار په ونه کړي، او يا قاضي وروسته تر ثبوت شرعي په قول د دائن حکم ونه کړي.

وَلْيَتَّقِ اللَّهَ رَبَّهُ وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْئًا

او له خدايه دې وېرېږي املا کوونکی او يا کاتب چې رب دده دی، او نه



Scanned by CamScanner

دي کموي له حق څخه هیڅ شی یعني که څه هم لږ شی وي

**درویش وایي** که څه هم مظهري رحمه الله مکلف په ولیتق الله ګاهي مملي بولي او ګاهي کاتب لکن صحیح هاده چي مخاطب املاء والا دی، ولې چي په هغه کې احتمال د بخس سته او په کاتب کې خو احتمال د زیادت او نقصان دواړو سته کما مر من قبل قریبا کذا قال صاحب روح المعاني العلامة البغدادي رحمه الله

فَإِن كَانَ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيهًا

او که چیرې د هغه سړی چې پر ده پور باندي و، ناقص العقل او یا اسراف کونکی ویدخل فیه المجنون والمعتوه.

أَوْ ضَعِيفًا

یا ضعیفه په سبب د صغر او یا د ډیر سپین ږیرې و.

أَوْ لَا يَسْتَطِيعُ أَن يُمِلَّ هُوَ

او یا یې طاقت نه و چې دی پخپله املاء او بیا وکړي یعني یا ګونګی وي او یا په ژبه د کاتب نه پوهېدی. او یا بندي و. او یا سخت ناجوړی و، چې د خبرو توان یې نه در لودی، او یا غائب و چې کاتب ته نه سوای حاضرېدلای. او یا پرده نشینه حیا ناکه ښځه وه چې کاتب ته یې القا نه سوای کولای.

فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّهُ

نو بیا دې کاتب ولي د مذکوره کسانو یعني قریب د صبي ا یا مختل العقل سړی او یا وکیل د دوی یا مترجم دې بیان وکاتب ته وکړي.

بِالْعَدْلِ ۚ

یعنې بېله نقص او یا زیادت.

**پوښتنه**: څه فائده ده په املاء د پور والا وو سره د دې چې که خصومت منع ته راسي د ده قول پر پوروړي الزام نه سي کېدای؟

**ځواب**: مظهري رحمه الله وایي فائدة الکتابة ان لاینسی العاقد ان قدر الثمن او قدر راس المال او المسلم في او الاجل او نحو ذالک لا ان یکون حجة لان



Scanned by CamScanner

الحجة انما هو الشهود انتهی بعبارته.

**درویش وایي:** چي سائل خو سوال د بیان د پوروالا د فائدې کوله، او مظهري جواب په فائده د کتابت ورکړی بل الحق في الجواب دادی چي که خصومت منځ ته راسي نو دائن خو مدعي ګرځي او شاهدان هم ده لره دي نو به منځ کي د شاهدانو چي دی املا وکړي د مدیون په حضور کي، نو شاهدان به دده د املال سره برابر شاهدي ادا کړي والله اعلم، قال علیه الصلوة والسلام البینة علی المدعي والیمین علی من انکر، رواه اصحاب کتب الآحادیث اکثرهم.

## وَاسْتَشْهِدُوْا شَهِيْدَيْنِ مِنْ رِّجَالِكُمْ

او تاسي طلب وکړئ د دوو شاهدانو چي دوئ تحمل د شهادت وکړي پر ماجری بین العاقدین من العقد والامور المتعلقة به کما ذکرت من قبل.

**سوال:** چي خصومت واقع سي بیا ب نو دوئ شاهدان بلل کېږي. نو اوس په وخت کي د عقد یې دوئ څرنګه شاهدان مسمی کړه؟

**څواب:** ان هذه التسمیة من قبیل التسمیة الواقعة في قوله علیه الصلوة والسلام من قتل قتیلا فله سلبه وتسمی مثل هذه التسمیة مجاز بالمشارفة. قوله من رجالکم جار او مجرور متعلق دی په استشهدوا پوري فالمعنی من اهل دینکم، یعني من الاحرار المسلمین البالغین. ووجه ذالک ان المخاطبین بقوله یا ایها الذین آمنوا اذا تداینتم الآیة هم المسلمون الاحرار، والمداینة لایکون غالبا الا بین الاحرار، نو زموږ حنفیانو رح شاهدي د نابالغ روا نه بولي لانه لیس رجل، او دا د شافعي، د مالک، احمد او د عامو فقهاؤ رح دی.

**تفریع:** چونکه فقهاء رح وجه د عدم جواز د شاهدي د کوچني دا وایي چي د کوچني په عقل او تمییز کي نقصان سته، نو دغه رنګه نه ده روا شاهدي د لېوني او دماغ خرابي چي معتوه یې بولي او پر دې د ټولو علماؤ فتوی او اجماع د لانهما في معنی الصبي بل اولی بعدم القبول، او دغه رنګه نه ده روا شاهدي د مریي وبه قال مالک والشافعي رح، او امام احمد رحمه الله وایي چي شاهدي د مریي پر احرار او پر مریانو دواړو روا ده.

**مسئله**: لایجوز شهادة کافر علی مسلم اجماعاً، او امام مالک او شافعي او احمد رحمهم الله شاهدي د کفار بعضهم علی بعض روا نه بولي، ولي چي کافر خو مطلقا فاسق دی کما قال الله تعالی والکافرون هم الظالمون. او امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله وايي چي شاهدي د کفارو یو پر بل روا ده کي څه هم ملتونه سره مخالف وي، لکه چي یو یهودي او بل نصراني وي مثلاً لان اهل الذمة من اهل الولایة لان لهم ولایة علی اولادهم الصغار. وقال الله تعالی في حق الکفار بعضهم اولیاء بعض. واما کفرهم ففسق في نفس الامر. واما في عقیدتهم فذالک الکفر دیانة والکذب حرام في الادیان کلها.

فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ

او که نه وه دوه شاهدان دوه رجل.

**پوه سه**: چي دا رفع د ایجاب کلي ده سلب کلي نه دی، یعني چي یو رجل هم نه وي لعدم صحة ترتیب الجزاء علی السلب الکلي کما لایخفی، والجزاء هذا.

فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ

نو بیا دي شاهدان وګرځول سي یو نر او دوې ښځې.

**مسئله**: شاهدي د ښځو د نرو سره روا ده په اموالو کي بالاجماع نه په حدود او قصاص کي لانها تندرئ بالشبهات وفي شهادة النساء شبهة البدلیة فلابد فیها من الرجال فقط. وهذه المسئلة مذکورة في کتب الفقهه.

مِمَّن تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاءِ

**پوه سه**: چي حرف جر متعلق دی په محذوف سره چي هغه محذوف صفت دی د رجل او امرئتان، ای کائنون من الشهداء المرضین عندکم.

**سوال**: مرضی شاهدان خو په مطلق شاهدانو کي شرط، نو څه حکمت دی چي د ښځو د شاهدی سره یې دا قید وویل سو؟

**ځواب**: لقلة العدالة في النساء.

**پوه سه**: چي حرف جر په "من الشهداء" کي متعلق دی په محذوف پوري چي هغه بیا حال دی له ضمیر راجع الی الموصول څخه، ای فمن ترضونهم



Scanned by CamScanner

كائنين من بعض الشهداء لعلمكم بعدالتهم وثقتكم به.

**فائده:** په مذكوره آيت سره امام اعظم رحمه الله دليل وايي پر دې باندې چې قاضي دې حكم نه كوي په شهادت د يو رجل سره د يمين د مدعي في الاموال كما في غيرها بالاجماع. وجه الاستدلال كه په اموالو په شهادت د يوه رجل سره د يمين د مدعي حكم روا واى، نو امرئتان ته ضرورت څه و.

**مسئله:** شهادت د يوازو ښځو روا دى په داسي شيانو چي نر د هغه شيانو و علم ته لاره نه لري لكه ولادة، بكارة وعيوب النساء ولكن امام اعظم رحمه الله وايي چي په دغو شيانو كي شهادت ته د يوې ښځي روا دى چي حره وي، مسلمانه وي او عادله وي لكن بيا هم دوې ښځي افضله دي، او امام مالك رحمه الله دوې ښځي شرط بولي، او امام شافعي رحمه الله وايي چي څلور ښځي شرط دي تا چي هرې دوې ښځي په ځاى كي د يوه رجل ودريږي.

**اَنْ تَضِلَّ اِحْدٰىهُمَا فَتُذَكِّرَ اِحْدٰىهُمَا الْاُخْرٰى**

يعني ددې سبب عدد په ښځو كي شرط دى چي د يوې ددې دوو ښځو شاهدانو څخه به هېره سي شاهدي نو هغه بله ښځه بې وربه ياد كړي.

**پوه سه:** چي اصلي علت د تعدد د ښځو خو تذكر دى د يوې و بلې ته لكن چونكه تذكر خو پسله هېري څخه وي نو ځكه په آيت مبارك ان تضل آه علت د تعدد وګرځاوه.

**فائده:** له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي د ښځي حافظه او قوت عاقله كمزورې ده، نو ځكه تعدد غواړي ولذا ورد في الحديث النبوي ﷺ الذي رواه البخاري وغيره قال رسول الله ﷺ مارئيت من ناقصات عقل و دين اذهب للب الرجل الحازم من احدا كن قلن يا رسول الله ما نقصان عقلنا قال اليس شهادة المرئة على النصف من شهادة الرجل قلن بلى قال فذالك من نقصات عقلها فما نقصان ديننا يا رسول الله. قال اليس اذا حاضت لم تصل ولم تصم قال فذالك من نقصان دينها.



Scanned by CamScanner

# وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَآءُ إِذَا مَا دُعُوا

او منع دې نه کوي شاهدان چې دوئ وبلل سي يا د تحمل د شهادت لپاره او يا د شاهدي د اداء کولو لپاره، ولي چې کومک د ورور مسلمان سره لازم دی خصوصاً اداء الشهادة.

**پوه سه**: چې دعوت د شهداو که د تحمل لپاره وي، نو دا امر ايجاب دی، په نېز د بعض علماء وهذا ضعيف. او بعض فقهاء وايي که د تحمل د شاهدي لپاره خلگ وېر وه، نو هر دوه مخير دي که تحمل د شاهدي کوي او که نه يعني واجب كفائي دي، او که بل څوک نه وه نو امر ايجاب دی. کما في صلوة الجنازة، وقيل هو امر ندب مطلقا، او که چېري دعوت د شهداء لپاره د اداء د شاهدی، وو چې دوئ يې قبلاً تحمل کړی و، نو اجابت يې واجب دی، بدليل قوله تعالى ولا تكتموا الشهادة، او بعض فقهاء وايي که شاهدان لپاره د اداء د شاهدی وغوښتل سوله چې د قاضي په حضور شاهدي اداء کړي، نو که مجلس د قاضي نژدې و، نو اجابت يې واجب دی او که لېري و بيا واجب نه دی.

**درويش وايي**: چې اندازه د قرب يې بعض فقهاوو دا بيان کړې ده چې شاهد چې مجلس ته د قضاء تللي وای او شاهدي يې اداء کړې وای په دغه ورځ بيرته کورته را رسېدی، نو دا قريب دی، او که نه سوای رسېدلای نو دا بعيد دی پر دوئ واجب نه ده چې اداء ته د شاهدئ به ورځي لقوله تعالى ولا يضار كاتب ولا شهيد، البته مندوب ده لقوله عليه الصلوة والسلام انصر اخاک ظالما او مظلوما.

**مسئله**: که شاهدان سپين ږيري وه يا ناجوړي وه، نو طالب د شاهدئ دوئ پخپل موټر کي مثلاً بوتله نو شاهدان نه دي گناه کاره، او که طالب د شهادت خپل موټر هم نه درلودی او ځای د قضاء في الجملة لېري و نو طالب د شهادت وشاهدانو ته يو يا دوه خره مثلاً ورکرايه او يا موټر ورکرايه کړی سليمان رحمه الله وايي شهادت يې نه قبلېږي لکن شيخ ابن الهمام په فتح القدير کي دا خبره رد کړې ده وايي چې اکرام د شاهدانو لازم دی شرعا وهذا من نوع



Scanned by CamScanner

الاکرام لهم فیصح شهادتهم

**مسئله**: که طالب د شاهدانو پخپل کور کې ډوډۍ او مهماني جوړه کړې وه، نو که دمخه تر طلب د شهادت دا مهماني جوړه کړه سوې وه، نو د شاهدانو شهادت صحیح دی او که یې صرف د شاهدانو لپاره دا مهماني جوړه کړې وه نو د شاهدانو شاهدي نامنظوره ده لانه کالرشوة الیهم علی الشهادة، او دا هم قول د ابو حنیفه رحمه الله دی، او له امام محمد رحمه الله څخه روایت دی چې په دواړو صورتونو کښې شاهدي مردوده ده، او امام ابو یوسف رحمه الله وایي چې په دواړو صورتونو کې شهادت صحیح دی. ابن الهمام رحمه الله وایي وهو الاوجه للعادة الجاریة بالاطعام عند اهل المروة لمن حضر دارهم شهوداً کانوا او غیرهم نعم که اطعام د شهود له خوا مشروط و، نو اجرت او رشوت پر شهادت حرام علی الشاهد اکله وعلی المشهود به اعطائه، قال علیه السلام الراشي والمرتشي في النار رواه الطبراني رحمه الله.

وَلَا تَسْـَٔمُوٓا۟ أَن تَكْتُبُوهُ صَغِيرًا أَوْ كَبِيرًا إِلَىٰٓ أَجَلِهِۦ

او تاسي اې پور ورکونکو مه ستړي کېږئ یعني په سبب د ډېروالي د معاملاتو ستاسي په پور له دې څخه چې تاسي نوشته کوئ خپل پور او اجل وغیره په کاتب سره.

**پوه سه**: چې د ان تکتبوه سره کلمه د من مقدر ده کما اشرت الیه بقولي له دې څخه که هغه حق او پور کوچنی یعني لږ وي او که غټ یعني ډېر وي تر مدې پورې.

**پوه سه**: چې د الی متعلق محذوف دی او هغه متعلق حال له ضمیر څخه د تکتبوه فالمعنی مضافا ومنصوبا ذالک الحق یعني پور په خط کې و اجل ته بمعنی تکتبوا الحق مع الاجل المقرر.

ذَٰلِكُمْ أَقْسَطُ عِندَ ٱللَّهِ وَأَقْوَمُ لِلشَّهَـٰدَةِ وَأَدْنَىٰٓ أَلَّا تَرْتَابُوٓا۟

**پوه سه**: چې "ذالکم" ومصدر ته د "ان تکتبوه" اشاره ده.

**سوال**: مصدر ده ان تکتبوه خو کتابت دی نو په ذا مذکر سره اشاره څرنګه ورته وسوه؟

**ځواب**: کتابة مصدر دی و مصدر ذوالتاء اشارة په مذکر او موئث دواړو روا ده، او داغه رنګه ارجاع د ضمیر مذکر او مونث ورته روا ده، او بعض حواشي و د بعض کتابو چي مصدر په ذو التاء سره نه مقید کړي هغه سهوه ده، ولې چي ارجاع د ضمیر مذکر خو په تاویل د مصدر په حدث سره او ارجاع د ضمیر په اعتبار د لفظ روا ده، هکذا قالوا نو که مصدر ذو التاء نه وي نو موئث ضمیر په کوم اعتبار ورته روا دی، صرح بما قلت في بعض حواشي خلاصة الحساب وغیره فتذکر فان هذا سانح عزیز. وقد اشار صاحب روح البیان الی دفع سوال ارجاع الضمیر بقوله ای کتب الحق الی اجله، یعني اول الکتابة بالکتب وهو مصدر بمعنی الکتابة. نو معنا د آیت مبارک داسي ده چي دغه کتابت ای مؤمنانو اعدل دي په نېز د خدایﷻ، یعني په حکم کي د خدایﷻ او دا کتابت ښه کومک شاهدانو لره پر اداء د شاهدی عند الحاکم او دا کتابت نژدې دی ونفي ته د شک ستاسي في جنس الدین یعني چي پور نقدي روپۍ دي او یا مکیل دی لکه په سلم کي، او په مقدار کي د پور او په اجل کي د پور او په شاهدانو کي، یعني شاهدان خوک دي ولي دا ټول په خط کي درج دي، قال الله تبارک وتعالی:

إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَٰرَةً حَاضِرَةً تُدِيرُونَهَا بَيْنَكُمْ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَلَّا تَكْتُبُوهَا

**بوه سه**: چي دا استثناء منقطع ده من الامر بالکتابة فالمعنی لکن وقت تجارتکم تجارة حاضرة یعني بحضور البدلین وقت التبایع، چي تاسي دا تجارت دائر کوئ په منځ کي خپل یعني بتایع او تجارت یدا بید وي، نو نسته پر تاسي ګناه په دې کي چي ددغه تجارت یداً بید خط نه کړئ نوشته. ولې چي په داسي تجارت کښي تنازع او هېره ډېره لږ ده، بعض فقهاء وایي چي فائده د کتابت داده په حق کي د شاهدانو چي هغه واقعه چي دوئ ښکښي شاهدان وي د خط په ذریعه به دوئ ته وریاد سي.

**مسئله** که شاهدانو خپلي امضاء او دستخطونه په هغه کاغذ کې ولیدل، نو دوئ ته شاهدي اداء کول په دغه قدر سره نه ده روا مګر هغه وخت روا ده چې واقعه وریاد سي، کذا ذکره القدوري وغیره لان الخط یشبه الخط. وقال صاحب الهدایة وهذا قول ابي حنیفة رحمه الله وعندهما یجوز للشاهد ان یشهد بمجرد رؤیة خطه وان لم یتذکر الواقعة لان مشابهة الخط للخط من کل الوجوه في غایة الندرة فتکون کالعدم. الا ترى ان الصحابة رضي الله عنهم والتابعین رح کانوا یعملون على کتب النبي ﷺ وخلفائه کما یعملون على خطاباته ﷺ وعلى خطاباتهم رضي الله عنهم یعني بالسماع والمشاهدة والله اعلم بالصواب الیه المرجع والمآب.

## وَأَشْهِدُوٓا۟ إِذَا تَبَایَعْتُمْ

او تاسې شاهدان دروئ په هغه وخت کې چې بیع کوئ. قال بعض العلم الاشهاد واجب که بیع په نقدو روپیو او که په پور وي، ابو سعید الخدري رضي الله عنه وایي چې اشهاد لپاره د ندب دي. ولې چې ډېر خله به علیه السلام شی رانیوی او اشهاد به یې نه کاوه، وروى احمد بسنده عن عمارة بن خزیمة عن عمه وهو من اصحاب النبي ﷺ چې یو وخت نبي ﷺ د یو صحرائي څخه آس رانیو یعني په نقدو روپیو، نو علیه السلام په تلوار سره کور ته ولاړی چې صحرائي ته د آس ثمن راوړي، او د صحرائي دا خیال سو چې علیه السلام وخندېدی. او نور صحابه کرام رضي الله عنهم پیدا سوه چې په دې نه وه خبر چې علیه الصلوة والسلام دا آس رانیولی دی، نو د اعرابي څخه یې آس بیع کړی، او بعض کسانو د آس په قیمت د علیه السلام ترقیمت بالا روپۍ ومنلې، نو اعرابي وعلیه الصلوة والسلام ته ورناري کړې چې ته که آس رانسې ژر راسه ورنه زه یې پر بل سړي خرڅوم، نو علیه السلام چې دا نعره د اعرابي واورېدله را ولاړ سو، او اعرابي ته یې وویل چې آس خو ما له تا څخه رانیولی دی، اعرابي ورته وویل لا والله ما بعتک، او علیه السلام ورته وویل بلى قد ابتعته، نو اعرابي وعلیه السلام ته وویل چې شاهد راوله چې شاهدي اداء کړي انی قد بایعتک، نو صحابه کرامو رضي الله عنهم وصحرائي ته وویل دی یعني علیه السلام نه وایي مګر حق

**درویش وايي**: چي دا صحرائي غالباً کافر و، ولي چي د علیه السلام تکذیب سي په دې خبره کي وکړئ چي علیه السلام ورده ته وکړه قد ابتعته منک او صحرائي ورته وویل لا والله بیله کافره بل خوک داسي خبره نه سي کولای، خیر په دې دوران کي خبرو د علیه الصلوٰة والسلام او د صحرائي خزیمه بن ثابت انصاري ﷺ واریدلې، نو خزیمه وویل زه شاهد یم چي علیه السلام دا آس له تا څخه رانیولی دی، نو علیه السلام خزیمه ته وویل چي ته خو په وخت کي د بیع زما او د صحرائي حاضر نه وې، نو تا له څه رویه شاهدي اداء کړه، خزیمه ورته وویل چي په وخت کي د نزول د وحي پر تا باندي خو هم زه حاضر نه یم نو دي ولي زه تصدیق کوم په هغه اسماني خبرو کي، نو علیه السلام د خزیمه ﷺ شاهدي د دوو کسانو پر ځای د همېشه لپاره ودرول

**فائده**: پوه سه چي علیه الصلوٰة والسلام چي له اعرابي څخه آس وګرځاوه په دې سبب چي دده یقین و چي ما آس رانیولی دی او اعرابي دروغ وايي، لا بشهادة خزیمة وحده.

**پوښتنه**: نو ولي علیه السلام شاهدي د خزیمه د دوو کسو شاهدي وبلل؟

**ځواب**: هغه له دې وجهي د دوو کسو شاهدي وګرځوله چي د خزیمه کمال د ایمان او قوت د عقل دده او لوېه پوهنه دده یې ولیدل.

**تفریع**: له دې څخه دا خبره معلومه سوه چي قاضي که په حق خبر و دته روا ده چي موافق د خپل علمه سره حکم وکړي، ولي چي د قاضي خپل یقین بالا دی تر هغه ظن چي په شاهدي د دوو شاهدانو ده ته پیدا کېږي، نو ځکه ابوبکر ﷺ پر فاطمه ﷺ باندي حکم وکړی چي تاته میراث د علیه السلام نه درکوم په هغه حدیث سره چي ابوبکر ﷺ له علیه السلام څخه اورېدلی و نحن معشر الانبیاء لانورث، رواه اصحاب السنن.

**مسئله**: که د سلطان یا قاضي یا بل حاکم په شرط ددې چي عدل وي که یې له چا څخه شی رانیوی او یا یې پر چا پور باندي و او هغه منکر و جبراً دې خندي واخلي.



Scanned by CamScanner

**درویش وایي**: چي دا مسئله کـه څـه هـم مظهـري رحمه الله راوړې ده لکن دا مسئله دې ملایان نـه شائع کوي ولـي چي ددې مسئلې پـه اساس د اوسني زماني ظالمان حکام او رشوت خواره قاضیان د خلګو څخه پـه زور او جبر روپۍ وغیره اخلي ولنعم ماقال الزمخشري في تفسیره.

قضات زماننا صاروا لصوصاً عموماً في القضايا لاخصوصا

نخاف منهمو لو صافحو نا للصوا من خوا تمنا خصوصا

**درویش وایي**: ولهذه الفائدة زدت في نقل قول المظهري قولي په شرط ددې چي عدول وي، قال عز من قائل

وَلَا يُضَآرَّ كَاتِبٌ وَّلَا شَهِيدٌ ۚ

**پوهـه**: چي دا صیغه یعني لایضار احتمال د معلومي صیغې لري چي اصل یې لایضارر دی نـو معنا یې داده چي ضرر دې نـه رسوي کاتب او نـه شاهد و ومتبایعینو ته که ترک د اجابت د کتابت او د شاهدي وکړي چي دی متعین وي لپاره د کتابت او شاهدي او یا ضرر ورسوي شاهد یا کاتب په تحریف او تغییر سره په کتابت او شاهدي، او دا هم احتمال لري چي صیغه مذکوره دې مجهوله وي یعني اصل یې لایضارر وي نو معنا د آیت داده چي متبایعان دې ضرر نه رسوي وکاتب ته چي مزدوري د کتابت نه ورکوي، او نه شاهد ته چي هغه مریض وي یا ضعیف وي، او دی متعین لپاره د شاهدي نه وي بلکه نور شاهدان وي په واقعه کې د تبایع پیدا کړي.

وَإِن تَفْعَلُوا فَإِنَّهُ فُسُوقٌ بِكُمْ ۗ

او کـه تاسي وکړی ما نهیتم منه من الضرر، نـو پـه تحقیق دا ستاسي د نسق او خروج دی له طاعت څخه د خدای جل جلاله دلیل دی.

وَاتَّقُوا اللَّهَ ۖ وَيُعَلِّمُكُمُ اللَّهُ ۗ وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٢٨٢﴾

او له خدای جل جلاله څخه وبیرېږئ پـه ترک کې د اوامرو د خدای جل جلاله او یا پـه کولو کي د منهیاتو د خدای جل جلاله، او خدای جل جلاله تاسي ته دربښیي مصالح د دنیا او آخرت



Scanned by CamScanner

ستاسي، او خدای ﷻ په هر شي خبر دی، چي نه جملې څخه د هغه شیانو ستاسي فوائد د دنیا او آخرت دي فینبغي للعاقل الاعتصام بحبل الله المتين

وَإِن كُنتُمْ عَلَىٰ سَفَرٍ وَلَمْ تَجِدُوا كَاتِبًا فَرِهَانٌ مَّقْبُوضَةٌ

او که تاسي پر سفر واست او کاتب مو نه کړی پیدا نو د مدیون څخه دي رهن یعني گرو واخستل سي.

**بوه سه:** چي رهن په لغت کي حبس ته وایي او په شرع شریفه کي نوم دی د هغه شي چي بند وي د صاحب الحق سره ددي لپاره که حق و صاحب ته نه ورسېږي د هغه محبوس شي څخه به استیفاء د خپل حق وکړي، او هغه گرو شی به مقبوض د صاحب الحق وي.

**بوه سه:** چي د مقبوضه قید له کبله امام اعظم، امام شافعي او امام احمد رح وایي چي نه لازمېږي رهن بېله قبض یعني په نفس عقد نه لازمېږي، او امام مالک رحمه الله وایي چي رهن په نفس عقد لازم دی یعني یجبر الراهن علی تسلیم الرهن بعد العقد ودلیل الائمة رح الثلثة المذکورین نص القرآن بالقبض.

**درویش وایي:** چي امام مظهري رحمه الله دخپل عادت سره سم مسئله د رهن په دري مخه کي سره د نقض او ابرام څېړلې ده، چونکه د درویش عادت همېشه پخپل تفسیر د فقه شریفي مسئلې او بیان د مذاهبو سره د دلائلو او نقض وجواب را وړه نه دي، نو څکه درویش هغه تفصیل د مسائلو د دین و مرحوم مظهري ته پرېښوله، ولي مطالعه کونکي د تفسیر د درویش چي عمومي طالبان دي او یا د مساجدو خطیبان او امامان دي د هغه تفصیل څخه کومه فائده نه سي تر لاسه کولای.

فَإِنْ أَمِنَ بَعْضُكُم بَعْضًا فَلْيُؤَدِّ الَّذِي اؤْتُمِنَ أَمَانَتَهُ وَلْيَتَّقِ اللَّهَ رَبَّهُ

او که بعض پور ورکونکو بعض پوروړي امین وگڼله او په سبب د امین گڼلو یې خط نه خندي واخستی، او گرو یې هم نه خندي واخستی، نو باید

هغه پوروړي چې دائن آمين وبالـه خپل امانت يعني پور دي و دائن ته ورکړي، او پوروړي د لـه خدايه وېرېږي په خيانت او انکار کي د حق د دائن. په حديث شريف کي چي روايت يې انس رضي الله عنه کړی دی او بيهقي په شعب الايمان کي راوړی دی انس رضي الله عنه وويل فلما خطبنا رسول الله ﷺ الا قال لا ايمان لمن لا امانة له ولا دين لمن لا عهد له. او په حديث شريف کي د منافق په علاماتو کي يوه دا خبره راغلي ده، اذا اوتمن خان.

**وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ ۚ وَمَن يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ**

او تاسي يعني اې شاهدانو مه پټوئ شهادت خپل يعني که چېري مديون خيانت کاوه يا له حق څخه د دائن يې انکار کاوه. او که چا پټه کړه شاهدي په حق سره نو دغه پټونکی ګناه کار دی زړه دده.

**پوه سه:** چي د اعراب په باره کي "قلبه" فاعل دی د "اثم" او يا قلبه مبتداء ده اثم يې خبر مقدم دی، وعلی التقدير الثاني تولـه جمله خبر ده ان ده. روح البيان داسي سوال کړی دی ولي اقتصار ونه کړه سو پر يوازي "فانه اثم" يعني د کاتم الشهادة ګناه کاره دی، او څه فائده وه په ذکر کي د قلب. او بيا يې ځواب ورکړی دی چي محل د کتمان چونکه زړه دی او کتمان د زړه کار دی نو ځکه يې اسناد د اثم وزړه ته وکړی تاکيدا کما يقال رئيته بعيني وسمعته باذني وحفظته بقلبي، او بله وجه د اسناد وزړه تـه دا هم ده چي زړه رئيس د اعضاو د بدن دی او د زړه افعال ډېر غټ دي، ولهذا روی البخاري ومسلم عن النعمان بن بشير رضي الله عنه قال رسول الله ﷺ ان في جسد بني آدم لمضغة اذا صلحت صلح الجسد کله واذا فسدت فسد الجسد کله الا وهي القلب.

**درويش وايي:** لکه چي حيوة د ټولو اعضاو د بدن په محسوسه توګه په زړه پوري مربوط دی او دغه موت حسي د بدن هم په زړه پوري تړلی دی، يعني تر څو چي زړه ژوندی وي د بدن اعضاء به ټوله په حيات معنوي ژوندي وي. او که زړه خپل حيوة معنوي له لاسه ورکړي د ټولو اعضاو حيوة معنوي هم له منځه ځي. او خدای ﷻ خبر دی په هغو اعمالو چي تاسو يې کوئ، يعني

خدای ﷻ به تاسي ته جزاء د ټولو عملو درکوي په ورځ کي د قیامت ان خیرا فخیر وان شر فشر

**فائده**: له دې آیت څخه دا صراحة وفهمېده چي کتمان د شهادت حرام دی، او اداء د شاهدی فرض ده که څه هم مشهود له د شاهد څخه طلب د شهادت ونه کړي هغه وخت چي شاهد وویني خصومت په منځ کي د مشهود له او مشهود علیه.

**مسئله**: که مشهود له په شهادت د شاهد نه و خبر یعني په وخت کي د عقد مشهود له شاهد نه و لیدی، نو پر شاهد لازمه ده چي مشهود له خبر کړي چي زه په فلاني موضوع کي ستا و د فلاني حاضر وم او ستا شاهدیم.

**سوال**: په سابق بیان کي تا وویل په ږغا د آیت مذکوره چي اداء د شاهدي فرض ده که څه مشهود له د شاهده څخه طلب د شهادت ونه کړي آه. او سره له دې چي په یو حدیث طویل کي چي روایت یې عمران بن حصین ﷺ کړی دی په یوه حصه کي داسي راغلي دي چي علیه السلام داسي ووېل "ثم ان بعدهم" ای بعد خیر القرون چي دمخه په حدیث کي ذکر سوي دي "قوما یشهدون ولا یستشهدون" دا خو علیه السلام په ذم کي ددغه قوم ووېل، نو آیا ستاسي د خبري او د حدیث تر منځ به منافات نه وي؟

**ځواب**: مراد زما په خبره کي خو شهادت بالحق دی، او په حدیث شریف کي مراد شهادت بالباطل او کاذب شاهدي ده بقرینة مابعده ویخونون ولا یوتمنون وینذرون ولا یوفون، او په روایت کي د عمر ﷺ چي روایت یې نسائي کړی دی صراحةً دا جواب فهمېږي حیث قال ﷺ ثم یظهر الکذب حتی ان الرجل لیحلف ولا یستحلف ویشهد ولا یستشهد.

**درویش وایي**: چي داسي روایات نورهم ډېر دي متفق علیها وغیرها سته، یو له دې حدیثو څخه دا معلومه سوه چي د علیه السلام په مقام کي د ذم الشهادت بالباطل مراد دی.

# لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۭ

او خدای ﷻ لره دي هغه شیان چي په اسمانو کي دي، او هغه شیان چي په مځکه کي دي ملکاً وخلقاً وعبیداً که اجزاء د اسمانو وي او یا د اسمانو له ماهیته څخه خارج شیان لکه ملکي، ستوري، جنتونه، بیت المعمور، بیت العزة الی غیرها او د مځکي اجزاوي یا په داخل کي د مځکي وي او اجزاء د مځکي نه وي لکه معدنیات من الذهب والفضة والجواهرات وغیرها او که د مځکي پر مخ وي لکه حیوانات او نباتات او میوه جات وغیرها، ولا شرکة لغیره تعالی في خلقتها بوجه من الوجوه فلا تعبدوا ایها الناس الا ایاه ولا تعصوه فیما یامرکم به وینهاکم عنه.

# وَإِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ

او که تاسي ښکاره کړئ هغه شی چي ستاسي په زړونو کي وي، او یا یې پټ وساتئ او چاته یې نه اظهار وئ.

**پوه سه:** چي مراد د مافي انفسکم څخه هغه رزائل عملونه لکه نفاق، ریاء، وسمعة عصبیة، حب الدنیا، کبر، عجب، طول امل و الحرص علی الدنیا من الحلال والحرام وترک التوکل علی الله ﷻ والحسد، والحقد وترک الصبر في الفقر والمرض والمصائب ونحو ذالک من خبائث افعال القلوب والنفوس، احادیث نبویه عن جبیر بن مطعم ؓ کما رواه ابو داوٗد ؒ لیس منا من دعا الی عصبیة ولیس منا من مات علی عصبیة.

**پوه سه:** چي عصبیة یې ځایه او په روا او ناروا کي عزیز گلوی، نه وایي لکه زموږ په پښتنو کي چي رواج ده، په چا کي لړ او په چا کي ډېره او په چا کي تر حده تېره، وفي الحدیث متفق علیه عن حارثة بن وهب ؓ الا اخبرکم باهل الجنة کل ضعیف متضعف، لو اقسم علی الله لابره، آیا زه تاسي ته خبر در نه کړم په اهل د جنت هر ضعیف سړی یعني په دنیایي حالاتو کښې، او چي خلگ یې هم ضعیف گڼي لکن پر خدای ﷻ دونده اعتبار لري چي که پر یو

شي قسم واخلي خدای ﷻ يي نه خانتوي، يو شاعر په بيان کي ددغو خلگو داسي وايي

بر فلک بر تر بود اسرار او شيئا لله كا ر ا و

او بل شاعر وايي

گفته ا و گفته الله بو د گرچه از حلقوم عبد ا لله بو د

او بل شاعر داسي وايي

انانكه زره وار بصورت محقر اند فردا از خيال وناز بفردوس ننگرند

قال صلعم الا اخبركم باهل النار كل عتل، يعني ډېر سخت او غليظ طبعيت "جواظ" بعض وايي چي مال جمع كونكى وي او هيڅ چاته يي نه وركوي، او بعض وايي په بدن چاغ او خيالور، او له حسن بصري رحمه الله څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وويل حب الدنيا راس كل خطيئة، رواه البيهقي في شعب الايمان، او د انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وويل حب ابي بكر وعمر ايمان وبغضهما نفاق، كما في الشعية اليوم رواه ابن عدي، ورى جابر رضي الله عنه عن النبي ﷺ حب ابوبكر وعمر من الايمان وبغضهما كفر.

**درويش وايي:** كما في الشيعة واقوام هزاره وغيرهم "وحب الانصار من الايمان وبغضهم كفر.

**درويش وايي:** كما في فرق الضلال المعروفة وحب العرب من الايمان وبغضهم كفر، ومن سب اصحابي فقد كفر.

**درويش وايي:** چي عموما كان السب او خصوصا فعليه لعنة الله، ومن حفظني فيهم، كه چا مراعات زما وكړى په باره كي زما د اصحابو رضي الله عنهم فانا احفظه يوم القيامة رواه ابن عساكر رحمه الله، وعن النبي ﷺ برواية المظهري حب علي رضي الله عنه عبادة، له عطية سعدي څخه روايت دى ان الغضب من الشيطان، رواه ابو داؤد وعن بهز بن حكيم مرفوعا ان الغضب يفسد الدين والايمان كما يفسد الصبر العقل رواه البيهقي.



Scanned by CamScanner

**درویش وایي**: چي بعض عوام وایي په وخت کي د غضب (سنا د بن وغیرهم) نعوذ بالله عن ذالک. بعض عوام په وخت کي د غضب وایي چي (خدای رالله ووایي زه دا فلانی کار والله که وکړم) نعوذ بالله عن هذا القول وامثال ذالک کثیرة في العوام ولاشک انهم یکفرون بذالک

**پوه سه**: چي صبر بفتح الصاد وکسر الراء یوه ډېره ترخه ژړا دہ د یوي درختي، وروی البیهقي مرفوعاً عن عمر بن شعیب بسنده ان اول صلاح هذه الامة الیقین والزهد و اول فسادها البخل والامل، وری احمد رحمه الله عن سعد رض قال رسول الله ﷺ من سعادة ابن آدم رضاه بما قضی الله ومن شقاوة ابن آدم سخطه بما قضی الله.

**درویش وایي**: چي په مهلکاتو کي ډېر آحادیث صحیحه مرویة عن رسول الله ﷺ سته وفیما ذکرناه کفایة لمن عقل عن الله عزوجل.

یُحَاسِبْكُم بِهِ اللَّهُ فَيَغْفِرُ لِمَن يَشَاءُ وَيُعَذِّبُ مَن يَشَاءُ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿۲۸۴﴾

نو ستاسي سره حساب کوي خدای ﷻ یعني په ورځ د قیامت. نو که حساب د صرف عرض وي چي حساب یسیر یې بولي نو هغه بخښنه کوي وهغه چاته چي اراده د بخښني ورته لري، او یا به حساب د مناقشه او سختی وي. نو په عذابوي هغه سړی چي اراده د تعذیب ورته لري. او خدای ﷻ پر هر شي قادر دی من المغفرة والتعذیب وغیر ذالک هیڅ حق د اعتراض پر خدای ﷻ څوک نه لري. حتی ان شاء عذب علی الصغیرة وان شاء غفر الکبیرة من غیر توبة، وفي التفسیر التیسیر چي له ظاهر څخه ددي قول د خدای ﷻ "او تخفوه" دا معلومېږي چي پر افعال قلوب هم مواخذه سته.

والتفصیل چي ټینګ قصد د کفر کفر دی، او په زړه کي راګرځېدل د ګناه بېله عزمه عفوه دي. او عزم د ګناه چي پر دي عزم وروسته پښېمانه سي او رجوع څخه وکړي او طلب د مغفرت له خدای ﷻ څخه وکړي "مغفور دی"

او که چا قصد وکړی د یوې گناه لکه زنی مثلاً بیا د هغې گناه یو مانع ورپیښ شو بېله اختیاره دده لکن دی پر هغه قصد ټینګ و، نو دې سړي ته خو عذاب د فعل د زنی نسته، ولې خو زنی یې نه وکړه، اختلاف په دې کې دی چې پر هغه قصد د زنی خدای پاک عذاب ورکوي او که نه؟ بعض علماء چې هغه قصد د ده عفوه دی لقوله علیه السلام ان الله قد عفی لامتي عما حدثت به انفسها مالم یعمل" یعنې که عملي شی و لکه زنی او "یتکلم" که د خبرو گناه وه لکه غیبت او بهتان لکن اکثر علماء پر دې دي چې قصد د گناه چې بلا اختیاره دده په یوبل مانع دده پاته سوه معفو نه دي، او حدیث مبارک دوی محمول پر دې بولي چې صرف یو فکر د گناه یې پر زړه ورگرځي درجې ته د قصد نه وي رسېدلی، کذا قال الامام ابو منصور الماتریدي رحمه الله انتی مافي التیسیر.

**مسئله:** د پر خله یو سړی په یوه گناه لکه قتل، زنی او شرک که څه هم دی یې نه وکړي شامل وي هلته چې دی په دغه قتل یا زنی د عمل کونکي راضي وي، او دی د پر سخت حریص وي پر هغه فعل له عامل څخه، او په صحیح حدیث کې راغلي دي "من حضر معصیة فکرهها فکانما غاب عنها ومن غاب عن معصیة فرضیها کان کمن حضرها" که څوک په گناه کې د یوه چا حاضر و لکن بد یې ځنې راتله گویا دی حاضر نه و، او که څوک په گناه کې د یو چا حاضر نه و لکن په راضي و گویا دی پکښې ورته حاضر دی، وفي حدیث صحیح آخر من احب قوماً حشر في زمرتهم" که د یو چا خوښ و او محبت یې ورسره درلودی له یو قوم سره د هغو په ډله کې به په ورځ د آخرت حشر کېږي، اللهم ارزقنا حب حبیبک ﷺ وحب من یحبک وحب عمل یقربنا الی حبک، سعدي رحمه الله

گر نشیند فر شته باد یو — وحشت آموز دو خیانت وریو

از بدان نیکویي نیاموزي — نه کند گرگ پوستین دوزي

**فائده:** اهل سنت والجماعت پر دې خبره متفق دی چې په ورځ د قیامت حساب د معاصي قلبیه وو او بدنیه وو حق دی، او عذاب ورکول د خدای ﷻ پر صغائرو گنهو او پر کبائرو هم حق دی، لکن پر خدای ﷻ واجب نه دی، بلکه



Scanned by CamScanner

په مشیت او اراده کي د خدای ﷻ دی چناچه طاؤس ﷫ له ابن عباس ﷺ څخه داسي روایت کړی دی، چي خدای ﷻ بخښنه کوي لمن يشاء الذنوب الکبيرة سواء تاب عنه المذنب او لم يتب، او عذاب خدای ﷻ ورکولای سي لمن يشاء علی الذنب الصغير لانه تعالی مالک الملک لايسئل عما يفعل وهم يسئلون. او معتزله او روافض له حساب څخه ببخي منکر دي، دوئ وايي چي خدای ﷻ ته هر شی معلوم دی نو حساب ته څه ضرورت دی، او معتزله او نور اهل هوا وايي چي تعذيب د عصات پر خدای ﷻ واجب دی. موږ اهل السنت والجماعة وايو چي دغه مذکور آيت او نور آيات قرآنيه او احاديث نبويه ددغو اهل الاهواء د مذهبو رد کوي او زموږ لپاره دلائل دي. وروی الترمذي بسنده عن عائشة ﷺ دا وايي چي يو سړی راغلی او د عليه السلام په حضور کي کښېنستی او ورته وه يې ويل يا رسول الله ﷺ زه مريان لرم چي زما خبري درواغ بولي او زما سره خيانت کوي او زما نافرماني کوي، او زه هم بنکنځل ورته کوم او هم يې وهمه نو زما او ددوئ به څه حال وي يعني په ورځ د قيامت. نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي ورځ چي د قيامت سي حساب به وسي ددوئ د خيانت ستا سره او ددوئ د عصيان ستا څخه او ددوئ د تکذيب تا لره او حساب به وسي ستا د عقاب دوئ لره، نو که عقاب ستا دوئ لره په قدر د ګنهو ددوئ و، نو سره مجرا به سي نه ستا ګنه ده او نه ستا تاوان، او که عقاب ستا دوئ لره کم و د دوئ تر ګنهو نو ستا به حق پسي ورسي، او که عقاب ستا دوئ لره بالا و د دوئ تر ګنهو خدای ﷻ به ستا څخه حساب واخلي د بالابود يعني عذاب به درکړي، او په بل حديث کي چي متفق عليه د بخاري او مسلم دی، له عائشة ﷺ داسي روايت راغلی دی چي عليه السلام يوه ورځ وويل چي هيڅ څوک داسي نسته په ورځ د قيامت چي حساب ورسره وکړه سي مګر هغه هلاک کېږي يعني عذاب به ورکول کېږي، عائشه ﷺ وايي چي نو ما رسول الله ﷺ ته وويل "اوليس الله تعالی يقول فسوف يحاسب حسابا يسيرا" آيا خدای ﷻ داسي نه دي ويلي چي ژر دی چي حساب

یسیر به ورسره وکړه سي، نو علیه السلام وویل "انما ذالک العرض" چي حساب یسیر خو عرض او وراندي کول د ګنهو دی. یعني لکه په یو بل صحیح حدیث کښې چي راغلي دي خدای ﷻ خپل بعض بندګان په کنف او حجاب کي د نورو خلګو څخه جلا پټ کړي او ورته وواییي "اتعرف ذنب کذا فیقول یارب نعم حتی یقرره بذنوبه" چي په ټولو ګنهو هغه بنده اقرار وکړي، نو خدای ﷻ ورته وواییي "سترتها علیک في الدنیا وانا اغفرها لک الیوم فیعطی کتاب حسناته" ما دا ګنهونه ستا پټ کړي یې تا په دنیا کي یعني څوک مي نه دی در خبر کړی او زه یې نن وتاته دربخښمه. نو عمل نامه د نېکی یې په لاس ورکړي، او علیه الصلوة والسلام وعائشي ؓ ته وویل "ولکن من نوقش في الحساب یهلک" او کد له چا سره مناقشه وسول په حساب کي یعني استیفاء د ټولو ګنهو صغائرو او کبائرو ورسره وسوه په حساب کي نو هغه سړی هلاک کېږي یعني جزاء به ووینې او کما قال رسول اللهﷺ في الحدیثین.

**درویش وایي:** د حدیثو په رڼا کي بعض مؤمنان په ورځ د قیامت بېله حسابه به جنت له ځي، چناچه یو حدیث د اسماء بنت یزید ؓ څخه روایت دی چي علیه السلام وویل چي خلګ به ټوله په یوه مځکه کي په ورځ د قیامت سره یو ځای کېږي، نو یو نعره کوونکی به نعره وکړي "این الذین تتجا في جنوبهم عن المضاجع فیقومون وهم قلیل فیدخلون الجنة بغیر حساب ثم یؤمر سائر الناس الی الحساب" رواه البیهقي.

**ترجمه:** چېري هغه کسان چي بغلونه یې پورته وه د پروتي له ځایو څخه یعني د شپې چي د شپې عبادت کوونکي کسان دي، نو بعض خلګ به ولاړ سي او هغه کسان به لږ وي، نو به جنت له داخل سي بې حسابه. وفي حدیث صحیح متفق علیه ابن عباس ؓ روایت کړی دی چي علیه السلام وویل "یدخل الجنة من امتي سبعون الفاً بغیر حساب هم الذین لایسترقون ولا یتطیرون وعلی ربهم یتوکلون" جنت له به داخلېږي زما له امت څخه او یا زره

(۷۰۰۰۰) کسه بیله حسابه، او دا به هغه کسان وي چي طلب د رقیه یعني دده دم یا تعویز نه کوي او نه په شي سره بد فالي کوي او خاص پر خدای ﷻ یې توکل وي. وعن ابي امامة ﷺ قال سمعت رسول الله ﷺ وعدني ربي ان یدخل الجنة سبعین الفاً من امتي لاحساب ولا عذاب مع کل الف سبعون الفاً الی اخیر الحدیث رواه احمد الترمذي وابن ماجه

**درویش وایي**: والله اعلم چي له کسانو څخه په مراد کوم کسان وي، او بعض مفسرین چي په توجیه عندة تعیین د دغو کسانو کړی دی هغه د هغه مفسر حسن ظن په دغو کسانو کي دی په هغو دوو اولو حدیثو کي خو علیه الصلوة والسلام تعیین د صفت د هغو وکړی یعني په اول حدیث کي په الفاظو "الذین تتجافی جنوبهم آه" او په دویم حدیث په دغو کلماتو "هم الذین لایسترقون الخ.

**پوه سه**: چي بخاري، مسلم، احمد او نورو محدثینورح روایت کړی دی له ابن عباس ﷺ څخه چي څه وخت چي دا آیت نازل سو "فان تبدوا مافي انفسکم او تخفوه یحاسبکم به الله" په اصحابو کي ډېر سخت اضطراب واقع سو، نو دویٰ وعلیه السلام ته ورغله او زنگنونه یعني پر هیئت د تشهد ورته کښېنستل، او وه یې ویل یا رسول الله ﷺ موږ خو مکلف سوو په هغو عملو چي موږ یې طاقت درلودی من الصلوة والصیام والجهاد والصدقة او س تاته دغه آیت نازل سو ولانطیقها ددویٰ قصد دا و چي د "ماتخفوه" د حساب طاقت نه لرو. ولي چي له ما تخفوا خان ساتنه ډېره گرانه ده نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي تاسي دا اراده لرئ چي تاسي ووایاست لکه اهل د دوو کتابو یعني تورات او انجیل والا چي من قبلکم وخپلو انبیاوٴ ته به یې ویله "سمعنا وعصینا بل قولوا سمعنا واطعنا غفرانک ربنا والیک المصیر" نو څرنگه چي اصحابو کرامو ﷺ دا کلمات پر ژبه جاري کړې او په بار بار یې ویلې، نو دا آیت خدای ﷻ وعم کرمه وفشت رحمته نازل کړی.

# آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مِن رَّبِّهِ

تصدیق لري رسول یعني محمد ﷺ په هغه کتاب سره چي ورته نازل کړه سوی دی له جانبه څخه د رب ﷻ دده.

**پوه سه**: چي مراد له ما انزل څخه ټوله آیات قرآنیه دي او مراد د ایمان څخه ایمان تفصیلي دی، دی په ټوله ما في القرآن سره من الشرائع والاحکام والقصص والمواعظ واحوال الرسل والکتب المنزلة علیهم وغیر ذالک من حیث انها منزلة تعالی، والایمان بحقیة احکام القرآن وصدق اخباره ونحو ذالک من فروع الایمان.

**پوه سه**: چي مراد له آمن الرسول څخه حدوث د ایمان نه دی یعني بعد ان لم یکن، ولي چي علیه السلام خو مؤمن و بالله و وحدانیة الله تعالی معصوما قبل النبوة من جمیع الذنوب والآثام کما هو معصوم منها بعد النبوة وان شئت تفصیل عصمت الانبیاء علیهم السلام قبل النبوة وبعدها فارجع الی رسالة العاصي کشف العظاء عن عمت الانبیاء وهي رسالة جامعة من کتب الاحادیث الشریفة وکتب العقائد لاهل السنت والجماعة وکتب فقهاء الائمة الاربعة وعلیها المضائت العلماء المعتبرین والصوفیة الکرام، لکن مراد دلته په آیت کي ایمان بالقرآن دی فانه قبل نزوله لم یکن له ﷺ الایمان به کما قال الله تعالی ماکنت تدري ما الکتاب والایمان ای الایمان بالقرآن وایضاً قال الله تعالی وماکنت ترجوا ان یلقی الیک الکتاب کذا في روح البیان وغیره من التفاسیر.

# وَالْمُؤْمِنُونَ ۚ كُلٌّ آمَنَ بِاللَّهِ

**پوه سه**: چي "مؤمنون" مبتداء ده ولفظ "کل" مبتداء ثان ده، والتنوین عوض د مضاف الیه څخه ای کل واحد منهم ولفظ "کل" خبر دی د "کل" او ټوله جمله خبر د مبتداء اول څخه ده یعني والمؤمنون، او رابط یې هغه ضمیر دی چي د تنوین پر ځای ودریدی.

**سوال**: ضمیر د "آمن" خو مفرد دی او مرجع یې ټوله مؤمنان دي؟



Scanned by CamScanner

**ځواب**: مقصود دلته ایمان دی د هر فرد د مؤمنانو بدون ملاحظة الاجتماع وبعبارة اخری مرجع د ضمیر د "آمن" خو لفظ د کل دی وهو مفرد لفظا وان کان یشتمل جمیع المؤمنین، والمعنی چي مؤمنانو هر یوه له دوئ ایمان راوړی دی پر خدای ﷻ یعني پر وحدانیت د خدای ﷻ ای بان لاشریک له في الالوهیة ای وجوب الوجود، لاکما قالت الثنویة بان للعالم الهین واجبي الوجود احدهما خالق الخیرات والاشیاء النافعة وسموه بیزدان والآخر خالق الشرور والاشیاء الضارة وسموه اهرمن او شیطان ویرد قولهم قوله تعالی "لوکان فیهما الهة الا الله لفسدتا" والتقریر لهذا الاستدلال في کتب الکلام کشرح العقائد للعلامة التفتازاني وحاشیة المولی الخیالي وفي شرح المقاصد ایضاً للتفتازاني والمواقف للقاضي عضد الملة والدین وشرح السید الجرجاني رح، ولا شریک في العبودیة کما قال به الوثنیة ای المشرکون.

## وَمَلٰٓئِكَتِهٖ

او پر ملکو یې ایمان راوړی دی بانهم عباد مکرمون لایعصون الله وهم بامره یعلمون. او ملکي نه ذکور دي مثلنا او نه ښځي دي، او مشرکانو چي به وویل "الملائکة بنات الله مردود بالقرآن والآحادیث" او داغه ملکي پر مختلفو کارونو بانډي د خدای ﷻ له خوا مسلطي دي چي یو د کارو یې توسط بین الله ورسوله باتیان الوحي.

**پوه سه**: چي ملائکه اعظم جند الله دي ولایعلم جنود ربک الاهو وما اوتینا من العلم الا اقل قلیل.

## وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ

او دوئ ایمان لري پر کتابو د خدای ﷻ چي ټوله من عند الله دي او حق دي چي تعداد یې یو سل او څلور (۱۰۴) ښوول سوی دی، او پر رسولانو د خدای ﷻ ایمان چي ټوله د خدای ﷻ له جانبه د عالم بشر د هدایت لپاره مبعوث وه چي تعداد یې د یو لک او څلورویشت زره په شاوخوا کي بیان سوی دی.

**یوه سه**: چي رسول دلته په معنا مصطلح سره نه دی چي صاحب د شریعت متجدد به وي چي تعداد یې ذرې سوه دیارلس (۳۱۳) دی بلکه په معنا د مطلق نبي دی.

**سوال**: ایمان بالیوم الآخرة نه سو ذکر؟

**ځواب**: ایمان د یوم الآخرة مندرج دی په ایمان کي بکتبه لان الیوم الآخرة بین في جمیع الکتب الالهیة.

**یوه سه**: چي دا مذکور بیان پر تقدیر ددې وچي وقف پر "من ربه" باندي وکړه سي، او "والمؤمنون" کلام مبتداء سي واختاره ابو السعود في تفسیره.

او دا هم احتمال سته چي "والمؤمنون" دي عطف پر "رسول" وي نو وقف به پر "والمؤمنون" کیږي او "کل" به کلام مبتداء وي، او هغه ضمیر چي د کل سره مقدر و ورسول او مؤمنون دواړو ته راجع وي فحینئذ ذکر الله سبحانه ایمان الرسول والمؤمنون اجمالاً ثم فصل بقوله تعالی کل واحد من الرسول والمؤمنون وابي آمن بالله آه. واختار هذا الوجه الکواشي رحمه الله في تفسیره حیث قال والاختیار الوقف علی المؤمنین لیکون المؤمنون داخلین فیما دخل فیه النبي ﷺ ای الایمان.

**پوښتنه**: پر تفسیر د کواشي رحمه الله خو علیه السلام او مؤمنون په مؤمن به سره شریکان دي، نو ولي علیه الصلوة والسلام په مؤمن به چي ایمان په ما انزل آه تر مؤمنون دمخه کړه سو؟

**ځواب**: له دوو سببو یو خو علیه الصلوة والسلام اصل دی په مذکور مؤمن به کي او مؤمنان یې تابع دي دده، او بل سبب دا دی چي ایمان د علیه السلام خو تفصیلي و او بمشاهدة الوحي و، او د مؤمنانو دا غسي نه و.

**درویش وایي**: چي یو بل سبب د تقدیم هم سته وهو ان یذهب عقل السامع الی کل واحد من العطفین والوقفین فتدبر.

لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّن رُّسُلِهِ

یعني رسول او مؤمنان وایي چي موږ فرق نه کوو په منځ کي د یوه د

رسولانو په د معنا چې پر بعض ایمان لرو او په بعض سره کفر او انکار کوو
لکه یهود او نصارئ چې یې کوي، ولې چې یهود په عیسی او محمد علیهما
السلام سره کفر کوي او له نبوت څخه یې انکار کوي، او نصارئ له نبوت
څخه د موسی او محمد علیهما السلام انکار کوي.

**پوښتنه**: د عربیت په کتابو کې وایي چې د بین لفظ ومتعدد ته مضاف کېږي
لیس الا، او احد لفظ خو مفرد دی؟

**ځواب**: لفظ د احد چې په سیاق کې د نفي راسي په معنا د جمیع دی ای الآحاد.

وَقَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا

او وایي مؤمنان مونږ واورېدی ستا قول په سماع قبلو سره یعني زمونږ
یقین دی په صحت ستا د قول، او مونږ فرمانبرداري کوو ستا د اوامرو او
منهیاتو، په حدیث شریف کې راغلي دي چې تر دې ځایه پورې چې آیت
شریف را ورسېدی جبرائیل ﷺ راغلی او علیه السلام ته یې وویل چې
خدای ﷻ ستا او د امت ثناء وایي یعني ستایش مو کوي، نو اوس سوال کوه
چې مسول به درکول کېږي، نو علیه الصلوة والسلام وویل دا وروسته سوال
یې وکړی چې خدای ﷻ یې په قرآن کې حکایت کوي

غُفْرَانَكَ رَبَّنَا

**پوه سه**: چې غفرانک منصوب دی په فعل مقدر سره ای فطلب غفرانک ار
تسئال غفرانک، ای لما لایخلوا عنه البشر من التقصیر في اداء حقوق
ربوبیتک ولو بترک الاولی او الاتیان بما لاینبغي فحینئذ یشمل غفرانک
لرسول الله ﷺ ایضاً.

وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ ﴿٢٨٥﴾

او تا ته ده رجوع پسله مرګه او بعث یوم القیامة لا الی غیرک کما یدل
علیه تقدیم الخبر فافهم.

لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا

او تکلیف نه کوي خدای ﷻ د یو نفس مګر په قدر د قدرت د هغه

**يوه سه**: چي په دې آيت سره خداى ﷻ هغه اضطراب د صحابه كرامو ﷺ رفعه كړى چي ودوئ ته د هغه آيت په نزول سره ور پيښ سوى و "ان تبدوا ما في انفسكم او تخفوه آه" كمامر سابقاً په دې ډول چي خداى ﷻ د "اوتخفوه" مراد په دې آيت كي ښكاره كړى چي مراد له "ماتخفوه" څخه نفس خواطر نفسيه نه دى چي له هغو څخه خان ساتنه ډېره گرانه ده بلكه مراد له ماتخفوه څخه عزم مصمم دى پر يوه گناه چي له هغو څخه خان ساتنه ډېره گرانه نه ده نو د عزم حساب كېږي وقد مر تفصيله نه له خواطرو، قال الله تعالى يريد الله بكم اليسر ولا يريد بكم العسر.

**فائده**: قدرت دوه قسمه دى، يو قدرت موهومه بولي چي معنا يې داده چي د بنده په خيال كي دا وي چي زه پر فلانتي كار قادر يم چي مبني ددې قدرت موهومه پر دې د چي د سرې اسباب او الات د هغه فعل پوره وي، او وبنده ته دلائل پر احكامو او اوامرو هم موجود وي خواه اعتقاديات وي او كه اعمال الجوارح وي، او د عقائدو په كتابو كي وايي چي دا قدرت موهومه تر فعل دمخه په سړي كي موجود دى، او مدار د تكليف الهي هم دغه قدرت متوهمه دى والا فلا يتصور الامتثال للاوامر الالهية والنواهي لان الامتثال فرع للعلم اى علم المكلف بكونه مكلفاً بالفعل او الترك فاذا لم يكن تلك القدرة المتوهمة مدار التكليف لم يكن للمكلف علم بانه مكلف قبل فعل، او بل قدرت حقيقي بولي يعني مستجمع د ټولو شرائطو د فعل دا قدرت مع الفعل دى.

**تفريع**: نو چونكه مدار د تكليف قدرت متوهمه دى او هغه قدرت په قوم نوح كي او په فرعون او په ابو جهل واشباههم كي موجود لسلامة اسباب الايمان فيهم من العقل والتميز ورؤية المعجزات من الانبياء عليهم السلام والدلائل العقلية، نو څكه كفار ټوله مكلف بالايمان دي ولهم عذاب اليم بسبب عدم ايمانهم، وان اخبر الله تعالى فيهم بقوله ختم الله على قلوبهم وعلى سمعهم وابصارهم واخبر عنهم بانهم لايؤمنون، نو كه مناط د تكليف كه قدرت حقيقي واى نو هغه په دوئ كه نه و لانها مع الفعل فلاوجه

لتعذیبهم بالنار لعدم قدرتهم علی الایمان فافهم فان هذا سانح عزیز وامر مکنوم وفیه دفع لکثیر من التوهمات التي یخطر في قلوب کثیر من العوام بل بعض الخواص ایضاً.

لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ ۗ

او هر نفس لـه اجر او ثواب د هغـه عمـل د خیـر چـي ده کـړی وي سواء بواسطة الجوارح او من افعال القلوب کالعقائد الحقة والملکات الفاضلة.

**پوه سه:** چي لام چونکه د نفع لپاره و، نو ځکه مونږ تفسیر د خیر په کارو وکړی او پر نفس د وزر او ګناه ده د مااکتسبت من اعمال الشر او کلمه د علی لپاره د ضرر ده حاصل د آیت دادی چي نفع د اعمال الخیر او ضرر د افعال الشر خاصةً ورده ته راجع ده لا الی غیره. قال الله تعالی "ولاتذر وازرة وزر اخری"

**فائده:** چونکې د اکتساب معنی داده چي په جدي توګه به سړی هغه عمل کوي، او چونکه اعمال د شر په اشتهاء د نفوسو دی فتکون فیها اجد فلهذا قال وعلیها ما اکتسبت بخلاف افعال الخیر فلهذا اورد فیها الفعل المجرد وفیه تنبیه علی ان افعال الخیر وان صدرت عن فاعلها بلاجد و اجتهاد فلها اجر و ثواب.

رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا إِن نَّسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا ۚ

اې زمونږ خدایه! مونږ مه نسي په ورځ د آخرت په هغې ګناه چي زمونږ څخه د هېرې په سبب صادره سوې وي، او یا د خطاء په سبب سره.

**فائده:** له دې آیت څخه دا معلومه سوه چي په خطاء او نسیان نه مؤاخذه جائز ده، ولي تحرز له اسبابو څخه د خطاء او نسیان في الجملة ممکن وي، ددې وجه داده که مؤاخذه په نسیان او خطاء کي جائز عقلاً نه وای، بیا نو ددې دعاء لره به څه فائده وای بلکي عدم المؤاخذة فضل، او احسان د خدای ﷻ ددې آیت مرحومه سره ولهذا قال النبي ﷺ "رفع عن امتي الخطاء والنسیان وما استکرهوا علیه" او ددې حدیث مبارک څخه دا معلومه سوه چي عدم المؤاخذة بالنسیان والخطاء من خواص هذه الامة المرحومة ده والامم



Scanned by CamScanner

السابقة کانوا یؤاخذون بهما.

**پوه سه**: چې دا آیت او وروستني آیتونه حکایت له بقیه سوالو څخه د مؤمنانو دي.

**پوه سه**: چې معنی د حدیث مذکوره داده چې زما له امت څخه عذاب د خطاء او نسیان پورته دی یعني په ورځ کې د قیامت. او دا معنا نه ده چې زما په امت کې خطاء او نسیان نه واقع کېږي، فان الخطاء والنسیان واقع في امته محسوس ظاهرا. او نه یې دا معنا ده چې احکام شرعیه په دار الدنیا چې دار العمل ده پر خطاء، او نسیان او اکراه نه مرتبېږي، ولې چې په دې دنیا کې تدارک حتی الامکان د خطاء او نسیان لازم دی.

**تفریع**: که لمونځ یا روژه په خطاء یا نسیان او یا په اکراه د سړي څخه پاته سي قضاء یې پر لازمه ده اجماعاً، او داغه رنګه خبري په لمانځه کې که څه هم په هېره سره وي لمونځ فاسدوي عند ابي حنیفة رحمه الله خلافا للشافعي رحمه الله.

**مسئله**: که چا د نسیاناً د احرام بالحج په ایامو کې جماع وکړې، حج یې فاسدېږي عند الجماهیر خلافاً للشافعي رحمه الله، او طلاق د مخطئ او مکره واقع کېږي عندنا خلافاً للشافعي رحمه الله.

**مسئله**: که روژیاتي په خطاء سره مثلا اوبه تېري کړې روژه یې فاسدېږي، مګر امساک د بقیة الیوم به کوي او بیا به یې قضا راوړي عندنا وعند مالک خلافا لاحمد والشافعي رح.

**مسئله**: که روژیاتي په هېره سره روژه ماته کړه روژه یې په نېز د امام مالک رحمه الله ماته ده او قضاء پر لازمه ده خلافاً للجمهور رح، والدلیل للجمهور قوله علیه الصلوة والسلام کما رواه ابو هریرة رضي الله عنه قال رسول الله ﷺ اذا نسي احدکم فاکل او شرب فلیتم صومه فانما اطعمه الله وسقاه، متفق علیه.

**مسئله**: که ذابح په وخت کې د ذبح بسم الله ناسیاً پرېښوله نو هغه ذبیح د امام مالک رحمه الله په نېز مرداره ده، او زموږ په نېز مرداره نه ده، للحدیث الوارد في هذا الباب علی خلاف القیاس: وسیٲتي ان شاء الله تعالی في محله.



Scanned by CamScanner

رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَآ إِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهُۥ عَلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِنَا ۚ

اې خدايه پر موږ مه اچوې درانه بارونه يعني التكاليف الشاقة من الاوامر والنواهي لکه چې تا اچولي هغه تکاليف شاقه پر هغو کسانو چې تر موږ دمخه امتونه وه، والمراد بهم اليهود، اول لمونځونه ددوئ پنځوس (۵۰) وه. دوهم زکوة يې ربع المال و، دريم: که به د چا جامې مرداري سوې وای به پر هيڅلو نه پاکېدله بلکې هغه نجس ځای د جامې به يې پرې کوی. څلورم: که به دوئ په شپه کې پټه گناه کړې وای هغه گناه به سهار پر دروازه ورته ليکل کېدله، پنځم: کله چې يهوديانو په زمانه کې د موسی عليه السلام عبادة العجل وکړی قيل لهم من جانب الله عزوجل فاقتلوا انفسکم، شپږم: لمونځ ددوئ بيله مسجده نه و روا په شرط د رسېدلو ومسجد ته، اووم: تحريم د بعض حلالو شيانو په سبب د گنهو ددوئ حرام وه.

**تنبيه**: په بعض کتابو کې وايي که به ددوئ بدن يا جامه مرداره سوه هغه به يې پرې کوله.

**درويش وايي**: چې پرې کول د مراد خای له بدنه د عقل او نقل څخه خلاف دی کما لايخفی.

رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهِۦ ۖ

اې خدايه ته پر موږ مه اچوې هغه بار چې په موږ کې طاقت د هغه نه وي

**پوه سه**: چې مراد له دې څخه بلايا د دنيا دي لکه مرض، فقر، موت الاولاد وغيرها من المصائب.

**فائده**: لفظ د نداء يعني "ربنا" په دې دوو اخيرو سوالو کې را وگرځاوه لاظهار مزيد الضراعة والاحتياج.

وَٱعْفُ عَنَّا وَٱغْفِرْ لَنَا وَٱرْحَمْنَآ ۚ أَنتَ مَوْلَىٰنَا فَٱنصُرْنَا عَلَى ٱلْقَوْمِ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿٢٨٦﴾

او موږ ته تجاوز وکړې له عذاب څخه پر گنهو زموږ، او زموږ گنهونه پټ کړې

په دنیا او اخرت کې، او پر موږ رحم وکړې په توفیق سره د حسناتو او په عصمت سره د منهیاتو څخه فانه لاحول ولاقوة الابک، او ته اې خدایه زموږ ناصر او حافظ او دوست یې، نو موږ ته بری او ظفر راکړې پر هر قوم د کافرانو لان من حق السید والمولی ان ینصر عبیده وموالیه علی اعدائه تعالی واعدائهم.

**یوه سه**: چې له "قوم کافرین" څخه تهوله انواعې د کفر مراد دي من الیهود والنصاری والمجوس والمشرکین والدهریین من الجن والانس حتی ملگری شیطان له موږ سره او نفس امارة بالسوء، لانه قادر علی النصر علی کل هؤلاء الاعداء قال آمین.

**درویش وایي**: چې ویستحب لقاري سورة البقرة الی تمامها ان یقول آمین، له ابو هریره ؓ څخه روایت دی علی ما في الصحیحین چې علیه السلام چې په هره جمله له دې دعاگانو څخه چې به یې وویل قال الله تعالی نعم وفي روایت ابن عباس ؓ قال الله تعالی کل ذالک قد فعلت وفي روایة عن ابن عباس ؓ قال الله تعالی بعد قوله غفرانک قد غفرت لکم، وبعد قوله او اخطائنا لا اخذکم وبعد قوله لا تحمل علینا اصراً لااحمل علیکم وبعد قوله ولا تحملنا ما لا طاقة لا احملکم وبعد قوله واعف عنا الی اخیره قد عفوت عنکم وغفرت لکم ورحمتکم ونصرتکم علی القوم الکافرین.

**فائده**: اما عدم المواخذة علی النسیان والخطاء فثابت في حق جمیع الامة اجماعاً وکذا عدم حمل الاصر، وتحمیل مالاطاقة لنا به لان الشرع واحد موّید فما سقط عن الاول سقط عن الاواخر ولا نسخ ولا تبدیل بعد النبي ﷺ خاتم النبیین. واما العفو والمغفرة لجمیع الذنوب والرحمة العامة والنصرة علی القوم الکافرین فالظاهر ان الاجابة في هذه الامور مختصة بالنبي ﷺ واصحابه الذین کانوا معه والا لزم مذهب المرجئة بل الذنوب کلها في مشیة الله تعالی ان شاء غفر وان شاء عذب، انتهی قول المظهري رحمه الله.

**درویش وایي**: چې امام مظهري نصرة علی القوم الکافرین مختص بللی دی په نبي ﷺ او په اصحابو ؓ پورې، نو پوښتنه داده چې ولې د احد په غزاء

کې شکست بېن د علیه السلام او د اصحابو کرامو ؓ په برخه سو چې په هغه
کې اویا کسه برجسته صحابه کرام ؓ په شهادت ورسېدله، او د علیه السلام
غاښ مبارک مات سو او سر مبارک یې ټپي سو؟ البته مظهري رحمه الله په روایي
چې ددې شکست وجه خدای ﷻ په قرآن پاک کې بیان کړې ده، او ټول
مفسرین رح د هغه توجیه داسې کوي چې د احد په غزا کې علیه السلام
پنځوس کسه په یوه دره کې په مشرۍ د عبدالله ؓ پر غاړه کښېنولي وه، او ورا
یې تاکیداً ورته ویلي وه چې که تاسې زموږ فتح پر کافرانو د مکې ولیدل
تاسې په مرکز یعنې دره نه ایله کوئ ځو چې ما نفر نه وي در استولی، او که
مو کفار ولیدل چې پر موږ غالب سوه او موږ یې یو له بله پرله پسې وژلو هم
به تاسې مرکز نه پرېږدئ ځو چې ما حال نه وي درکړی، نو چې جنګ شروع
سو کفارو شکست وخوړ او مخ یې د فرار پر خوا ونیو، حتی راوي چشم دید
واقعه په دې الفاظو بیان کړې ده "حتی رئیت نساء الکافرین الآتي کن مع
الکفار یشددن في الجبل یبدون عن خلاخیلهن، نو هغه پنځوسو (۵۰) کسانو
چې دا فتح د مسلمانانو ولیدله وخپل مشر عبدالله ته یې وویل یا قوم الغنیمة
یعنې موږ بالا دلته څه کوو مسلمانان غالبه سوه او کفارو شکست وکړی
درځي چې غنیمتونه جمع کړو، عبدالله ؓ چې هر څونده منع کړه خو دوئ ونه
منل حتی چې د عبدالله ؓ سره څورلس کسه پاته سوه، نورو ټولو په طلب د
غنیمت مرکز یې پرېښوی، نتیجه دا سوه چې دې یوې خلاف ورزۍ د امر
نبوي ﷺ خدای ﷻ زړونه د کفارو قوي کړه او بېرته یې پر جنګ مخ راوا ړوی او
خالد بن ولید سره د دوو سوو (۲۰۰) کسو پر هغه دره راغله او عبدالله ؓ او
دده څورلس ملګري یې په شهادت ورسول، او دغه خلاف ورزۍ د امر نبوي ﷺ
شکست د مسلمانانو په برخه کړی چې اویا کسه یې شهیدان ورکړه آه، حاصل
دا چې شکست د احد په سبب د شوم مخالفت د پهره دارانو د دوئ د امر
نبوي ﷺ پېښ سو، نو په اوسنی زمانو کې یعنې وروسته تر زماني د علیه
السلام او اصحاب کرامو ؓ چې په مسلمانانو کې چې په سلهاو بلکه په زرهاو

ګنهونه منځ ته راغلي، نو که دوئ د کفارو په جنګ کي مغلوبه سي دا مغلوبيت راجع ددوئ وګنهو ته دي نه و خصوصيت ته، نصر په زماني پوري د عليه الصلوة والسلام کما قال الامام المظهري رحمه الله او سره ددي چي خدای پاک په خطاب عام سره وايي "وانتم الاعلون ان کنتم مؤمنين" يعني تاسي به اې مؤمنانو پر کفارو غالبه ياست که چيري تاسي کامل مؤمنان ياست، نو اوس هم مؤمنان چي په کامل ايمان سره موصوف وي پر کفارو غالب دي ان شاء الله تعالى، لکن په وروستني زمانو کي کمال ايمان نسته الا نادراً.

**درویش وايي:** چي بيا هم چي په مؤمنانو کي کمال ايمان نسته که ناقص مسلمانان په کمال عزم او صرف د اعلاء کلمة الله لپاره جهاد په مخه واخلي خدای ﷻ نصرت ورکوي پر لويو ابرو قدرتونو باندي، چي نمونه د هغه د افغانستان بېچاره او مظلوم مسلمانان دي چي نه يې سلاح وه او نه يې کافي نفقه درلوده هغه وختت د ټولي نړۍ ابر قدرت يعني روسانو چي پر افغانستان حمله وکړه، او په کومک د حزب الخلق په افغانستان کي ټوله افغانسان يې په قبضه کي واخستی هغه ضعيفه مسلمانان د افغانستان چي په کمال شحامت او شجاعت مقابله د روسانو سره د جهاد في سبيل الله شروع کړه، او روسانو هم د هيڅ سلاح چي ددوئ په قدرت کي وه پر دوئ استعمال کړه تر کلاشنکوفو، تر بمبار کونکو طيارو او تر لويو توپو او زهري ګازو وغيرها لکن بيا هم ودغه ضعيفه مسلمانانو ته خدای ﷻ پر دغه لوی ابر قدرت نصرت ورکړي چي په ډېر خجالت يې روسان له وطن څخه وه ايستل بلکه خدای ﷻ جزاءً للروسية الملعونة هغه د اويا کالو مقبوضه رياستونه د روسانو له قبضې څخه ازاد کړه.

**درویش وايي:** چي په ټوله طويل بيان کي مطلب زما دادی چي امام مظهري رحمه الله په اخيري بيان کي خپل دليل پر اختصاص د نصر پر زماني د عليه الصلوة والسلام او د اصحابو رضي الله عنهم دا ويلي دي "ومن ثم نری في کثير من الاوقات عدم النصر على الکفار والخذلان الخ.



Scanned by CamScanner

**درویش وایي**: چي دا عدم نصر او خذلان په سبب د ګنهو د مسلمانانو دی لا بسبب اختصاص النصر بزمنه ﷺ واصحابه ؓ فافهم والعلم عند الله.

**درویش وایي**: چي حاسدان به شاید ووایي چي ستا د کم علمی سره تا څرنګه پر امام مظهري رحمه الله باندي تنقید وکړی؟

**ځواب**: د امام مظهري رحمه الله په کمال د علم او معرفت په ټولو علومو کي زه قائله یم او په ډېرو مسئلو کي زه دده په قول استدلال هم کوم. او په ډېرو ځایونو زه دده سپېڅلی عربي عبارت په پښتو ژباړه بیانوم، لکن د توجیه دروازه خلاصه ده. لکه څنګه چي امام مظهري رحمه الله پر ډېرو لویو مفسرانو تنقید کوي او په غشي لیس بشيئ یې ولي. د علمي او توجیهي لحاظه نه د توهین په خاطر او یا د حسد په لحاظ کذالک تنقید العاصي علی المظهري من هذا القبیل څبره تر څبري پوري یاد یږي

**حکایت او شکایت**: درویش وایي چي یو ستر عالم چي منصف و او حاسد نه و په هم دغه هفته زما کور ته راغلی چي زه ستا د حاسدانو په یوه مجلس کي حاضر سوم. او ستا نوم منځ ته راغلی حاسدانو ستا په ذم کي وویل چي عبیدالله صرف ناقل دی عالم نه دی، نو هغه عالم وویل چي ما اجمالاً ورته وویل چي کوم مصنف یا عالم ناقل نه دی. ددي اجمالي ځواب حاصل دادی که چېري دغه حاسدان صرف نقل مذموم بولي او انکار خندي کوي، نو دا ډېره د اسلامه مخالفه څبره ده. ولي چي جبرئیل آمین په امر د خدای ﷻ قرآن کریم له لوح محفوظ څخه نقل کړی بیا یې په بیت العزت کي وساته او بیا یې ایةً ایةً او سورةً سورةً په زمانه کي د نبوت د علیه السلام وده ته ورساوه. او د علیه الصلوة والسلام څخه نقل صحابه کرامو وکړی وکذا الوحي الغیر المتلو یعني الآحادیث الشریفة د علیه الصلوة والسلام څخه صحابه ؓ نقل کړي دي. او له صحابه کرامو ؓ څخه تابعینو رحمهم الله ثم وثم الی یومنا هذا نو دا نقل به هم مذموم وي معاذ الله. او بل دا چي دغه حاسدان دي کتابونه د آحادیثو شریفه وګوري چي ټوله بناء پر نقل دي. نو دا نقل به هم د ذم سبب وي حاشا



Scanned by CamScanner

لله، او دغه رنگه کتابونه د فقه شریفي تر شروحو او فتاواو پوري دي مطالعه کړي چي څرنگه نقل پر نقل چي صاحب المذهب ته رسېږي وهکذا کتب العقائد، والنحو، والصرف، والمعاني، واصول الفقه بل الکتب العقلية باسرها. نو دا ټوله نقلونه حاسد مذموم بولي العياذ بالله، او که دوئ نقل مطلق مذموم نه بولي بلکه نقل د درويش مذموم بولي نو

**درويش وايي:** چي د حسد ورغندي مو غاړي ته ولوېدي، دا يوه گناه کبيره ده، او بل چاته بيانول پر طور د غيبت بلکه گناه کبيره وهکذا، نو هغه عالم ته ما وويل چي د ناقل په لفظ زما ذم کول دا د انصاف د ارو حاسدانو ذم دی، او کثير حاسدان خو وايي چي عبيدالله سارق دی، لکن درويش خپل علمي کاروان پر مخ بيايي په توفيق د خدای ﷻ د خلگو وخبرو ته نه گوري، خدای ﷻ خپله عطيه له درويش څخه د چا په حسد واپس نه اخلي.

**درويش وايي:** چي دا يو څو خبري جمل معترضه وې اوس و اخيرو خبرو ته د تفسير غوږ سئ: روی في الحديث الصحيح ان النبي ﷺ جاءه ملک من السماء فقال ابشر بنورين اوتيتهما لم يؤتهما نبي قبلک فاتحة الکتاب وخواتيم سورة البقرة لن تقرء حرفاً منهما الا اعطيته، په دې معنا چي په سورت فاتحه کي له "اهدنا" څخه تر پايه پوري دعاگاني دي، او په آخير کي سورة البقرة د ربنا لاتؤاخذنا څخه تر پايه پوري.

**يوه سه:** چي دا مختص دی په نبينا ﷺ پوري. او هم دا سبب دی چي امت د عليه السلام په اجتماعي توگه پر ضلالت نه جمع کېږي الی يوم القيامة وقد جاء في الحديث الصحيح لا يجتمع امتي على الضلالة.

**يوه سه:** چي په يوه برخه کي د حديث طويل د معراج داسي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام ته ورکړه سوه دري شيان اعطي الصلوة الخمس ورکړه سوه پنځه لمونځونه و اعطي خواتيم سورة البقرة ورکړه سوه، اخيري آيتونه د سورة بقره يعني قوله تعالى "ربنا لاتؤخذنا ان نسينا تر پايه پوري. وغفران لايشرک بالله من امته شيئا المقحمات، او بخښنه سوه هغه چاته چي نه

شریک وي د خدای ﷻ سره هيڅ شی له امت څخه دده گناه کبائر، يعني خدای ﷻ وعده ورسره وکړه په مغفرت سره و امت ستا د کبائرو گنهو رواه مسلم.

**پوه سه:** چي چونکه په تعذيب د بعض عصات د امت محمديه کي احاديث صحيحه راغلي دي چي و حد ته د شهرت رسيږي فلا بد من التوفيق بينها وبين هذا الحديث من تاويل، نو ددې حديث تاويل دا دی چي د عليه السلام سره خدای ﷻ وعده وکړه چي زه به ستا امت ته بخښم کبيره گنهونه، اما بتوبة كما هو الظاهر والمعلوم او يا په رحمت عامه سره خپل لمن شاء وان لم يتب، وهذا هو المرجو بجاه النبي ﷺ او برحمة من الله بعد العقاب اليسير في النار. والحاصل انه لايخلد في النار من مات من امة محمد بلا توبة في النار بسبب ارتكاب الكبائر كما زعمه المعتزلة و الروافض خذلهم الله، وعن ابي مسعود الانصاري رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ هغه دوه آيتونه له اخيره څخه د سورة البقره څوک چي په شپه کي ووايي هغه لره کافي او بس دي رواه الآئمة الستة. او له نعمان بن بشير رضي الله عنه څخه روايت دی چي عليه الصلوة والسلام وويل چي خدای ﷻ يو کتاب ليکلی دی دوه زره کاله له مخه تر پيدا کولو د اسمانو او مځکو "انزل منه" او له هغه کتاب څخه يې نازل کړي دوه آيتونه، او په هغو سره يې سورة بقره ختم کړې ده. نو دا دوه آيته که په يو سرای کي درې شپې پرله پسې وويل سي، نو لبرې ده چي بيا دي شيطان وهغه سرای ته نژدې سي، رواه البغوي رحمه الله. او له ابي مسعود انصاري رضي الله عنه څخه روايت دی چي دغه دوه آيتونه د سورت بقره که څوک وروسته د ماخستن تر لمانځه ووايي کافي دي ده لره د قيام الليل يعني التهجد. اخرجه بن عدي في الكامل مرفوعا الى النبي ﷺ، او له ابي سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی قال قال رسول الله ﷺ هغه سورت چي په هغه کي بقره ذکر کېږي ترازو د قرآن دی، نو تاسي دغه سورت ذکر کوئ يعني زده کوئ ياست، ولي چي په زده کړه ددې سورت برکت دی او پريښوول يې حسرت دی يعني غم دی، او طاقت ددې سورت نه لري بطلة. چا ورته وويل چي بطله څوک دي قال السحرة.



Scanned by CamScanner



**درویش وایي**: چي ددې مبارک سورت په تفسیر ما شورع وکړه د سهار تر لمانځه وروسته عند طلوع الشمس من یوم الجمعة (۲۰) شعبان المعظم من شهور سنه ۱۴۲۶ هجریة قمریة. اللهم وفقني لتفسیرها بالخیر والعافیة والصحة والسلامة واجعله لوجهک الکریم ولهذا العبد ذکراً جمیلاً وذخرا لیوم القیامة.

**بوه سه**: چي سورة آل عمران په اتفاق د مفسرینو په وفد کي د نجران چي نصاری وه او د بحث لپاره مدیني منورې ته راغلي وه تر ځلور اتیا، او بعض راویان وایي چي تر اتیا پوري نازل سوي دي، لکن د مفسرینو رح تر منځ په قصه کي د وفد د نجران په زیادت او نقصان سره اختلاف سته کما یظهر لمن طالع التفاسیر المتعددة.

**القصة**: وفد د نجران ومدیني منورې ته شپیته (۶۰) سپاره وه په دې شپېتو کي څورلس اشراف وه. او په دې څورلس کسانو کي درې سوه اولو الامر کسان وه چي په هغو کي یو امیر د وفد و. او صاحب د مشورې د ګرد و چي لقب یې عاقب و او نوم یې عبدالمسیح، او دوهم وزیر او مشیر الدولة و چي نوم یې ابهم و، او دریم اسقف و یعني تر ټولو لوی ملا چي د ټولو مدرسو د نجران رئیس اعظم و چي نوم یې حارثه بن علقمه و، او دې عالم ته یوازي نصاری د نجران عزت نه ورکاوه بلکي ټولو نصاری وو او بادشاهانو عزت ورکاوه، ولي چي ددوئ په عقیده دا سړی مجتهد د دین د نصاری وو یې بالله، او دده پر نامه ډېري کلیساوې په روم کي ملوک د روم جوړي کړي وې، چي په اوسنی اصطلاح کي رومیان وداسي شخص ته پاپای روم وایي او چي د ټولو نصاری وو د کلیساوو لوی شخصیت وي هغه ته پوپ جون پول وایي، څه وخت چي دغه وفد د نجران څخه ووتی ابو حارثه پر غاتره سپور و او دده ورور

کرز بن علقمه یې پر بغل ورسره روان و، نو د ابو حارثه غاټري ټوک وواهه چې نژدې و چې ابو حارثه خندې ولوېږي، نو دده ورور کرز وويل: تعسا للابعد، هلاک دي وي پر لېرې سړي چې مراد د کرز علیه الصلوة والسلام و، ابو حارثه ورته وويل "بل تعست امک" کرز ورته وويل ولې دې دا خبره وکړه يا اخې؟ ابو حارثه ورته وويل والله انه یعني رسول الله ﷺ هغه نبي دی چې موږ یې انتظار درلودی یعني النبي العربي المبعوث في آخر الزمان، نو کرز ورته وويل چې ته يې پېژنې نو مانع د ایمان راوړلو دې پر هغه باندې څه دی، ابو حارثه ورته وویل چې بادشاهان د نصارى وو موږ ته ډېر اموال راکوي، او زما لوی احترام کوي، نو که زه پر هغه نبي ایمان راوړم دا ټول اموال زما له لاسه وځي او زما لوړ احترام له منځه ځي، نو دې خبرې د ابو حارثه د ورور کرز په زړه کې قرار ونیوی الی ان اسلم کرز وکان کرز یحدث الناس بتلک الواقعة، خیر وفد د نجران مدینې منورې ته ورسېدی او مسجد نبوي ته داخل سوه چې علیه الصلوة والسلام د مازديګر لمونځ کړی و، د دې وفد کسانو تر ټولو بهترينې چوخې او ښې ښې جامې اغوستې وې او ډېر د فخر پټوان يې پر اوږو وه حتى بعض صحابه کرامو چې دوی دا د فخر جامې ولیدلې حیران پاته سوه او داسې به يې ويل "مارئينا وفداً مثلهم" او د دوی د لمانځه وخت راغللی، او د نصارى وو دا دین او مذهب دی چې هر ځای چې وي د مشرق وخواته لمونځ کوي، نو دوی اراده وکړه په مسجد نبوي کې د مشرق وخواته لمونځ وکړي او قبله د مسجد نبوي خو جنوبي وه، نو علیه الصلوة والسلام وصحابه کرامو ته وویل چې پرې ایږدئ هري خواته چې لمونځ کوي، نو دوی په مسجد نبوي کې د مشرق وخواته لمونځ وکړی، وروسته تر لمانځه هغه درو مشرانو د وفد د علیه الصلوة والسلام سره په بحث شروع وکړه، ګاهي به يې ويل چې عیسی هو الله، ولې چې عيسی علیه السلام مړي ژوندي کړله، او مور زاده روند او د پیس مرض مریض به دده په دعاء جوړېدی او اخبار بالغیب به يې باذن الله کاوه، او بل د خټو څخه به يې مرغه جوړ کړی چې پر پوه به يې کړ

هغه به ژوندی سو او پرواز به یې وکړی، او دا کارونه خو توله د خدای ﷻ کارونه دي، او ګاهي به یې ویله چې عیسی د خدای ﷻ زوی دی، ولې که زوی د خدای ﷻ نه وای نو پلار یې څوک دی، او ګاهي به یې ویله چې عیسی دریم خدای دی، ولې چې خدای ﷻ فعلنا وقلنا لفظونه استعمالوي چې ضمائر د متکلم مع الغیر دي، نو دا معلومه سوه چې د خدای ﷻ سره نور خدایان سته چې هغه نو عیسی او مور د عیسی ده.

**درویش وایي**: چې دا قولونه ددوئ سره متناقض دي، ولې چې عیسی ابن الله سي نو مریم به د خدای ماینه سي العیاذ بالله، او که عیسی پخپله خدای سي او یا ثالث ثلاثه سي، نو علاقه د نبوت دده او د زوجیة د مور دده خو د خدای سره قطع کیږي، خو بیا هم دوئ جاهلان په دې تناقض د اقوالو او افعالو نه پوهېدل او عناداً یې دا خبري کولې، نو رسول الله ﷺ ودوئ ته ویل "اسلموا" دوئ ورته ویل اسلمنا قبلک یعنون بعیسی، نو علیه الصلوة والسلام ورته ویل کذبتم یمنعکم من الاسلام ادعائکم لله ولداً" دروا غ وایاست چې موږ مسلمانان یو. تاسې منع کوي له اسلام څخه چې تاسې خدای ﷻ لره ولد وایاست، نو تاسې څرنګه وایاست چې موږ خدای منو او سره ددې چې خدای ﷻ لم یلد ولم یولد دی، دوئ ورته ویل چې عیسی چې زوی د خدای نه وي نو پلار یې څوک دی؟ نو علیه السلام ورته ویل چې تاسې په دې نه پوهېږئ چې ولد به حتماً له پلار سره یو مشابهت لري، دوئ ورته ویل چې خبر یو، نو بیا علیه السلام ورته ویل چې تاسې نه یاست خبر چې خدای ﷻ حي لایموت دی او پر عیسی فناء او موت راځي، دوئ ورته ویل چې خبر یو، بیا علیه السلام ورته ویل چې آیا تاسې نه یاست خبر چې خدای ﷻ زموږ قادر دی پر هر شي او خالق دی د هر شي او حافظ دی د هر شي او رازق دی د هر شي، دوئ ورته ویل هو خبر یو، نو علیه السلام ورته ویل چې د عیسی ﷺ یو شی د دغو کارو څخه په وسه پوره دی؟ دوئ ورته ویل یا، بیا علیه الصلوة والسلام ورته ویل چې آیا تاسې نه یاست خبر چې

پر خدای ﷻ پټ نه دی شی في السموات والارض، دوئ ورته وویل چي خبر یو، بیا علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي آیا عیسی ؑ بېله تعلیمه د خدای ﷻ په ټوله مافي السموات والارض خبر دی، دوئ ورته وویل یا نه دی خبر، بیا علیه السلام ورته وویل چي تاسي ته یاست خبر چي زموږ خدای ﷻ وعیسی ته صورت ورکړی دی په رحم کي د مور کیف شاء، او زموږ خدای ﷻ نه خوړک کوي او نه څښل کوي، او حدث هم نه لري، دوئ ورته وویل هوا خبر یو، بیا علیه السلام ورته وویل آیا تاسي ته یاست خبر چي عیسی د مور په رحم کي و لکه نوري ښځي چي په رحم کي کوچنی ساتي، او بیا د عیسی مور لنګه سوه لګه نوري ښځي چي لنګېږي، بیا لکه نورو کوچنیانو ته غذاء ورکول کېده عیسی ته هم دغسي غذاء ورکول کېده او وروسته یې ډوډی وغیره خوړله او اوبه یې څښلې او لازم لـه خوارک او څښاک سره حدیث وربېښېدی، دوئ ورته وویل هو خبر یو، نو علیه السلام ورته وویل نو څرنګه به صحیح وي ستاسي وینا چي عیسی خدای دی او یا د خدای زوی دی نو دوئ پټه خوله سوله و ابو عن الاسلام، نو خدای پاک د سورة د آل عمران له اول څخه بیا تر تقریبا اتیا (۸۰) آیته پوري دا قصه را نقل کړه

الٓمٓ ۝١

**پوه سه:** چي ابو یوسف یعقوب ؒ "الٓمٓ" مقطوع وایي په سکون د میم لکه نـور مقطعـات قرآنیـة، او همزه د لفظ الله مفتوح وایي، للابتداء، او جمهور قراء په وصل سره وایي مفتوح المیم، او همزه د الله د لفظ ساقطوي په وصل کي، فقیل انما فتحت المیم لا لقاء حرکة الهمزة من لفظ الله علیها لیدل علی انها في حکم الثابت لانها اسقطت للتخفیف لا للدرج فا: المیم في حکم الوقف، او روح المعاني نقلاً عن البحر دا توجیه ضعیف ګڼلي ده، فراجع روح المعاني.

**درویش وایي:** چي زمخشري ؒ ددې توجیه تائید کړی دی حیث یقول

انما هي فتحة همزة الوصل من الله نقلت الى الميم، وانما جاز ذالک مع ان الاصل في همزة الوصل اسقاطها مع حركتها لان الميم كان حقها الوقف ومقتفى الوقف ابقاء همزه الوصل مع الحركة كما قرء به يعقوب رحمه الله لكنها اسقطت لتخفيف فابقيت حركتها لتدل على انها في حكم الثابت ونظراً الى ان الميم في حكم الوقف وليس بموقوف على قرائة الجمهور. وقال سيبويه رحمه الله فتح الميم لالتقاء الساكنين الميم ولام الله على قرائة الوصل بل ثلث سواكن يعني الياء في لفظ ميم والميم في لفظها واللام في اسم الجلالة وحركت بالفتح لانها اخف الحركات ولم تكسر مع ان الساكن اذا حرك حرك بالكسر بسبب الياء لئلا يلزم توالي الكسرات، وقيل غير ذالک والله اعلم.

## اللهُ لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ ﴿٢﴾

**پوه سه:** چي لفظ د الله مبتداء، ده، او لا اله الا هو يې خبر دی، يعني مستحق د عبادت الله دی لاغيره كما يفعل عبدة الاصنام والكواكب وغيرها. او الحي القيوم يې بل خبر دی چي معنا يې داده چي هغه باقي دی لاسبيل اليه للموت والفناء، او دائم دی او قائم دی بتدبير الخلق وحفظه.

**پوه سه:** چي په صحيح حديث كي راغلي دي چي رسول الله كريم ﷺ وويل چي اسم اعظم په دريو سورتو كي دی په سورت بقره كي "الله لا اله الا هو الحي القيوم، وفي آل عمران "الم الله لا اله الا هو الحي القيوم" وفي سورت "طه" وعنت الوجوه للحي القيوم نو چونكه په دې درو سورتو كي "الحي القيوم" فقط مكرر دی، له دې سببه بعض علماء وايي چي "الحي القيوم" اسم اعظم دی.

**درويش وايي:** چي تحقيق د اسم اعظم په دوهم جلد كي ددې تفسير مطالعه كړئ، وبالله التوفيق.

**درويش وايي:** چي په لمعات شرح مشكوة كي وايي چي اقوال د علماؤ په باره كي د اسم اعظم مختلف دي بعض وايي كه اسماء الهيه ټوله عظيمه دي لايجوز تفضيل بعضها على بعض، او ددې قول نسبت و امام اشعري او امام



Scanned by CamScanner

باقلانيؒ ته سوی دی، دویٔ وایي چي هغه اعظمیت چي په احادیث مبارکه وو کي راغلی دی هغه په معنا د کثرة الثواب د داعي دی، او بعض علماءؒ وایي چي اسم اعظم یوازي په علم کي د خدایﷻ دی ولم یطلع علیه احداً. او بعض علماوؒ په رڼا کي د احادیثو مبارکه وو بنولی دی.

**درویش وایي:** چي یو حدیث خو د مخه تاسو واورېدی، او په بل حدیث کي چي روایت یې ترمذي او احمدؒ کړی دی د سعد بن ابي وقاصؓ څخه وایي چي رسول اللهﷺ وویل چي دعاء د ذي النون یعني یونسؑ چي دی د ماهي په نس کي و دا وه "لا اله الا انت سبحانک اني کنت من الظالمین" او علیه الصلوة والسلام زیاته کړه "لم یدع بها رجل مسلم الا استجاب له" و په مستدرک للحاکمؒ کي راغلي دي چي اسم الله الاعظم چي په هغه څوک دعاء وکړي اجابت یې کېږي. او چي په هغه سره څوک سوال وکړي مسؤل یې ورکړه کېږي "لا اله الا انت سبحانک اني کنت من الظالمین" وفي حدیث آخر الذي رواه احمد واصحاب السنن الاربعة وابن حبان والحاکم رح عن یزیدؓ ان رسول اللهﷺ سمع رجلا یقول اللهم اني اسئلک باني اشهد ان لا اله الا انت. الاحد . الصمد الذي لم یلد ولم یولد ولم یکن له کفواً احد" فقال دعا الله باسمه الاعظم الذي اذا سئل به اعطي واذا دعی به اجاب، او حاکم ویلي دي چي دا حدیث صحیح دی پر شرط د شیخینو یعني البخاري ومسلم. او په بل حدیث کي چي روایت یې دغه مذکوره جماعت تولو کړی دی له انس بن مالکؓ څخه دی وایي چي زه په مسجد یعني المسجد النبويﷺ کي ناست وم، او یو سړي لمونځ وکړی او داسي یې وویل "اللهم اني اسئلک بان لک الحمد لا اله الا انت الحنان المنان بدیع السموات والارض یا ذا الجلال والاکرام یا حي یا قیوم. فقال النبيﷺ چي دې سړي خواست وکړ، په اسم اعظم سره د خدایﷻ هغه اسم اعظم چي په هغه سره څوک دعا وکړي، قبلېږي او چي په هغه سره سوال وکړي مسئول ورکول کېږي.

**درویش وایي:** چي امام مظهريؒ پخپل تفسیر کي یوه فائده ـ ښه ذکر

کړي ده. دی وايي چي کلمة التهليل په احاديثو کي د اسم اعظم په دې ډول راغلې ده " لا اله الا هو، يا "لا اله الا انت" او ده ويلي دي چي دغه دوه ډوله تهليل پورته دی تر "لا اله الا الله" ولي چي ضمير که د "هو" وي او که د "انت" وي وضع دی د ذات بحت الهي لپاره، نو په دغه دوه ډوله تهليل کي ذهن د ربونکي اولاً وذات خالص ته د خدای ﷻ نقل کېږي بدون ملاحظة اسم من الاسماء وصفة من الصفات وشان من شيونات اللهﷻ.

**پوښتنه**: لفظ "الله" خو هم اسم ذات خالص دی بدون ملاحظة الصفات والشيونات نو ضمائر تر لفظ د الله څه تفضيل لري؟

**ځواب**: هو لکن په لا اله الا الله کي خو اولاً ذهن و اسم ته نقل کېږي وروسته وذات بحت ته، بلکه په لفظ کي د الله ګاهي ذهن و معبود بالحق ته نقل کېږي، نو بيا خو لفظ الله اسم صفت ګرځي، لکن دا قدر د معبود بالحق او د نورو اسماء صفاتو لکه رحمن، غفار، کريم وغيره فرق دی چي معبود بالحق يستدعی الاتصاف بجميع صفات الکمال والتنزه عن جميع شوائب النقص والزوال فيکون لفظ الله بمعنی المعبود بالحق اشمل من سائر اسماء الصفات.

**سوال**: صوفيه کرام رح ولي ومريد ته اولاً لا اله الا الله وربښيي، او لا اله الا هو او يا لا اله الا انت نه وربښيي؟

**ځواب**: مبتدي مريد خو و ملاحظه ته د ذات بحت لار نه لري بلکه په توسط د يو اسم او يا يو صفت به لار پيدا کوي، نو حاصل دا چي لا اله الا انت يا لا اله الا هو د منتهی ذکر دی.

**پوښتنه**: ستا له جواب څخه خو دا معلومېږي چي مبتدي ته د لا اله الا انت يا لا اله الاهو په ذکر کي کومه خاص فائده نه ده، او سره ددې چي په احاديثو شريفه مذکوره وو کي د منتهی او مبتدي فرق نشته لان خطابات الشرع الانور عامة لجميع المسلمين والمسلمات؟

**ځواب**: هو خطابات د شرع شريفي خو عام دي او زموږ د جواب خو دا معنا نه ده چي مبتدي په نوموړي تهليل کي هيڅ برخه نه لري، بلکه معنا يې



Scanned by CamScanner

داده چي په تفاوت د استعداد او د اخلاص او د حضور قلبي مبتدي او منتهی فرق عمیق لري، پښتانه یو متل وایي دریاب که لوی دی کاچوغنه دي خپله ده، کما قال الشاعر.

بقدر الکد تکتب المعالي ومن طلب العلی سهر اللیالي
تر وم العز ثم تنام لیلا یغوص البحر من طلب اللالي

او شاعر فارسي وایي

نقصان زقابلست وگرنه علی الدوام فیض سعادتش بهمه کس برابراست

یو پښتون شاعر وایي

دا باران چي په همه خلګو اوري مشرف کړی ذات د کمیا ولي

درویش وایي:

الهي تبت عما کان مني فکفر سیئا تي وارض عني
دا تفسیر زما توښه د آخرت کي هم سبب د عاصي د مغفرت کي
محبان اورندتصویر جا نان در بغل من نیزحاضرمیشوم تفسیر قرآن دربغل

نَزَّلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَاَنْزَلَ التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ﴿۳﴾ مِنْ قَبْلُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَاَنْزَلَ الْفُرْقَانَ

**پوهه سه:** چي نزل آه خبر د مبتداء محذوف دی ای هو نزل الآیة.

او خدای ﷻ نازل کړی دی پر تا باندي کتاب یعني القرآن عبر عن القرآن باسم الجنس یعني الکتاب اشارةً الی تفوقه علی سائر الکتب الالهیه کما یقال زید هو الرجل متلبسا ذالک الکتاب بالحق ای الصدق في احکامه حالکونه مصدقا للکتب التي بین یدیه ای قبله من التوراة والانجیل حیث نزل علی من وصفه في الکتابین المذکورین، او یا دغه کتاب قرآن تصدیق کونکی دی د ټولو کتب سابقه وو، ولي چي کتب الهیه په اصولو کي د دین سره موافق دي لکه توحید او نبوت او ایمان بیوم القیامة والجنة والنار وغیرها من المعتقدات التبه په بعض فروع کي به سره مخالف وي، او

خدای ﷻ نازل کړی دی تورات یعنې پر موسی ﷺ او انجیل یعنې پر عیسی ﷺ د مخه تر نزول د قرآن مجید ، چې هغه تورات او انجیل هدایت دی د خلګو لپاره ، ولي چې کتب الهیه ټولو خلګو ته دعوت ورکوي د توحید او د ایمان پر ټولو انبیا ع او پر ټولو کتب الهیه وو ، او پر امتثال د اوامرو د خدای ﷻ او په اجتناب د منهیاتو وغیر ذالک.

**پوښتنه:** خدای ﷻ د قرآن په باره کې "نزل" چې ماضي ده له باب د تفعیل راوړه ، او د تورات او انجیل په باره کې انزل وویل چې ماضي ده له باب د افعال سبب یې څه دی؟

**ځواب:** د صرفو په کتابو کې وایي چې تفعیل لپاره د تکثیر او تدریج دی ، او افعال لپاره د یو وار دی والقرآن نزل علی محمد ﷺ نجما نجما وسورة سورة وآیة آیة في مدة نبوته ﷺ یعنې په دروېشت (۲۳) کاله ، او تورات و انجیل دفعةً واحدةً نازل سوي دي.

**سوال:** خدای ﷻ فیما سیأتي داسې وویلي دي "وانزل الفرقان" یعنې په ماضی د باب افعال؟

**ځواب:** قرآن مبارک د لوح محفوظ ځخه و سماء الدنیا ته جملةً واحدةً راغلی دی په لیلة القدر کې د میاشتې د روژې ، ففي القرآن جهتا الانزال والتنزیل معاً بخلاف الکتابین الاولین لان فیهما جهة الانزال فقط.

**پوه سه:** چې بعض مفسران رح وایي چې له فرقان ځخه ټوله کتب سماویه مراد دي لانها تفرق بین المحق والباطل. او بعض وایي چې مراد ځنې قرآن کریم دی وهو الارجح لشیوع هذا الاسم في القرآن العزیز.

**سوال:** قرآن کریم خو دمخه ذکر سو في قوله تعالی "نزل علیک الکتاب" نو په بیا ذکر کې څه حکمت دی؟

**ځواب:** حکمت یې تعظیم د شان د قرآن دی او اظهار د فضلیت د قرآن دی.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ اللَّهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ ذُو انتِقَامٍ ۝

په تحقیق هغه کسان چې کفر کوي یعنې انکار کوي له یو شي ځخه د

آیاتو د خدای سواءً کانت من القرآن او غیره من الکتب المنزلة علی سائر الانبیاء ع، او روح البیان یې په قرینه د مقام تفسیر په آیات قرآنیه او په معجزاتو د علیه السلام کړی دی وعلی التقدیرین دوئ لره عذاب شدید سته یعنې په ورځ د قیامت به په دوزخ کې وي او خدای ﷻ غالب دی څوک یې نه سي منع کولای له عذاب څخه د یو چا که څه هم فرعون او نمرود وي، او خدای ﷻ مالک د انتقام دی.

**بوه سه**: چې انتقام د "نقمة" څخه ماخوذ دی چې معنا یې عقوبة المجرم ده.

**إِنَّ اللَّهَ لَا يَخْفَىٰ عَلَيْهِ شَيْءٌ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ ۝٥**

په تحقیق پر خدای ﷻ نه پټېږي یو شی په مځکه کې او په اسمانو کې

**بوه سه**: چې له عالم څخه خدای ﷻ تعبیر په مځکه او اسمانو سره وکړی، او سره ددې چې عالم نور جزئیات هم لري، له دې سببه چې حواس انسانیه پر دغو دوو منحصر دي، او مځکه یې تر اسمانو دمخه کړه، ولې چې مقصود دلته دادی چې له خدای ﷻ څخه هیڅ عمل د بندګانو پټ نه دی. نو خدای ﷻ به ودوئ ته جزاء ورکوي په ورځ کې د قیامت فهو کالدلیل علی قوله تعالی ان الذین کفروا آه.

**هُوَ الَّذِي يُصَوِّرُكُمْ فِي الْأَرْحَامِ كَيْفَ يَشَاءُ ۚ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ۝٦**

او خدای ﷻ هغه ذات مقتدر دی چې تاسې ته صورتونه درکوي یعنې په ارحامو کې د مندو ستاسې څرنګه چې یې اراده وي، یعنې نر وي او که ښځه. تور وي او که سپین، تام الاعضاء وي او که ناقص الاعضاء وي، جګ وي که ګردی او که میانه، ښائسته وي که بدرنګه.

**فائده**: په دې آیت کې رد دی پر نصاری وو چې وایي عیسی خدای دی او یا د خدای زوی دی لان من صور في الرحم وعیسی منهم یمتنع انیکون الها او ابناً له تعالی لان من في صور في الرحم بعرضة من الزوال والفناء والله تعالی او ولده فرضاً منزه عن ذالک کما لایخفی، او نسته معبود بالحق بیله خدایه او خدای ﷻ غالب او د حکمت څښتن دی، او په بخاري او مسلم کې په



Scanned by CamScanner

روایت د ابن مسعود ﷺ راغلي دي، دی وایي چې حدثنا رسول الله ﷺ وهو الصادق المصدوق ان خلق احدکم یجمع في بطن امه اربعین یوماً نطفة ثم تکون علقة مثل ذالک ثم مضغة مثل ذالک ثم یبعث الله الملک الیه باربع کلمات فیکتب رزقه وعمله واجله او شقي او سعید وان احدکم یعمل بعمل اهل الجنة حتی مایکون بینه وبینها الا ذراع فیسبق علیه الکتاب فیعمل بعمل اهل النار فیدخلها وان احدکم لیعمل بعمل اهل النار حتی مایکون بینه وبینها الا ذراع فیسبق علیه الکتاب فیعمل بعمل اهل الجنة فیدخلها. قاضي بیضاوي ﷫ وایي چې مراد له دي کتاب څخه اظهار دی د دغو شیانو ملکي ته والا فقضاء الله سابق علی ذالک

**درویش وایي**: چې بعض ملایان چې د دغه حدیث ترجمه وعوامو ته وکړي، او بیان د مراد د حدیث نبوي مذکور وعوامو ته بالتفصیل بیان نه کړي، نو بیر عوام دغه ملایانو د جبریه ومذهب ته دعوت کړه، ولې چې جبریه وایي چې ټوله کارونه چې موږ کوو که د خیر کارونه او که د شر هغه خدای ﷻ په موږ جبراً کوي ولا اختیار لنا في فعل من الافعال، وعلی هذا المذهب الخبیث د انبیاء علیهم السلام را استول د خلکو د هدایت لپاره او نازلول د کتاب، لپاره د خیر او شر ښولو لپاره ټول بې فائدې ګرځي نعوذ بالله من ذالک. نو ملا صاحب چې ددې حدیث د ترجمې تفصیل وعوامو ته ونه کړي، نو عوام وایي که زه زنا وکړم نو ولې خدای پاک ما دوزخ ته اچوي زنا خو خدای په ما وکړه او دغه رنګه نور معاصي. او دا بعینه مذهب الجبریة الملعونة کما لایخفی.

**درویش وایي**: چې تفصیل ددې حدیث چې د جبر خلاص وي دا دی چې خدای ﷻ په علم ازلي سره په دې خبر د چې فرعون، نمرود، ابو جهل مثلاً بخپل اختیار وقت التکلیف من الله په کفر مختاره کوي او تر اخیره عمره په هغه کفر پاته وي څو چې پر کفر به یې موت وي فذالک هو الشقي، او په دې هم خدای ﷻ په علم ازلي خبر د چې ابوبکر، عمر، عثمان﷡ مثلاً په تیر د

ارسال الرسول محمد ﷺ به ایمان پخپل اختیار راوړي بدون الجبر من الله. او پر هغه ایمان به پاته وي تر مرګه پورې فذالک هو السعید، ثم امر الله تعالی الموکل بالرحم ان یکتب الاول شقیاً والثاني سعیداً. ثم ان الله عزوجل علم بالعلم الازلي ان فلاناً یکون عند التکلیف یختار باختیاره الاسلام ویکون علیه طول عمره حتی اذا قرب اجله جداً یختار باختیاره الکفر بسبب من الاسباب ویموت علی ذالک الکفر و.ن فلاناً یکون کافراً في ابتداء عمره باختیاره ثم اذا قرب عمره الی الآخیر و.رب اجله جداً یختار الاسلام باختیاره فیموت مسلماً. نو دا دوه کسه یعني م.ختار الاسلام في اخیر عمره ومختار الکفر عند اجله یعلمه الله الملک فیکتب کذالک، وهذا معنی قوله علیه السلام فیسبق علیه الکتاب فیدخل الجنة او النار، یعني هغه سابق کفر او اسلام چې ملکي لیکلی وو چې هغه کفر او اسلام هم د خپل اختیار کړی و د، ته راوړاندي سو. وهذا معنی قوله علیه السلام في حدیث آخر المتفق علیه چې څه وخت چې علیه السلام د سعید او د شقي د نوشتې خبره وکړه حین کون الولد في بطن امه. او اصحابو پوښتنه خندي وکړه "افلا نتکل علی الکتاب وندع العمل، قال لا فکل میسر لماخلق له" الحدیث.

**درویش وایي:** چې دا معنا ددې قول د اهل السنة والجماعت ان العبد کاسب والخالق هو الله تعالی" یعني بنده به صرف اراده د کار د خیر یا شر کوي. او داغه هم دده قدرت چې خدای ﷻ بنده ته ورکړی فائده ده لکن خالق د اسبابو او د آلاتو او شرائطو د کار د خیر او شر هو الله تعالی، وهذا معنی قوله علیه السلام فکل میسر لما خلق له.

**پوه سه** چې د معاصیو مثال په نېز د جبریه وو دادی لکه یو سړی چې د بل سړي لاسونه او پښې ورو تړي او مخ او ټول بدن یې په نجاست او مرداری ور ککړ کړي، نو دا سړی خو د ملامتیا او د عذاب وړ نه دی، ولي مجبور وو. او د طاعات مثال په نېز د جبریه وو دادی چې یو سړی وي کالي او بدن یې ډېر خیرن وي نو بل سړی په زوره دده بدن او کالي پاک ور پرېمینځي، نو



Scanned by CamScanner

دا سړی قابل د مدح او د انعام او د ثواب مستحق نه دی ولي خو دده سره جبراً بل چا دا کار وکړی.

**درویش وايي:** چي مفاسد د مذهب د جبریه وو ببخي ډیر دي. والمذکور النموذج من مفاسد هذا المذهب.

**فائده:** د جبریه مذهب خو دا و چي درویش یې بیان وکړی، او معتزله وایي چي هر بنده د هر کار د خیر او شر خالق پخپله دی. ویشهد بابطال مذهبهم آیات القرآن في مواضع متعددة، وایضا یشهد بابطال مذهبهم الآحادیث النبویة التي تبلغ حد الشهرة وتفصیل مذهبهم ورده في کتب عقائد اهل السنة والجماعة کشرح العقائد وشرح المقاصد للعلامة التفتازاني رحمه الله وشرح المواقف للسید الجرجاني رحمه الله وغیرها، او مذهب د اهل السنة والجماعت متوسط بین الجبر والخالقیة دی، یعني بنده صرف کاسب دی په دي معنا چي صرف دی اراده او قصد خپل وکار ته خیر یا شر مصرفوي او خالق د افعالو د بنده که خیر وي او که شر وي فقط خدای ﷻ دی. ولهذا ورد خالق کل شیئ وفعل العبد ایضا شیئ.

**درویش وايي:** دا و مفصل بیان د حدیث مذکور والله الموفق. نو ملایان وعوامو ته دغه حدیث نبوي سره ددغه تفصیله باید وکړي لیخرجونهم من ظلمات الجبر.

## هُوَ الَّذِیْٓ اَنْزَلَ عَلَیْكَ الْكِتٰبَ مِنْهُ اٰیٰتٌ مُّحْكَمٰتٌ هُنَّ اُمُّ الْكِتٰبِ

او خدای ﷻ هغه ذات دی چي نازل کړی یې دی پر تا کتاب یعني قرآن الکریم چي بعض د هغه کتاب آیتونه دي محکم چي هغه اصل د قرآن دي چي د هغو عبارات په داسي شان دي چي پر سامع نه مشتبه کېږي، لکن په شرط ددې چي سامع په لغت عربي خبر وي، یعني بمفرداتها ومرکباتها الناقصة کالمرکب الاضافي والمرکب التوصیفي ومرکباتها التامة کالجمل الخبریة والجمل الانشائیة من الامر والنواهي وغیر ذالک من مفهومات النصوص ومنطوقاتها ومقتضیاتها.

**پوه سه:** چي خدای ﷻ قرآن مبارک ټوله محکم بللی دی في قوله تعالی "الر کتاب احکمت آیاته" او ددې معنا داده چي قرآن مبارک ټوله حق دی لاریب فیه. او صحیح دی لاتناقض فیه، او محفوظ دی د خلل او نسخ څخه. او په بل ځای کي ټوله تشابه بللی دی یعني في قوله تعالی "کتابا متشابها" نو معنی یې داده چي د قرآن بعض آیتونه د نورو سره مشابه دي په صحت کي د معنا او په حقیقت د مدلول، او په بعضو آیتو کي یې قرآن دوه قسمه کړی دی. محکم او متشابه لکه په دې آیت کي.

**پوښتنه:** خدای ﷻ ټوله قرآن ولي محکم نه ګرځاوه؟

**ځواب:** چي په متشابه کي امتحان دی په منځ کي د ثابتین علی الحق او متلزیزینو فیه کما سیاتي.

**پوښتنه:** محکمات آیتونه خو ډېر دي، نو څه حکمت الهي دی چي ام الکتاب یې په صیغه د جمع نه وو ایه؟

**ځواب:** محکمات ټوله پر منزله د ام واحد دي لان الاحکام المفروضة تؤخذ من جمیعها لا من کل واحدة منها، ولله در صاحب روح البیان حیث قال في تفسیر ام الکتاب ای اصل فیه وعمدة یرد الیها غیرها بالتاویل، ثم قال فالمراد بالکتاب کله والاضافة بمعنی في، واما المظهري رحمه الله فجعل ام الکتاب ای لفظ اللام والاضافة الی الکتاب ببیان المعاني المتعددة بالنسبة الی المتعلمین کالمتشابهات في صعوبة فهم المراد من اللام والاضافة الی الکتاب فارجع الی تفسیره.

**درویش وایي:** چي امام مظهري رحمه الله خبرنه د محکماتو قرآنیه و په دې ډول کړې ده چي د محکم مراد به یا بلا تامل وسړي ته یعني متعلم ته معلومېږي نحو قوله تعالی قل تعالوا اتل ما حرم ربکم علیکم وقوله تعالی وقضی ربک ان لاتعبدوا الا ایاه وقوله تعالی لیس کمثله شیئ، وامثال ذالک، او یا به یې مراد پسله تامل او د طلب معلومېږي من غیر حاجة الی بیان من الشارع کقوله تعالی السارق والسارقة فاقطعوا ایدیهما، نو سړی



Scanned by CamScanner

چې په دې آیت کې لږ فکر وکړي نو کیسه بر ته به یې شامل بولي بطریق الاولی، لان السرقة اخذ مال مملوک لغیره خفیةً، او کیسه بر خو د ویښ او بیداره سړي څخه چې په صدد کې د حفظ د مال هم وي په یوه نوع د غفلت خندي وړي، نو د کیسه لاس پرې کېږي. او د کفن کښ لاس نه پرې کېږي، ولې چې د معنا د سرقه پکښې ناقصه ده، ولې چې کفن د میت مملوک د چا نه دی له دې جهته چې مړی په اعتبار د احکامو د دنیا لکه جماد دی لایصلح للمالکیة او حق د ورثه وو په مال پورې دده وروسته تر تکفین تعلق پیدا کوي، نو کفن خو دمخه ورکړه سوی دی، نو ددوئ ملک هم نه دی، او بعض فقهاء[رح] چې وایي علت د نه پرې کېدو د لاس د کفن کښ دادی چې کفن د مړي مال محفوظه نه دی، ولې چې مړی خو حافظ نه سي کېدای، نو څکه دوئ وایي چې که قبر په بیت مقفل کې و او کفن کښ کفن څندي یو وړي، لاس یې پرې کېږي لوجود حفظ الکفن بالبیت المقفل.

**درویش وایي:** چې صحیح دلیل د مظهري[رحمه الله] دی او د بعضو فقهاو[رح] خبره صحیح نه ده، او داغه رنګه "وارجلکم الی الکعبین" في آیة الوضوء وروسته تر فکر او غور دا معلومېږي چې عطف پر مغسول دی یعني وجوهکم یا ایدیکم، اما علی تقدیر نصب ارجلکم فظاهر. واما علی تقدیر الجر فهو ایضا معطوف علی المغسول والجر للجوار ولیس بمعطوف علی رؤسکم حتی یکون وضیفة الرجلین المسح في الوضوء کما یقوله الشیعة. والدلیل علی ذالک ضرب الغایة یعني الی الکعبین لان المسح لیس له غایة انما الغایة للمغسول کما في قوله تعالی "وایدیکم الی المرفقین" وکذا قوله تعالی "ثلثة قروء" ولې چې لفظ د ثلثة اسم عدد لایقبل الزیادة ولا النقصان فبعد التامل القلیل یظهر ان القرء وان کان لفظا مشترکا بین الحیض والطهر، لکن مراد په آیت مذکوره کې حیض دی نه طهر لکه امام شافعي[رحمه الله] چې وایي، ولې چې طلاق مشروع او سني خو هغه دی چې په طهر کې وي، نو که سړی ماینې ته طلاق په طهر کې ورکړي چې بعض ایام یې تېري سوي وي، نو که دغه طهر

په عده کې حساب کړې نو خو درې طهره پوره نه سوه، بلکه اول طهر خو ناقص دی. او که هغه طهر په عده کې نه سي حساب یلزم الزیادة علی الثلثة کما لایخفی، او چې عده حیض سي لایلزم شیئ من الزیادة والنقصان لان بعد الطهر الذي وقع فیه الطلاق یعتد بثلث حیض کوامل فافهم. وکذا قوله تعالی قواریر من فضة یظهر بعد التامل ان اواني الجنة في الصفاء کالقارورة وفي البیاض کالفضة، مظهري مع زیادة کثیرة من المعاصي.

**درویش وایي**: چې ترجمه ددې آیت او تفصیل چې روح المعاني بیان کړې ده د مطالعه کونکو د تفسیر ایوبي ډېر لوړ دی. لهذا هغه تفسیر ما په دې عام الفهم تفسیر کې ونشر ته ونه سپاره، او د روح البیان تفسیر په مختصر توګه وتفسیر مذکور ته د مظهري راجع کېږي.

## وَأُخَرُ مُتَشَٰبِهَٰتٌ

**پوه سه**: چې اخر جمع د اخری ده، او معدول دی د اخر من څخه او یا د الاخر څخه، نو ځکه غیر منصرف دی للعدل والوصف کذا في البیضاوي والمظهري.

**پوه سه**: چې متشابه په معنا عامه سره هغه آیت یا کلمې ته د قرآن مبارک وایي چې عارف باللغة العربیة یې په معنا نه پوهېږي نه په اول وهلت سره او نه بعد التامل او نه بعد الطلب حتی چې بیان یې شارع په عبارت محکمه سره ونه کړی، نو هلته به یې مراد ښکاره کېږي چې دې ته په اصطلاح د اصولینو مجمل وایي، کالصلوة والزکوة والحج والعمرة وآیة الربوا او نحو ذالک. او که بیان د شارع له خوا نه سو پیدا، دا نو متشابه اصطلاحي بولي او هم دغه معنا دلته مراد ده. کالمقطات القرآنیة ویدالله فوق ایدیهم، وقوله تعالی الرحمن علی العرش استوی.

**فائده**: متشابهات اصطلاحیه په اعمالو پوري د بندګانو اړه نه لري والا یلزم التکلیف بما لایطاق.

**پوښتنه**: څه حکمت الهي دی چې مجملات یې مفصل را نه وړه؟



Scanned by CamScanner

**خواب:** حکمت الهي دادی چي د علماوُ د امت مرحومه فضل مسلمانانو ته ښيي، په دې معنا چي د علماوُ په زړو کي به حرص پيدا کړي چي دویٔ به کوشش وکړي چي هغه علوم اول ځان ته حاصل کړي چي فهم د مجملاتو پر هغو موقوفه وي کعلم اللغة والنحو والصرف وعلم الآحاديث النبويةﷺ او نور، نو دویٔ به خبر سي په معنا د مجملاتود قرآن کريم او يا په مجملاتو د احاديث نبويه وو. او دویٔ به قادر سي پر توفيق بين المجملات والمحكمات، نو دویٔ ته به خدای پاک درجات العلی ورکړي، ولهذا قال رسول اللهﷺ علماء امتي كانبياء بني اسرائيل" په دغه حديث کي د مساجدو امامان يا خطيبان د جوامعو مراد نه دي کما يزعمونه، بلکه مراد مجتهدين د امت مرحومه دي كالامام الاعظم سراج الامة ابي حنيفه والامام الهمام مالک بن انس والامام القمقام محمد بن ادريس الشافعي والامام المعظم احمد بن حنبل رحمهم الله تعالی ورضی عنهم، وهكذا ائمة الفتاوی في كل مذهب و اصحاب الترجيح وغيرهم كثرهم الله تعالی وجمع بيني وبينهم في دار كرامته تعالی يوم القيامة.

**بيت**

چار چيز اورده ام شاها که در گنج تو نيست    عاجزی ومکسبني فقر گناه آورده ام

**بيت**

ابوبي لمن کره تينګه د اعتبار د امت ته    که غواړي چي ما خدای ورولي جنت ته

**فَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَاءَ الْفِتْنَةِ**

الفاء لتفصيل حال السامعين للقرآن العظيم، يعني هغه کسان چي په زړو کي يې ميل وي له حق څخه وخواهشاتو باطله وو ته، نو هغه پلټنه کوي او بحث کوي په ظاهر د متشابهاتو قرآنيه وو، او اعراض کوي له محکماتو څخه د قرآن، او يا تاويل بالباطل کوي لپاره د فتنې، او په شک کي اچول د مسلمانانو په دين کي، يعني مسلمانانو ته وايي چي فلانی آيت متشابه نقيض دی د فلاني محکم آيت.

**پوه سه**: چي شان نزول ددې آيت بعض روات وايي چي وفد د نجران وو چي د عليه الصلوة والسلام سره يې په باره کي د عيسیٰ خبري او بحث کاوه، نو دوئ وويل چي ته نه وايي چي عيسی کلمة الله و او روح و د خدای له خوا څخه؟ عليه السلام ورته وويل چي هو! زه وايم قالوا حسبنا يعني دغه زموږ بس دی چي عيسی ابن الله و، او بعض روات وايي چي حيي بن اخطب او کعب بن الاشرف او نور يهوديان و عليه السلام ته راغله چي موږ خبر سوي يو چي پر تا باندي "الم" نازل سوی دی؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل هو نازل سوی دی، نو حيي بن اخطب ورته وويل که دا حق وي نو مده ستا د امت يو اويا (۷۱) کاله ده، نو عليه الصلوة والسلام ورته خندل لاتقريراً بل تعجباً لجهله چي ده کلام الهي عربي پر حساب د ابجد حمل کړی او سره له دې چي حساب د ابجد خو حادث دی او کلام الهي قرآن مجيد خو قديم دی، نو حيي مذکور ورته وويل هل غيرها، نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل "الرا" حيي ورته وويل چي دا خو تر "الم" درېر سو، بيا عليه الصلوة والسلام ورته وويل "المص المرا" نو حيي ورته وويل لقد خلطت علينا بايتها ناخذ، فانزل الله تعالی هذه الآية

او ابن جريج وايي چي دا آيت په منافقينو کي نازل سوی دی، او حسن بصري وايي چي په خوارجو کي نازل سوی دی، وقيل هم جميع المبتدعه.

**پوه سه**: چي امام مظهري وايي لفظ عام دی لجميع من ذکر وجميع اصناف المبتدعة.

## وَابْتِغَاءَ تَأْوِيلِهِۦ

عطف دی پر ابتغاء الفتنة باندي يعني لپاره د طلب د تاويل د متشابه، يعني تاويل د متشابه پر طريقه د خپلو خواهشاتو زائغه وو، او گاهي تاويل د متشابه غوښتنه بناء پر جهل وي په معاني و د قرآن فقط، لکه بعض متاخرين د فرق مبتدعه و يا متقدمين د منافقينو د عصر نبوي يا وروسته تر هغو بقايا د منافقينو.

# وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيلَهُ إِلَّا اللَّهُ

او هیڅ علم نه لري پر تاویل د متشابه من الآیات موافق د ما اراد الله سره مګر خدای ﷻ

**پوښتنه**: په الا الله کي خو علیه الصلوة والسلام هم داخل دی، نو آیا علیه السلام هم علم په تاویل د متشابه نه درلودی؟

**ځواب**: دا حصر اضافي دی یعني نظر وعمومي اهل علم ته دی، او علیه السلام ځنډي مستثنی دی، بدلیل قوله تعالی "ثم ان علینا بیانه" ولي چي دي آیت معنا داده چي خدای ﷻ وعلیه السلام ته وویل بیا پر ما دي بیان د قرآن محکمه و متشابهه نو د ټوله قرآن بیان ضروري او لازم دی، ولا یجوز انیکون منها غیر مبین له علیه الصلوة والسلام والا یخلو الخطاب عن الفائدة ویلزم الخلف في وعده تعالی بقوله ثم ان علینا بیانه، والحق ان المتشابهات اسرار مکتومة بین الله ﷻ ورسوله ﷺ کما یدل علیه ماجاء في الحدیث الصحیح ان جبرئیل لما انزل قوله تعالی "کهیعص" فکل حرف تکلم به جبرئیل قال علیه الصلوة والسلام فهمت فتعجب جبرئیل من علمه ﷺ مع ان جبرئیل حامل ولم یعلم ما اراد الله ﷻ، مظهري و درویش عاصي.

**یوه سه**: چي بعض فقهاء او مفسرین وایي چي وقف پر الا الله لازم دی، والراسخون مبتداء ده، او یقولون یې خبر دی وهذا هو المشهور من مذهب الحنفیه، لکن صاحب د روح البیان چي حنفي هم دی وقف پر الا الله لازم نه بولي، بلکې پر والراسخون عطف بولي او دی داسي عبارت په لیل کي وایي فان الله تعالی لم ینزل شیئا من القرآن الا ینتفع به عباده ویدل به علی معنا اراده، فلوکان المتشابه لا یعلمه غیر تعالی للزمنا للطاعن مقال، وهل یجوز انیکون رسول الله ﷺ لایعرف ولایعلم معنی المتشابه.

**درویش وایي**: چي دمخه مونږ وویل چي دا امکان نه لري

واذا جاز ان یعرف المتشابه (او سره له دې چي په الا الله کي خو علیه الصلوة والسلام هم داخل دی) جاز ان یعرفه الربانیون من صحابته ﷺ وان لم یعرفه

النبيﷺ وصحابتهمﷺ والعلماء الراسخون وقالوا علمه عند الله لم يكن لهم فضل على الجهال لانهم جمعيا يقولون ذالک ولم يزل المفسرون الى يومنا هذا ويولون كل آية ولم نرهم ان يقفوا شيئ من القرآن فيقولون هذا متشابه لا يعلمه الا الله بل فسروا نحو حروف التهجي وغيرها انتهى عبارة روح البيان.

**درویش وایي:** چي صاحب د روح البیان په دې کي سهوه دی چي علیه الصلوة والسلام يې د صحابهﷺ او علماء راسخین سره يو ځای کړی يعني چي علیه الصلوة والسلام او صحابه کرام او علماء راسخین په ګډه سره وايي لا يعلم تاويله الا الله، وليس كذالک لما قلنا ان هذه الآية مستثنى عنها رسول اللهﷺ بقرينة قوله تعالى ثم ان علينا بيانه لان هذه الآية تشتمل بيان المتشابهات والمحكمات كله وقد مر ان القصر اضافي، وهذه المتشابهات سر بين الله ورسولهﷺ.

**پوښتنه:** نو چي علیه الصلوة والسلام په تاویل د متشابهاتو خبر و، نو بايد بعض خاص صحابه وو ته يې دا تاویل وربښوولی وای؟

**ځواب:** د سر بين الله ورسوله معنا خو داده چي هيڅ څوک به نه په خبر وي. وما قال يلزم للطاعن مقال ممنوع لانه لما علم رسولهﷺ بتاويله فلا مساغ للطاعن بان بقوله فما فائدة نزولها لان المقصود في نزول المتشابهات هو بيان الاسرار لرسولهﷺ، وبيان الاسرار غير لازم عليه الصلوة والسلام، الا ترى ان عليه الصلوة والسلام لم يفشو جميع الاسرار الواقعة بينه وبين ازواجه المطهرات في وقت الجماع لاحد من الصحابة وغيرهم فاذا كانت هذه الاسرار مصونة من الافشاء كانت الاسرار الواقعة بين الرب المجيد والحبيب مصونه عن الانشاء لاحد بالطريق الاولى، وما قال لم يكن للعلماء الراسخين فضل على الجهال آه ممنوع لان فضل العلماء الراسخين والصحابة على الجهال ليس محصورا في بنان تاويل المتشابهات بل للصحابة وللعلماء الراسخين فضائل كثيرة في فهم معاني مشكلات القرآن وشيون نزول الآيات بل في بيان اسرار المحكمات التي لاتعرفها الجهال وما قال اذا جاز ان يعرف رسول اللهﷺ جاز ان يعرفه الربانيون آه قلنا

الملازمة ممنوعة لان المتشابهات اسرار بين الله ﷻ وحبيبه ﷺ وليست باسرار بين الصحابة ﷺ والتابعين والعلماء الراسخين رح فكيف يعرفون تاويله وما قال لم يزل المفسرون الى مومنا هذا آه، قلنا نعم لكن بالتاويلات الظنية ولهذا يوؤل بعض الصحابة ﷺ والتابعين والمفسرين رح "الم" مثلا بتاويلات متنوعة وهكذا سائر المقطعات القرآنية يفسرونها بتاويلات بينها بعد السماء والارض، فلو كان لهم علم يقيني لاولوا المتشابهات على طريقة واحدة، ولنعم ماقال صاحب نور الانوار المفسر لآيات الاحكام الواردة في القرآن بتفسير يقال له التفسير الاحمدي ومقالته في نور الانوار ان النزاع بين من يقول ان الراسخون في العلم يعلمون تاويل المتشابهات انهم يعلمون تاويلها الظني ولهذا اختلفوا في تاويل المقطعات القرآنية اختلافاً بيناً وبين من يقول انه لا يعلم تاويلها الا الله ان لا يعلم تاويلها اليقيني بان هذا المعنى هو مراد الله تعالى قطعاً فالنزاع راجع الى النزاع اللفظي، وقد علمت مما قررنا سابقا ان رسول الله ﷺ خارج من هذا الحصر لانها اسرار بينه تعالى وبين حبيبه ﷺ.

**درویش وايي:** وهذا هو الحق الذي يعض عليه بالنواجز وقد طالعت التفاسير المتنوعة فكلها او جلها يوافقها راى العبد الضعيف ولله الحمد على ما وفقني لتفصيل هذا المقام كما هو حقه.

**درویش وايي:** چي زه خو په حقيقت كي خوشه چين د كتابو د مفسرينو رح يم لكن لدفع طعن الطاعنين وشبهة الزائغين واعلاء شان سيد المرسلين ﷺ اضطررت الى تطويل الكلام والجواب عن دلائل روح البيان، فلا تلوموني ايها الحساد ولوموا انفسكم والله الموافق.

## وَالرّٰسِخُوْنَ فِى الْعِلْمِ يَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا بِهٖ

**پوه سه:** چي دمخه مو‌ږ وويل چي بعض قراء او فقهاء وقف پر الا الله باندي لازم بولي، او الراسخون في العلم" مبتداء بولي "يقولون" يې خبر بولي، او هغه علماء چي والراسخون عطف بولي پر "الله" باندي هغه د "يقولون" جمله حال بولي له "الراسخون" څخه والتقدير قائلين آمنا به.



Scanned by CamScanner

**فائده**: عطف د "الراسخون" پر لفظ الله قول دی د مجاهد او ربیع رح او ابن عباس‌؄. او اکثر قراء او فقهاء پر دې رایې دي چې کلام پر الا الله پوره سو والراسخون في العلم جملة مستانفة والواو للاستیناف، وهو قول ابي بن کعب وعائشة وعروة بن الزبیر؄. وروایة طاوٗس عن ابن عباس؄ وقول حسن بصري واکثر التابعین واختاره الکسائي والاخفش رح. او ددې مذهب تاکید کوي قرائت د ابن مسعود؄ "ان تاویله الا عند الله والراسخون في العلم یقولون آه" ولې چې پر دې قرآئت عطف د "الراسخون" پر لفظ د الله نه سي کېدای، ولې لفظ د الله پر دې قرائت مجرور دی په اضافت سره د عند، او لفظ د والراسخون مرفوع دی بالواو والنون کما هو اعراب الجمع المذکر السالم. او داغه رنګه د عدم عطف د الراسخون تائید کوي قرائت د ابي بن کعب؄ سید القراء ویقول الراسخون في العلم آمنا به آه.

**درویش وایي**: چې په دې آراوو او قرائتو سره تقویه پیدا کړه تضعیف د درویش قول لره د روح البیان کمامر فافهم.

**پوه سه**: چې مراد له الراسخون څخه هغه کسان دي چې په دین کي د اسلام محکمه وي او په اسلامي امورو کښې یې هیڅ شک او شبه په زړه کښې نه ور ګرځي، وهم في الحقیقة اهل السنة والجماعة، چې دوئ کتاب الله او سنت نبوي بېله اتباع د خواهشاتو نفسانیه وو د زامي په غاښو کي ټینګ نیولي دي، او په تفسیر کي د قرآن په صحابه کرامو او په تابعینو او تبع تابعینو رح پسي اقتداء کوي لانهم من اهل خیر القرون بشهادة رسول الله ﷺ. او رد د متشابهاتو د قرآن او احادیثو بنویه وو محکماتو کوي، او تر خپلو خواهشاتو نفسانیه وو تېر وي، په حدیث کي د ابي درداء؄ راغلي دي چې له علیه الصلوة والسلام څخه چا پوښتنه وکړه چې راسخون في العلم څوک دي؟ علیه الصلوة والسلام ورته وفرمایله "من برت یمینه" یعني په قسم کي خان نه حانثوي "وصدق لسانه" او ژبه یې رشتیا وایي "واستقام قلبه" او زړه یې له شک او شبهې څخه خلاص وي او پر دین مستقیم وي "وعفف بطنه وفرجه" او


Scanned by CamScanner

ساتلی یې وي خپل نس یعني له حرامو څخه، او خپل فرج یعني له زنی څخه، او استمنا بالید څخه الا عند الضرورة یعني تسکین الشهوة لا قضاء الشهوة، او دوئ وایي چې زموږ ایمان دی پر متشابه.

**پوه سه:** چې دا جمله یا خبر دی د والراسخون څخه که وقف پر الا الله وکړه سي، او یا حال دی له والراسخون څخه که عطف پر لفظ الله سي والمعنی قائلین آه.

كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ رَبِّنَا

یعني هر یو له محکم او متشابه څخه که موږ په پوهېږو او که نه نازل له جانبه څخه د خدای ﷻ دي فعلینا الایمان بالکل بدون التلبیس والتاویلات الزائغة.

**فائده:** امام مظهري رحمه الله وایي په توجیه د قول د بغوي رحمه الله چې وایي چې وقف پر الا الله باندي اقیس او اشبه دی آه. نو مظهري رحمه الله وجه دا ویلې ده چې استثناء له نفي څخه اثبات دی باجماع اهل العربیة او لام په والراسخون کې خو د باب لپاره د استغراق دئ، نو که راسخون في العلم عطف سي پر لفظ الله باندې نو باید ټوله راسخون دې په تاویل د متشابهاتو خبر وي ولیس کذالک علی مایشهد به البداهة والدرایة آه.

**درویش وایي:** اولاً دا ممنوع ده چې لام لپاره د استغراق دی لم لایجوز ان یکون للجنس یتحقق بتحقیق بعض الافراد وبعض الافراد الکمل من الراسخین دي لکه مظهري چې دمخه ویلي دي چې راسخون في العلم هم الصوفیة العلیة الراسخون في العلم المنسلخون عن الهواء بالکلیة الی اخیر کلامه، ولو سلم ان اللام للاستغراق نو بیا دا قول دده ممنوع دی چې د کل راسخ في العلم خبرتیا په تاویل د متشابهاتو خلاف البداهة آه، ولي چې دده پر ترجمه د راسخ في العلم هو الصوفیة العلیة الی اخیر ماقال نو موږ وایو هر راسخ في العلم په معنا مذکوره په تاویل د متشابه خبر دی والله اعلم بالصواب.

وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُوا الْأَلْبَابِ ۝

او پند نه اخلي مگر خاوندان د عقولو سلیمه و.



Scanned by CamScanner

**پوه سه:** چي اصل د یذکروا یتذکروا دی نو تا یې په ذال کي مدغمه کړه.

# رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا

اې زموږ ربه ته مه مائلوې زموږ زړونه له حق څخه لکه قلوب د زائغینو مذکورینو في قوله "فاالذین في قلوبهم زیغ" الآیة.

**فائده:** دا آیت تر پایه پورې یا مقوله د راسخونو ده، نو تقدیر یې دا دی یقولون ربنا امنا به آه ویقولون ربنا لاتزغ الآیة، او یا تعلیم دی د سوال له جانبه څخه د خدای ﷻ والتقدیر قولوا ربنا لاتزغ الآیة.

# بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا

وروسته تر دې چي موږ ته تا هدایت وکړې په نازلولو سره د قرآ کریم او توفیق دي راکړی د ایمان پر محکم او متشابه تولو له قرآن کریم.

# وَهَبْ لَنَا مِن لَّدُنكَ رَحْمَةً ۚ إِنَّكَ أَنتَ الْوَهَّابُ ⑧

او موږ ته وبخښې یعني راکړې او پر موږ وکړې ستا له جانبه څخه رحمت

**فائده:** له دې آیت څخه معلومه سوه چي هدایت په معنا ایصال الی المقصود یعني الایمان والطاعة او ضلالت چي ضد د هدایت دی له جانبه څخه د خدای ﷻ دی، او که چېرې د هدایت معنا ارائة الطریق وای فلا معنی لسوال الهدایة منه تعالی، لان ارائة الطریق حاصل من جانبه بانزال القرآن علی النبي ﷺ فالدعاء طالب الحاصل.

# رَبَّنَا إِنَّكَ جَامِعُ النَّاسِ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ ⑨

اې زموږ خدایه ته جمع کونکی یې د ټوله خلګو د هغه ورځي لپاره یعني لپاره د حساب او جزاء د هغې ورځې چي په هغې کي هیڅ شک نسته یعني لارباب العقول السلیمة الغیر المقلدین الا آباء الضالین والا فالمشرکون ینکرون الیوم المذکور، او په تحقیق خدای ﷻ خلاف نه کوي د خپلي وعدې څخه، نو میعاد مصدر میمي دی.

**پوه سه** چي یو وعد دی او بل وعید دی، وعد دادی چي یو څوک له یو چا



Scanned by CamScanner

سره وعده د احسان وکړي، او وعید دادی چي یو څوک د چا سره وعده د عذاب وکړي، نو وعید به د معتزله وو وايي چي پر خدای ﷻ باندي خلاف د وعد او وعید څخه دواړه محال دي، ولي چي وعد او وعید خو داوړه اخبار دي په ثواب ورکولو یا په عذاب ورکولو، نو که له یوم څخه ددې دوو خلاف وکړي نو پر خدای ﷻ کذب لازمېږي تعالی الله عن ذالک علواً کبیراً او دوی دلیل هم په دغه آیت وايي یعني "ان الله لایخلف المیعاد" موږ اهل السنة والجماعة ودوی ته وایو چي وعید د فاسقانو یعني عذاب ورکول خو مشروط دي په عدم توبه ددوی في الدنیا باتفاق بیننا وبینکم، نو موږ وایو چي دغه وعید د فاسقانو چي بې توبې مره سي مشروط په دې دی چي خدای ﷻ عفوه او بخښنه ورته ونه کړي بدلیل قوله تعالی "یغفر لمن یشاء ویعذب من یشاء" وقوله تعالی "لاتقنطوا من رحمة الله" وقوله تعالی "ومن یقنط من رحمة ربه الا الضالون" وقوله ان الله لایغفر ان یشرک به ویغفر مادون لمن یشاء" واما سوال الکذب علیه تعالی فغیر وارد اذ اخبار وعیده مقیدة بعدم العفو، واما عدم جواز خلف الوعد فلانها خصلة رزیلة تنافي الوهیة تعالی.

**درویش وايي**: چي بعض عمده علماء لپاره د دفع د سوال مذکور في خلف الوعید چي داسي وايي چي کذب او درواغ پر خدای ﷻ روا دی، لکن دا غلط جواب دی او له خاورو څخه پر هیرو کښېښتل دي لانّ الکذب عیب ونقص في الاناسي فکیف یجوز في ذات الباري المنزه عن العیوب والنقائص، والتفصیل في شروح مسلم الثبوت فراجع الیها ان شئت.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَن تُغْنِيَ عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ وَلَا أَوْلَادُهُم مِّنَ اللَّهِ شَيْئًا ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمْ وَقُودُ النَّارِ ﴿١٠﴾

په تحقیق هغه کسان چي کافران دي که مشرکان وي او که اهل کتاب وي.

**فائده**: نسي کولای ودوی ته مالونه ددوی او نه اولاد د دوی په دې معنا چي نه بدل د رحمت او طاعت د خدای ﷻ کېدای سي او نه دافع د عذاب د

خدای ﷻ کېدای سي.

**پوه سه:** چي شيئاً منصوب دی مفعول مطلق دی ای شيئاً من الغنی، او هم دغه کسان اور بلېدونکي لرگي دي د اور يعني دوزخ. که څه هم کفارو خو به ويل کما حکی الله تعالی عنهم وکانوا يقولون نحن اکثر اموالا و اولاداً وما نحن بمعذبين، وقال الله تعالی في رد قولهم ذالک وما اموالکم ولا اولادکم بالتي تقربکم عندنا زلفی الا من امن وعمل صالحاً.

**فائده:** پر کفر چي سړی مړ سي د هيڅ چا فائده نه ور رسېږي نه د پلار نه د مور، ولي که فائده د پلار رسېدای وکافر زوی ته لنفع نوح ﷺ الی کنعان، او نه د زوی نفع وکافر پلار ته والا لنفع ابراهيم خليل الله لابيه آذر، وعلی هذا القياس الاموال.

كَدَأْبِ آلِ فِرْعَوْنَ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ بِذُنُوبِهِمْ وَاللَّهُ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿١١﴾

**پوه سه:** چي "داب" مصدر دی د داب في العمل چي ډېر به په کار کي ستړی سو، لکن دا لفظ غالب الاستعمال په شان او حال او عادت کي دی او جار مجرور محلاً مرفوع دي او خبر د محذوف مبتداء دي ای فعل هولاء الکفرة وشانهم في الکفر وتکذيب الرسل لکه شان او حال او عادت د آل يعني فرعون او اتباع دده، او حال د هغو کافرانو چي تېر فرعونيانو دمخه وه لکه عاديان، ثموديان، قوم لوط چي هغو تکذيب په آيتو زموږ وکړی، والمراد بها معجزات انبيائهم او آيات الکتب المنزلة علی انبيائهم نو خدای ﷻ ونيوله يعني عذاب يې ورکړی رقم رقم څوک په غرق سره معذب سوه څوک په رجم الحجارة څوک په خسف الارض سره الی غير ذالک من انواع العذاب. او خدای ﷻ سخت دی عذاب دده.

**پوه سه:** چي جمله د کذبوا باياتنا يا حال ده په تقدير د قد کما هو القانون النحوي في وقوع الماضي حالاً، او يا جمله مستانفه ده په استيناف بياني



Scanned by CamScanner

يعني جواب د سوال مقدر كانهم قيل ماكان شانهم.

قُلْ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَتُغْلَبُوْنَ وَتُحْشَرُوْنَ اِلٰى جَهَنَّمَ ؕ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۱۲﴾

او نه ووايه هغه كسانو ته چي كفر كوي يعني ته دوام وركړه ودې خپل تبليغ ته والمراد منهم اليهود باجماع المفسرين زر دى چي تاسي به مغلوبه سي يعني عذاب د مسلمانانو له خوا څخه او بيا به ورځ د قيامت چي حشر سئ و جهنم دوزخ او بئس المهاد جهنم دى.

**پوه سه:** چي له دې خايه نيولې بيا تر اولوا الابصار پوري وعده خداى ﷻ پر ځاى كړې ده په قتل د بني قريضه د يهودو او فرار كولو د بني النضير الى الاريحاء او په فتح د خيبر او جزيه پر دوئ مقررول. او له ابن عباس ؓ څخه روايت دى چي څه وخت چي عليه الصلوة والسلام او مسلمانانو شكست وركړى په ورځ د بدر ومشركينو ته د مكې، او اويا (۷۰) كسه يې په قتل ورسېدل او اويا كسه بنديان سوه، نو يهوديانو د مدينې وويل هذا والله النبي الذي بشرنا به موسى ؑ فارادوا ان يؤمنوا به. بيا بعض يهودو بعضو ته وويل چي تاسي تلوار مه كوئ په ايمان راوړلو كي او تر بل جنګه پوري له كفارو سره د قريشو انتظار وكړئ چي بيا څوك غالبه كېږي، نو كه بيا هم محمد ﷺ غالبه سو، نو په ايمان پر راوړو نو چي د احد غزاء واقع سوه او مسلمانانو ته لوى شكست ور په برخه سو او اويا (۷۰) صحابه كرام ؓ پكښي شهيدان سوه او د عليه الصلوة والسلام سر مبارك او غاښ مبارك پكښي مات سوه، نو يهوديانو ته بيرته شك پيدا سو چي دا نبي موعود نه دى، نو يې ايمان نه راوړى، او علاوه پر هغه په منځ كي د عليه الصلوة والسلام او د يهوديانو د مدينې داسي عهد سوى و چي موږ او تاسي به جنګ نه سره كوو نه به موږ ته كومك په جنګ كي د قريشو را كوئ او نه به قريشو ته پر موږ كومك وركوئ، نو دوئ دا وعده هم ماته كړه حتى چي كعب بن الاشرف سره د شپېتو نفرو مكې مكرمې ته ولاړل چي كفار د مكې ويل جنګ ته د عليه الصلوة والسلام اماده كړي، نو يهوديانو او مشركانو د مكې پر دې اتفاق وكړى چي د



Scanned by CamScanner

علیه الصلوٰة والسلام سره به په گډه جنګ کوو. فانزل الله تعالی هذه الآیة

قَدۡ كَانَ لَكُمۡ ءَايَةٌ فِي فِئَتَيۡنِ ٱلۡتَقَتَاۖ فِئَةٌ تُقَٰتِلُ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَأُخۡرَىٰ كَافِرَةٌ

**پوه سه:** چي مخاطب يهود د مديني دي پر تقدير دديٰ چي آيت سابقه هم د دوئ په شان کي نازل سوی دی، فالمعنی قد کانت لکن ايها اليهود دليل واضح پر صدق د "مااقول لکم انکم ستغلبون" او يا خطاب و مشرکينو ته د مکي دی علی تقدير کون الآية فيهم. نو معنا داده چي په تحقيق تاسي لره ای کفارو د مکي آيت او معجزه ظاهره ده او دليل د نبوت د عليه الصلوٰة والسلام دي په هغو داوړو ډلو کي چي سره يو ځای سوي يعني په ورځ د بدر کي چي يوې ډلي چي عليه الصلوٰة والسلام او مؤمنان و جنګ يې کاوه په لاره کي د خدای ﷻ يعني لپاره د اعلاء کلمة الله چي عدد يې درې سوه ديارلس (۳۱۳) کسه و چي اوه اويا (۷۷) مهاجرين وه او بيرغ د هغو د علي ﷺ پر غاړه و، او دوه سوه شپږ درش (۲۶۳) انصار وه چي د هغو بيرغ د سعد بن عبادة ﷺ سره و. او د ټولو سره اويا اوښان او دوه اسان وه او اکثره يې پياده وه، او په ټوله لښکر سره اته توري وې، او شپږ زغري وې، او بله ډله کافران د مکي وه چي د هغو تعداد په صحيح روايت نهه سوه پنځوس (۹۵۰) کسه و، او مشر د لښکر يې عقبه بن ربيعه و او سل (۱۰۰) آسان ورسره وه.

**فائده:** جنګ د بدر اول جنګ و چي رسول الله ﷺ پکښي حاضر و، اتلس مياشتي تر هجرت وروسته، او مياشت هم د روژې وه سنه دوهمه (۲) د هجرت.

يَرَوۡنَهُم مِّثۡلَيۡهِمۡ رَأۡيَ ٱلۡعَيۡنِۚ وَٱللَّهُ يُؤَيِّدُ بِنَصۡرِهِۦ مَن يَشَآءُۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَعِبۡرَةً لِّأُوْلِي ٱلۡأَبۡصَٰرِ ﴿١٣﴾

**پوه سه:** چي نافع اول توري ددې آيت په تاء د خطاب وايي، نو که خطاب ويهودو ته وي، نو معنا داده چي تاسي يهودانو وليدل کفار مکه دوه مثله د

مسلمانانو، نو مخاطب هغه یهود دي چي جنګ ته د بدر راغلي وه تا چي وويني چي څوک غالبه کیږي، نو ددې معنا داده چي تاسي يهوديانو په سترګو ولیدل چي کفار یعني مشرکین د مکې دوه مثله وه د مسلمانانو او سره د هغه يې بد ترین شکست وخوړی، نو باید تاسي یهود له واقعه څخه د بدر پند واخلئ. قال الشاعر

پند گیر از مصائب دیگران تانه گیرند دیگران زتو پند
نرود مرغ سوی دانه پراز چودیگرمرغ بیند اندر بند

**سوال:** څرنګه کفار د مسلمانانو دوه مثله وه بلل سوه او سره ددې چي کفارو خو درې مثله د مسلمانانو وه بلکه زائد؟

**ځواب:** مراد نفس کثرت د کفارو دی وتکرار امثالهم لا التثنیة فقط کما في قوله تعالى فارجع البصر كمرتين فان المراد هناك كرة بعد كرة لا حقيقة التثنية، وان كان الخطاب للمشركين. نو بې معنا داده چي تاسي اې مشرکانو لیدل مسلمانان دوه مثله خپل، یعني چي جنګ شروع سو تاچي کفار بزدله او شکست وخوري وقد كان كذالك. د سعد بن اوس څخه روایت دی چي يو سړی د مسلمانانو څخه چي ژوندی د کافرانو په لاس ورغلی نو مشرکینو د مکې له هغه څخه پوښتنه کړې وه چي څو کسه واست هغه ورته وویل؟ هغه ورته وویل چي مونږ خو درې سوه دیارلس (۳۱۳) کسه وو، نو مشرکانو ورته وویل چي مونږ خو تاسي دوه مثله خپل لیدلاست.

**سوال:** په سورت انفال کي خدای ﷻ ویلي دي "ويقللكم في اعينهم" یعني تاسي مسلمانان خدای ﷻ لږ ښکاره کولاست په سترګو کي د مشرکانو، نو ددغو دوو آیتو په تناقض نه وي؟

**ځواب:** یا تناقض نسته ولي چي د تقلیل او تکثیر وخت سره جلا و فالتقليل قبل وقوع القتال تاچي كفار پر دلاور سي او جنګ وکړي، او تکثیر هغه وخت و کمامر چي جنګ شروع سو تاچي کفار ویریږي و شکست وکړي، وقد كان كذالك.



Scanned by CamScanner

دا بیان و د قرآئت د نافع او یعقوب رح، او جمهور قراء یې "یرونهم" په صیغه د غائبې وایې والمعنی یری المشرکون المسلمین مثلی المشرکین کما مر او مثلی المسلمین یعني (۶۲۶) او یا ضمیر د غائب راجع د مسلمانانو ته دی یعني مسلمانانو مشرکان ځیل دوه مثله بلل، او سره د دې چې مشرکان درې مثله د دوی وه وهذا معنی قول المفسرین رح تاچې مسلمانان وکفارو ته ثابت ودرېږي. ولې چې خدای ﷻ له دوی سره وعده کړې وه "فان یکن منکم مائة صابرة یغلبو مائتین" له عبدالله بن مسعود ؓ څخه روایت دی چې موږ د بدر د جنګ په ورځ مشرکینو ته وکتل نو اولاً زموږ په سترګو مضاعف راغله وروسته چې د جنګ مراحل شروع سوه. زموږ په سترګو کې خدای ﷻ داسې راکړه چې یو سړی به تر موږ بالا نه وي، وروسته چې جنګ شروع سو زموږ په سترګو کې خدای ﷻ داسې راوستل چې تر موږ به د بر لږ وي حتی بیه د جنګ اور بل سو، نو ما یو سړي ته چې زما پر اړخ ولاړ وو ویل د مشرکانو عدد په خیال څو در ځي؟ هغه راته وویل سل (۱۰۰) کسه. امام مظهري رح وایي چې "رؤیة" په یرونهم کې په معنا د علم دی تاچې "مثلیهم" یې مفعول ثاني سي، وقال في دلیله اذا لمعنی لایساعد کونه حالا وروسته امام مظهري ته دا رائ العین په معنا کې اشکال پیدا سو. ولې رئ العین خو صراحةً دلالت پر رؤیت بصري کوي، بیا مظهري رح د دې اشکال جواب پر مجازات یې بناء ورکړې ده

**درویش وایي:** چې د امام مظهري رح د "مثلیهم" له حالیت څخه مانع څه و چې د هغه په سبب یې ځان له جنجال سره د مجازاتو مخامخ کړی چې د ساحه سره د قرآن مناسب نه دي، والله در صاحب روح البیان والبیضاوي رح حیث قال الاول نصب علی المصدر یعني رائ العین یعني رؤیة ظاهرة مکشوفة لالبس فیها معاینة کسائر المعانیات، وقال الثاني رؤیة معاینة وقال الخفاجي رح في شرح البیضاوي وظاهر هذا التفسیر یدل علی ان الرؤیة بصریة، ثم قال ومثلیهم حال انتهی والله اعلم، قوله تعالی والله یؤید

اً او خدای ﷻ کومک کوي د تائید له لاري د هغه چا سره چي اراده يې ورته وسې او په تحقیق په دغه موضوع کي د تقلیل او د تکثیر په غزوه کي د بدر عبرت يعني پند او نصیحت دی لپاره د خاوندانو د بصیرت ای ذوي العقول.

**بوه سه**: چي تنوین د "عبرة" لپاره د تعظیم دی ای لعبرة عظیمة او تخصیص د الو الابصار يې په دې وکړی چي بې وقوف سړی د عبرت اخستو لائق نه دی؟

## زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ

او ښائسته کړل سوي دي وخلګو ته، والمزين هو الله كما في قوله تعالى زينا لهم اعمالهم وهذا التزيين للامتحان، او یا مزین شیطان دی کما في قوله تعالى وزين لهم الشيطان اعمالهم" وهذا التزيين من طريق الوسوسة. محبت د شهواتو او مراد په دې سره خواهشات د نفسو دي، والشهوة مصدر وهي جلب النفس الى ماتريده وههنا بمعنى المفعول اى المشتهيات لان ماذكر في بيان الشهوات كلها اعيان مشتهيات والتعبير عنها بالمصدر مبالغة في كونها مشتهيات مرغوب فيها فكانها نفس الشهوات.

**فائده**: خدای ﷻ ملائکه وو ته عقول ورکړي دي او شهوت نسته ورسره، او بهائمو ته يې يوازي شهوت ورکړی دی او عقل نسته ورسره، او انسان ته يې عقل او شهوت دواړه ورکړي دي، نو د هر انسان چي عقل غالب سي پر شهواتو يعني الشهوات المحرمة والمكروهة فهو افضل من الملائكة كالانبياء عليهم السلام والصديقين و اولياء الله الكاملين ومن غلب شهوته على عقله فهو ارزل من البهائم، ولي چي بهائمو ته خو هيڅ عذاب نسته بخلاف الانسان، ولهذا قال الله تعالى في ذم علماء اليهود او جميع اهل الكتاب "مثلهم كمثل الحمار يحمل اسفاراً"

**بوه سه**: چي معنا د تزيين كون الشيئ ذا حسن وجمال مستحقاً للمدح محبوبا في قلوب الناس، او دا تزيين ګاهي په صفات نفسانيه سره وي كالعلم والعقل والحلم والزهد وخوف الله ﷻ وسائر كمالات النفوس، او ګاهي په صفات بدنیه وو سره وي كالقوة في الاعضاء والقامة المعتدلة وحسن

المنظر، او گاهي په خارجي شيانو سره وي لکه فاخره ملبوسات او فاخره مفروشات او اموال کثيره والجاه والجلال، او ښه ښه کوټې او بنګلې او يا ښه ښه مرکوبات من السيارات الى غير ذالک.

## مِنَ النِّسَآءِ وَالْبَنِيْنَ وَالْقَنَاطِيْرِ

**درويش وايي:** چي کلمه د "مِنْ" لپاره د بيان د شهواتو ده يعني شهوات ښځې او ماينې دي او زامن دي، تخصيص د زامنو يې وکړى ولي چي زامن هر چاته محبوب وي تر لوڼو.

**بوه سه:** چي قناطر جمع د قنطار ده، او قنطار په نيز د بعضو مال کثير ته وايي بدون تعيين العدد، او معاذ بن جبل ﷺ فرمايي چي يو قنطار يو زر او دوه سوه (۱۲۰۰) اوقيه دي، او يوه اوقيه څلوېښت زره روپۍ دي، او ابن عباس ﷺ وايي چي يو قنطار يو زر او دوه سوه مثقال دي، او يا دولس زره درهمه دي او يا زر دينار دي، او سدي ﷺ وايي چي قنطار څلور زره مثقال دي، او حکم ﷺ وايي چي قنطار مابين السماء والارض، درويش وايي چي دا قول ډېر غريب دی، او بعض وايي چي د غوايي پوست چي د رورپو ډک کړي، وهذا ايضا غريب، او وزن د قنطار څوک وايي فعلان دی او بعض وايي فنعال دی.

## الْمُقَنْطَرَةِ

دا لفظ ماخوذ دی له قنطار څخه لپاره د تاکيد دی، او فراء نحوي وايي چي د مقنطرة معنا مضعفة ده، فالقناطير اريد به جمع القنطار وبالمقنطرة جمع الجموع وقيل غير ذالک، ومثل هذا التاکيد واقع في کلام العرب کقولهم الوف مؤلفة وبدر بکسر الباء جمع بدرة ده، ويقولون مبدرة بدء الله ﷻ بالنساء لانهن راس الشهوات الى المشتهيات النفسية، ولذا قيل انهن حبائل الشيطان، ثم ثنى بالبنين لان الرجل يحرص على جميع المال من الحلال والحرام لاجل البنين، ولهذا قيل اولادنا فتنة ان عاشوا افتنونا وان ماتوا احزنونا.

## مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ

دا بيان د قناطر دی يعني من هذين الجنسين، قيل انما سمى الذهب ذهبا،



Scanned by CamScanner

لانه يذهب ولايبقى، والفضة فضة لان معنى الفضة التفرق وهي ايضا تتفرق.

وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالْأَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ذَٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَاللَّهُ عِنْدَهُ حُسْنُ الْمَآبِ ﴿١٤﴾

**پوه سه:** چي لفظ د خيل عطف دی پر قناطر باندي، والخيل جمع د فرس ده او خيل له لفظ څخه مفرد نه لري، او د مسومه معنا معلمة ده يعني علامه داره يا په رنگ سره او يا په داغ سره، او انعام جمع د نعم ده، او نعم هم جمع ده ولا واحد له من لفظه. اى الابل والبقر والغنم. او امام اعظم رحمه الله وايي چي وحشي حيواناتو ته هم نعم وايي، لکن دلته هغه وحشي انعام نه دي مراد، البته په هغه آيت کي "جزاء مثل ماقتل من النعم" هغه وحشي نعم مراد دي.

**پوه سه:** چي ذالک وتولو مذکوره شيانو ته اشاره ده په تاويل د ما ذکر، يعني دا ټوله شيان ما يتمتع وينتفع بها دي په دې دنيا کي وتذهب عن قريب، او د خدای ﷻ په نيز بنه ځای د رجوع سته يعني الجنة ونعيمها الدائمة ابداً ابداً فينبغي للقائل ان يختار الباقي على الفاني.

قُلْ أَؤُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرٍ مِنْ ذَٰلِكُمْ

ته ووايه اې محمد ﷺ وکافرانو ته چي آيا زه تاسي خبر کړم په بنه شي تر مذکوره شيانو.

**سوال:** د استفهام په آيت شريف کي څه فائده ده؟

**جواب:** فائده يې اشاره ده چي عليه الصلوة والسلام گويا متردد دی چي زه تاسي خبر کړم شفقة عليکم، وامتثالا لامره تعالى، او يا مو نه کړم خبر لفرط غلوکم في الکفر وغاية بعدکم عن قبول الحق وعدم سمعهم المواعظ.

لِلَّذِينَ اتَّقَوْا عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَأَزْوَاجٌ مُطَهَّرَةٌ وَرِضْوَانٌ مِنَ اللَّهِ

هغه خير دا دی چي هغو کسانو لره چي تقوی لري يعني له خدای ﷻ څخه

بېربېري جنتونه او باغونه په نېز د خدای ﷻ د دوی، يعني په ورځ د آخرت کي چي بهبږي به لاندي تر جنتو يعني تر درختو د جنتو ولي، يعني يوه به د اوبو وي، او بله به د شيدو وي او بله به د عسلو وي او بله به د شرابو وي، او همېشه به وي دوی په دغو جنتو کي ولي چي نه بيا مرگ سته او نه له جنتو څخه استل سته. او ماينې گاني دوی لره چي اکثره به يې حُري د جنت وي او بعض به نساء الدنياء وي، چي دوی به پاکي وي د ماينتفر منه الازواج من البول والغائط والحيض والنفاس، او د نورو ورته شيانو څخه. او ددې سره سره به خدای ﷻ له دوی څخه راضي وي.

**درويش وايي**: چي اخيري نعمت تر ټولو بالا نعمت دی، ولي چي نور ټوله نعمتونه د آخرت اثار دي د رضاء الهي.

**پوښتنه**: خدای ﷻ په دې آيت کي جنت او انهار ذکر کړي چي په مقابل کي د حرث د دمخه آيت سي، ولي حرث د دنيا بېله انهار خو نه کېږي، او هر حرث دنياوي شامل ټولو انواعو لره د مېوې دی کما لايخفی، او په مقابل کي د نساء وو د دنيا ازواج مطهره ذکر کړي، لکن د بنين په مقابل کي يې هيڅ شی ذکر نه کړی، له دې سببه چي په دې دار فاني کي خو وبنين ته ضرورت و لاجل بقاء النوع الانساني. او بل پلرونه په وخت کي د عجز د زامنو کومک ته ضرورت لري، او په دار جاوداني کي فناء او عجز نسته چي وزامنو ته ضرورت پيدا سي، او داغه رنگه يې د ذهب او فضة او خيلو او انعامو ذکر ونه کړی ولي چي اهل جنت د سپرتيا د آسانو او اوښانو د يو مقصد د رسېدلو لپاره په جنتو کي مستغني دي، ولي چي رسېدل وهر ځای او هر مقصد ته په اراده پوري د جنتيانو اړه لري، او بيع وشراء ته هم جنتيان ضرورت نه لري تاچي واثمانو ته چي ذهب او فضة دي ضرورت ولري، او يو شی په جنت کي خدای ﷻ زيات کړی چي هغه رضوان د خدای ﷻ دی لکه چي مور وويل چي رضوان الهي اعلی تر ټولو نعمتو د دنيا والآخرة دی، کما ورد في الحديث المروي عن ابي سعيد الخدري ﷺ قال قال رسول الله ﷺ چي الله تبارک وتعالی



Scanned by CamScanner

اهل جنت ته وایي یا اهل الجنة فیقولون لبیک ربنا وسعدیک والخیر کله في یدیک، نو خدای ﷻ به ورته ووایه چي تاسي راضي یاست. نو جنتیان به ورته وایي څه سبب دی چي موږ به نه یو راضي یا رب. او تا موږ ته راکړي یعني په جنت کي هغه نعمتونه چي وهیڅ چا ته د مخلوق خپل دي نه دي ورکړي، خدای ﷻ به ورته ووایه چي داسي شی درنه کرم چي تر دې ټولو نعمتو د جنت دي افضل وي، نو دوئ به ورته ووایي چي هغه افضل به نه څه شی وي چي تر نعمتو د جنت افضل دی، نو خدای ﷻ به ورته ووایي چي افضل تر نعمتو د جنت دادی چي زه به د همیشه لپاره ستا سي څخه راضي یم درته په غضب کېږم نه، بخاري مسلم. وکفاک في فضائل الجنة ما قال الله ﷻ وفیها ما تشتهیه الانفس وتلذ الاعین. له بایزید بسطامي رحمه الله څخه نقل دی چي ده په مناجات کي د رب ﷻ داسي وویل چي بایزید په دوږخ کي وي مګر ته خندي راضي یې نو بایزید ته به هغه دوږخ جنت وي، او که ته خدای ﷻ نا راض یې خو بیا دي هم بایزید جنت ته داخل کړی وي، نو بایزید ته په هغه جنت دوږخ وي.

**درویش وایي:** چي د بایزید رحمه الله دا وینا ډېره د تعجب وړ خبره نه ده بلکه دا خبره په دنیا کي مثال لري، لکه یو سړی چي د دوست په کور کي مېلمه سي هغه دوست یې مسکین وي بېله شلومبو او ډوډی پر بل شي قدرت نه لري، نو هغه شلومبې او ډوډی ورته راوړي لکن په ډېره خندا او خوشحالی او په فراخه تندي یې سره وخوري، نو مېلمه ته شلومبې او ډوډی لکه ورجي او غوښي داسي معلومېږي، او که چېري یو سړی د بل چا مېلمه سي او هغه بنه خوراکونه مثلا ورجي او غوښي ورته حاضري کړي لکن په تریو تندي او په غضب او غصه ورسره خبري کوي، نو هغه مېلمه ته هغه ورجي او غوښي وغیره لکه زهر داسي ورته معلومېږي والتجربة شاهدة علی ذالک.

وَاللّٰهُ بَصِيرٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿۱۵﴾

او خدای ﷻ خبر دی پخپلو بندګانو او په اعمالو او احوالو ددوئ هم خبر دی، نو خدای ﷻ به لائق له حاله سره د هر چا جزاء ورکړي.



Scanned by CamScanner

الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اِنَّنَآ اٰمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿۱۶﴾

**پوښته:** الذين يا مرفوع خبر د محذوف مبتداء دی ای هم الذين آه او يا منصوب دی د اعنی محذوف مفعول دی، او يا په محل كي د جر دی صفت د متقينو او يا د عباد دی، او پر دې تقدير ترجمه د آيت داده چې متقيان هغه كسان دي چې وايي يا زموږ ربه په تحقيق موږ ايمان راوړی دی يعني بجميع ما يجب الايمان به، نو خدايه ته موږ ته بخښنه د ټولو گنهو وكړې، او موږ له عذاب څخه د اور وساتې.

**پوښته:** چې نفس ايمان سبب د مغفرت كېدای لكه په حديث كي چې روايت يې معاذ﷜ كړی دی پر دغه ماقلنا دلالت كوي، قال قال رسول الله ﷺ چې حق دی د خدای ﷻ پر بندگانو چې عبادت به د خدای ﷻ كوي او نه به شريكوي په عبادت كي د خدای ﷻ بل هيڅ شی. او حق د بندگانو پر خدای ﷻ دادی چې نه به په عذابوي يعنې په ورځ د قيامت هغه څوک چې خدای ﷻ ته يې شريک نه وي گرځولی هيڅ شی، نو معاذ﷜ ورسول الله ﷺ ته وويل چې زه په دې خبرو خلگو ته زيرې ورنه كړم، عليه الصلوة والسلام ورته وويل لاتبشروهم دا زيرې مه ورته كوه، ولې چې دوئ بيا پر دغه خبره تكيه كوي يعنې اعمال صالحه پرېږدي.

**پوښتنه:** عليه الصلوة والسلام چې معاذ﷜ له اخبار څخه منع كړی، نو دا حديث تر موږ پورې څرنگه را ورسېدی؟

**ځواب:** په حديث كي راغلي دي معاذ﷜ دا خبره په نېږ د مرض موت خلگو ته وكړه. ولې چې ده ځان ساتی له وعيد څخه د پوټونكي د علم كما في قوله تعالى والذين يكتمون ما انزل الله الآية، نو دا حديث پسله اظهاره د معاذ﷜ ونشر عام ته وسپارل سو.

**پوښته:** چې د پوښتنې د مخه حصه بخاري او مسلم يې روايت كړې ده او د جواب حصه يې په بل حديث كي راغلې ده.

# اَلصّٰبِرِیْنَ

**پوه سه:** چي صابرين سره د معطوفاتو منصوب دی په تقدير د اعني چي ودي ته په اصطلاح د نحو منصوب على المدح وايي، ولا احتمال آه للمرفوع على المدح لان هذه المعطوفات كلها بالياء بخلاف قوله فيما قبل يعني الذين يقولون فافهم.

**فائده:** صبر كه څه هم حروف يې دري دي لكن ټوله دين ته شامل دی، ولي چي د صبر صله چي "على" جاره راسي يعني الصبر على الشيئ ټولو ماموراتو ته شامل دی لكه صلوة، زكوة، صوم وغيرها لان المامورات كلها شاقة على النفس فينبغي للمؤمن ان يصبر على تلك الامور الشاقة، او چي صبر متعدی په كلمه د "عن" سي اى الصبر عن الشيئ نو ټولو منهياتو ته شامليږي، ولي چي منهيات ټوله طبعًا د اشتهاء سره د نفس برابر دي، والنفس يحبها فيلزم على المؤمن ان يصبر عنها للنهي عنها، او چي د صبر صله كلمه د "في" راسي يعني الصبر في الشيئ نو ټولو مصائبو ته لكه فقر، مرض، موت الاولاد وغيرها، نو مؤمن بايد صبر په دغو مصائبو كي وكړي، او له خدايه څخه طلب د دفع وكړي، او شكايت له خدای ﷻ څخه ونه كړي بلكه شكايت الى الله وكړي.

# وَالصّٰدِقِيْنَ

او دوی رشتيا وايي په خبر كي او په رواياتو كي د حديث، والنقل عن الغير والشهادات في امور الناس، او په دې كي چي خان ته د دروا‌غو ولايت او بزرگي ثابته نه كړي، او د علم په باره كي د خپل حال سره برابره دعوه ولري مثلا داسي ونه وايي چي زه علامه يم او يا مفتي د دين اسلام يم الى غير ذالك، او تر ټولو صادقه شاهدي داده اشهد ان لا اله الا هو واشهد ان محمداً عبده ورسوله، قال النبي ﷺ من صبر على مصيبة فله ثلث مائة درجة وبين الدرجتين كما بين السماء والارض، ومن صبر على الطاعة فله ستمائة درجة مابين الدرجتين كما بين السماء والارض، ومن صبر عن المعصية فله تسعمائة درجة مابين الدرجتين كما بين العرش والكرسي.



Scanned by CamScanner

## وَالْقٰنِتِيْنَ

**پوه سه:** چي اصل قنوت دوام ته وايي، فالمعنى الداثمين على الطاعات. داسې نه وي لکه بعض عوام چي د روژې مياشت راسي تولـه لمونځونه په جماعت کوي او تلاوت او قرائت د قرآن عظيم الشان او تراويح په ډېر حرص سره کوي، او چي د روژې مياشت تېره سي، بيا نه جماعت کوي او نه تلاوت بلکه بعض لمونځونه لکه د سهار يکلخته يې قضاء کوي، او د مازديگر لمونځ په مکروه وخت کي کوي الى غير ذالک

## وَالْمُنْفِقِيْنَ

او نفقه کونکي د خپلو مالونو.

**پوه سه:** چي افضل انفاق خو فرضي انفاق دى اى الزکوة ثم الواجب کصدقة الفطر والاضحية والانفاق على نفسه واهله وعياله والاقارب على طريق صلة الرحم والانفاق في الجهاد مع اعداء الله، او نور اقسام د بر او احسان.

**پوه سه:** چي "استغفار" طلب دى له مغفرت څخه د خداى ﷻ. او سحر سدس اخير ته د شپې وايي.

## وَالْمُسْتَغْفِرِيْنَ بِالْاَسْحَارِ ﴿۱۷﴾

**پوه سه:** چي استغفار طلب دى د مغفرت له خداى ﷻ څخه، او سحر سدس اخير ته د شپې وايي، او تخصيص د اسحار په سوال د مغفرت کي دادى چي ددغه وخت بيداري او عبادت کول پر نفس باندي ډېر سخت دى، او بل دا چي په دغه وخت کي طبيعت ډېر رسته وي او روح وعقل جمع وي، د ورځي ستړيا نه وي او د شپې خوب هم پوره سوى وي.

راوي وايي چي لقمان حکيم و خپل زوى ته وويل چي ته بايد تر چرگ عاجزه نه سي چي څرنگه د غفلت وزرونه وخنډي او په آذان شروع وکړي، په سدس اخير کي د شپې چي د تهجد وخت دى او خلگو ته په قم قم ناري وهي، قال السعدي رح



Scanned by CamScanner

دلا بر خیز وطاعت کن که طاعت به زهر کار است
سعادت آن کسی دارد که وقت صبح بیدار است
خروسان در سحر گویند که قم یا ایها الغا فل
تو از مستی نمیدانی کسی داند که هوشیار است

وایضاً الاستغفار وقت السحر ابعد من الریاء والسمعة فکان اقرب الی الاجابة.

او داغه رنګه حضرت ابو هریره ﷺ له علیه الصلوة والسلام څخه داسي روایت کړی دی چي رسول الله ﷺ وویل "ینزل الله تعالی الی السماء الدنیا کل لیلة حین یبقی ثلث اللیل، فیقول انا الملک من ذا الذي یدعوني فاستجیب له من ذا الذي یسئلوني فاعطیه، من ذا الذي یستغفرني فاغفرله"

بخاري، مسلم، روح البیان، مظهري، قرطبي وغیرها

**سوال:** نزول خو په اجسامو پورې خاص دی، او خدای ﷻ خو جسم نه دی؟

**خواب:** ودې ته صاحب د روح البیان داسي خواب ورکړی دی چي مراد له نزول څخه د خدای ﷻ نزول د ملکې دی په امر د خدای ﷻ، او د خدای ﷻ له طرفه مذکوره اعلانونه کول او یا لفظ د نزول استعاره له کمال اقبال څخه د خدای ﷻ و داعینو ته او اجابت د سوالونو د دوئ آه.

**درویش وایي:** چي ښه خواب به دا وي چي داسي حدیث لکه نور حدیثونه چي مشعر په جسمیت د خدای ﷻ یا په مکان د خدای ﷻ وي له متشابهاتو څخه وګڼل سي، او د مراد تفویض یې وخدای ﷻ او رسول ﷺ ته وکړل سي، ولي چي په روایت د دغه حدیث په پای کي د حدیث راغلي دي ثم یبسط یدیه الی اخیر الحدیث

شَهِدَ اللّٰهُ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ

شاهدي اداء کوي خدای ﷻ

**پوه سه:** چي د شاهدي څخه د خدای ﷻ مراد دادی چي دلائل عقلیه یې قائم کړي دي پر وحدانیت خپل او کتابونه یې نازل کړي پر انبیاء علیهم السلام پاندې په دې سره چي نسته معبود بالحق او خالق العالم بېله ده یعني بېله خدایه

**فائده:** بغوي رحمه الله روایت کړی دی له کلبي رحمه الله څخه چي یو دوه ملایان له یهودو څخه د شام مدیني منورې ته راغله لپاره د ملاقات د علیه الصلوة والسلام نو دوئ چي د مدینې ښار ولیدی یوه وهغه بل ته وویل چي څونه ډېر مشابه دی دا ښار یعني المدینه د هغه ښار سره چي نبي اخیر الزمان چي منعوت في التوارة دی په هغه ښار کي به یې خای د هجرت وي، نو چي دوئ د علیه الصلوة والسلام وملاقات ته حاضر سول، نو دوئ علیه الصلوة والسلام وپېژندی په هغه صفت چي په تورات کي دوئ لیدلی و، نو دوئ ورته وویل چي ته محمد یې؟ علیه الصلوة والسلام ورته وویل نعم انا محمد وانا احمد، نو دوئ ورته وویل چي موږ ستا څخه یوه پوښتنه کوو که دي د پوښتني څواب راکړی، نو موږ پر تا باندي ایمان راوړو او ستا تصدیق کوو، علیه الصلوة والسلام وته وویل چي پوښتنه وکړئ، نو دوئ ورته وویل چي موږ ته خبر راکړه چي کوم آیت ستا په کتاب الله کي اعظم شهادةً دی فانزل الله هذه الآیة فاسلم الحبران معاً.

## وَالْمَلٰٓئِكَةُ وَاُولُوا الْعِلْمِ

او داغه رنګه شاهدي اداء کوي ملکې او خاوندان د علم یعني مؤمني الانس والجن یعني هغه هم شاهدي اداء کوي په زړونو او په خوله په توحید د باري تعالی.

**پوه سه:** چي ملائکة او اولو العلم عطف دي پر اسم ذات شریف باندي.

**سوال:** شاهدي د خدای ﷻ لکه د مخه چي تېره سوه اقامت د دلائل عقلیه او انزال د کتابو دی، او شاهدي د ملکو او اولو العلم څو تصدیق د زړه او اقرار د خولې دی، نو څرنګه په یوه "شهد" کي دا ټولې معنا وي صحیح کېږي؟

**څواب:** په "شهد" کي عموم مجاز دی فافهم فانه دقیق.

## قَآئِمًاۢ بِالْقِسْطِؕ

خدای ﷻ ثابت دی په عدالت سره في قسمة الارزاق وتعیین الآجال والاثابة علی بعض الافعال والعقاب علی بعض آخر، او په اوامرو کي د بندګانو او



Scanned by CamScanner

نواهي و كي والغرض لاظلم في شيئ افعاله.

**فائده:** قائماً منصوب دی چې حال دی له لفظ الله څخه چې فاعل د "تشهد" دی. او له ملائكة او اولو العلم څخه حال نه دی لان القيام بالقسط في جميع الامور من الصفات الذاتية له تعالى، او دلته التباس هم نه لازميږي كما في قولک جائني زيد وهند راكباً، ولې چې هر سړی پوهيږي چې راكباً چې مذكر دی له زيد څخه نه د هند څخه ولې چې هغه خو مؤنث دی، ولايجوز جائني زيد وعمرو راكباً للزوم اللبس كما لايخفى.

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿١٨﴾

خدای ﷻ چې غالب پخپله بادشاهي كې دی اذ لاشريک له ولاند ولاضد، او په هره موضوع كې حكم لري اذ لا عبث في افعاله تعالى.

**پوه سه:** چې تكرار ددې كلمې طيبه لپاره د تاكيد د توحيد دی وغاية الاعتناء به لانه راس العبادات كلها.

اِنَّ الدِّيْنَ عِنْدَ اللّٰهِ الْاِسْلَامُ

په تحقيق سره دين مرضي په نيز د خدای ﷻ اسلام دی.

**پوه سه:** چې له اسلام څخه دلته مراد توحيد دی او عمل كول دي په شريعت شريفه سره، او دا جمله تاكيد ده د دمخه جملې، نو جمله مستانفه ده، يعني اعرابي تړاو د دمخه جملې سره نه لري، وهذا هو الاستيناف النحوي، واما الاستيناف البياني فهو مايكون جوابا لسوال مقدر يكون ماتقدم من الجمل منشاء لذالک السوال.

**درويش وايي:** چې د اسلام تفسير په يوه حديث طويل كې چې روايت يې بخاري كړی دی، يعني حديث د سوال او ځواب د جبرائيل ﷺ سره داسې راغلی دی "قال رسول الله ﷺ الاسلام ان تشهد ان لا اله الا الله وان محمداً رسول الله وتقيم الصلوة وتوتي الزكوة وتصوم رمضان وتحج البيت ان استطعت اليه سبيلاً".

وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتٰبَ إِلَّا مِنۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًۢا بَيْنَهُمْ

او اختلاف نه دی کړی هغه کسانو چې دوئ ته کتاب ورکړه سوی و یعني اليهود والنصاری په نبوت کې د محمد ﷺ وحقيقة الاسلام.

**پوه سه:** چې اختلاف د اهل کتابو په نبوت کې د علیه الصلوٰة والسلام دا و چې بعض اهل کتابو نبي هيڅ نه باله لکه مشرکينو د اهل مکې چې نبي نه باله، او بعض اهل کتابو یې نبوت مانه لکن دا یې ویل چې دی نبي د عربو دی فقط او موږ ته دده نبوت نه دی شامل، او دا اختلاف اهل کتابو نه کاوه مگر هغه وخت یې دا اختلاف وکړی چې دوئ ته ورکړه سو علم پر دې چې دین د اسلام حق دی او محمد ﷺ هغه نبي موعود في التوراة والانجيل دی، او پس علم اختلاف ددوئ سبب یې حسد و، یعنې اختلاف ددوئ او ترک د دین اسلام او اختلاف د دوئ په سبب د شبهې او اشتباه نه و بلکه پس له علم په دې سره چې اسلام حق دی په سبب د حسد ددوئ چې قرار یې درلودی په زړونو کې ددوئ، او باعث پر حسد یې حب الرياسة والمال والملک خصوصا العلماء منهم.

**پوه سه:** چې استثناء دلته استثناء مفرغ ده يعني ما اختلف الذي آه في حال من الاحوال الا حال بعد مجيئ العلم وقوله بينهم ظرف مستقر دی صفت دی لقوله بغياً وحسداً ای مستقراً ومحكماً بينهم.

وَمَن يَكْفُرْ بِآيَاتِ اللَّهِ فَإِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿١٩﴾

او څوک چې کفر او انکار وکړي له آیاتو څخه د خدای ﷻ نو د خدای ﷻ حساب ژر دی یعني په ورځ د قیامت، نو به په هغه ورځ خدای ﷻ ورودوئ ته جزاء د کفر ورکړي.

فَإِنْ حَآجُّوكَ فَقُلْ أَسْلَمْتُ وَجْهِيَ لِلَّهِ وَمَنِ اتَّبَعَنِ

او که دوئ يعني اهل کتاب ستا سره دلائل وايي په دې کې چې ولې دين مرضي په نيز د خدای ﷻ اسلام دی او په مقابل کې به يهوديانو ويل چې دين

مرضی د خدای ﷻ یهودیت دی او نصاری وو به ویل چې دین مرضی د خدای ﷻ نصرانیت دی، نو ته اې محمد ﷺ ودوئ ته په ځواب کې د محاجت د دوئ داسې ورته ووایه چې ما خو منقاد او فرمانبرداره گرځولی دی خپل مخ یعنې خپل ځان لپاره د خدای ﷻ یعنې د خدای ﷻ سره زه څوک شریک نه بولم او نه زه متابعت د خواهشاتو نفسانیه و لرم بلکه په قلب او لسان او په ټوله جوارحو کې زه پرما امرني الله به روان یم.

**بوه سه:** چې تخصیص د "وجه" یې له دې سببه وکړی چې اکرم د اعضاء وو د انسان مخ دی، او داغه رنګه خپل ځان منقاد ګرځولی دی هغه چا چې زما متابعت کوي یعني المؤمنین.

**بوه سه:** چې "ومن تبعن" عطف پر ضمیر مرفوع د اسلمت دی که یې څه هم تاکید په ضمیر منفصل نه دی سوی لان المشروط في العطف علی الضمیر المرفوع المتصل اما التاکید بالمنفصل او الفصل، والفصل ههنا موجود.

وَقُلْ لِّلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَالْاُمِّيّٖنَ ءَاَسْلَمْتُمْ ۭ فَاِنْ اَسْلَمُوْا فَقَدِ اهْتَدَوْا ۚ وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ ۭ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿۲۰﴾

**بوه سه:** چې دا جمله د "قل آه" عطف ده پر "قل اسلمت" باندې عطف الانشاء علی الانشاء، والمعنی ته ووایه اې محمد ﷺ بعد اظهار ان الدین المرضی عندالله هو الاسلام، واهل کتابو ته یعنې الیهود والنصاری او امیانو ته چې کتاب نه لري یعنې د عربو مشرکانو ته، آیا تاسې اسلام قبلوئ لکه ما چې اسلام قبول کړی دی، یعنې وروسته تر دې چې په دلائلو عقلیه وو سره او معجزاتو سره او په آیاتو د تورات او انجیل دا ثابته سوه چې دین مرضی عند الله هو دین الاسلام دی او که اسلام نه قبلوي بلکه پر خپل کفر یهودیت او نصرانیت او شرک باندې باقي پاته کېږي، نو که دوئ اسلام قبول کړی، نو په تحقیق سره دوئ هدایت پیدا کړی یعنې لکه تاسې مسلمانان چې یې لرئ.

په حدیث شریف کې راغلي دي چې دغه آیت چې علیه الصلوة والسلام



Scanned by CamScanner

یهودیانو ته وواېه، نو دوئ وویل اسلمنا، نو علیه الصلوة والسلام دوئ ته وویل چي تاسي منئ چي عیسی عبدالله ورسوله و، نو یهودیانو وویل معاذ الله یعني عیسی خو نبي نه و بلکې د دوئ په عقیده ابن الزانیه و، بیا چي دا آیت ونصاری وو ته وویل سو هغو هم وویل اسلمنا، نو علیه الصلوة والسلام دوئ ته وویل تاسي دا منئ چي عیسی عبدالله ورسوله و، دوئ ورته وویل معاذ الله چي عیسی دي عبدالله وي هغو وویل یا خدای دی یا ابن الله دی، نو خکه خدای ﷻ دا آیت نازل کړی "وان تولوا آه" او که دوئ اعراض وکړی له ایمان څخه نو پر تا خو لازم صرف تبلیغ د قرآن دی.

**پوه سه**: چي دا قول د خدای ﷻ "فانما علیک آه" دلیل د جزاء محذوف دی او پر ځای د جزاء ولاړ دی، والتقدیر وان تولوا فلا تهتم بکفرهم وتولیهم لان علیک البلاغ وقد بلغت لااهتدائهم، او خدای ﷻ خبر دی په خپلو بندګانو سره.

**پوه سه**: جمله د والله بصیر آه" وعد دی د جنت د مؤمنانو سره، او وعید دی د کافرانو لپاره په دوزخ سره.

## إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ

**پوه سه**: چي په له دې آیت څخه مراد یهود دي، ولي چي دوئ کافران دي په قرآن سره او هم کافران دي په انجیل سره یعني دواړه الهي کتابونه نه مني، بلکې په خپل تورات سره هم کافران دي یعني په هغه آیتونو باندي چي په هغو کي نعت د رسول الله ﷺ ذکر سوی وي.

## وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ حَقٍّ

او دوئ وژني انبیاء علیهم السلام په ناحقه سره.

**سوال**: یقتلون" خو مضارع ده او قتل د انبیاء خو په ماضي کي د دوئ له اسلافو څخه واقع سوی و؟

**خواب**: مضارع دلته لپاره د استحضار د حالت ماضیه ده چي غایت شنیع و، نو سامعینو ته خدای ﷻ دا سوء صنیع د دوئ حاضره کړه لیتعجبوا منه، او



Scanned by CamScanner

بل خواب دادی چي اوس هم دوئ په قصد د قتل د عليه الصلوة والسلام وه اقتداءً بالاسلاف، ولي د عليه الصلوة والسلام سره دوئ جنګونه کول لپاره د قتل دده، او په ده يې سحر کړی و او دده په ډوډۍ کي يې زهر ور اچولي وه کمامر في سورة البقرة وسيئاتي ايضاً؟

**سوال**: دا فعل شنيع يعني قتل د انبياء و خو اسلافو ددوئ کړی و، نو حاضرين د عصر نبوي ته يې ولي پيغور خدای ﷻ ورکړی؟

**خواب**: حاضرين د عصر نبوي ﷺ په دغه قتل د اسلافو راضي وه کمافي قولهم بنو فلان قتلوا والقاتل واحد منهم.

**سوال**: قتل د نبي خو دی ناحق، ولي چي پر حق وژل دري ډوله دی، يا ارتداد بعد الاسلام او يا قتل النفس بغير حق او زناء سره د احصان، او په انبياء کرامو کي خو يو له دغو درو سببو څخه نه وو، نو د بغير حق د ذکر څه فائده ده؟

**خواب**: مراد دا دی چي د دوئ په عقيده کي هم موجب او سبب د قتل د انبياء کرامو نه و، بلکي ددوئ خپل رياست خوښ و، او د نبي متابعت يې نه و خوښ فلذا قتلوهم.

وَيَقْتُلُونَ الَّذِينَ يَأْمُرُونَ بِالْقِسْطِ مِنَ النَّاسِ

او دوئ به وژل هغه کسان چي دوئ به يې په عدل سره امر کول، چي مراد خندي اتباع د انبياوٴ دي چي دوئ به يې له قتل مذکور څخه منع کوله او په متابعت د انبياوٴ به يې امر کوله.

**پوهه**: چي بغوي رحمه الله له عبيده بن جراح رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي ما له عليه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه چي "اي الناس اشد عذاباً يوم القيامة؟ نو عليه الصلوة والسلام راته وويل چي اشد عذاباً هغه څوک دی چي نبي قتل کړي، او بل هغه څوک دی چي امر بالمنکر کوي او نهي عن المعروف کوي؛ نو بيا عليه الصلوة والسلام دا آيت ووايه "ويقتلون" الى اخيره، او بيا عليه الصلوة والسلام زياته کړه يا ابا عبيده بني اسرائيلو درو څلوېښت (۴۳) نبيان په اول کي د ورځي په يوه ساعت کي ووژل، بيا يو سل

او دوولس (۱۱۲) کسانو له عابدانو زاهدانو څخه د بني اسرائيلو ودوئ ته په امر بالمعروف او نهي عن المنکر وعظ شروع کړی، نو بني اسرائيلو هغه يو سل او دولس کسه په اخير کي د ورځي تولـه مړه کړه "قالﷺ فهم الذين ذکرهم الله في کتابه من قوله ويقتلون الى قوله فبشرهم آه"

فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٢١﴾

نو ته اي محمدﷺ زيری وکړه دوئ ته په عذاب درد ناکه سره، يعني اخبار ورته وکړه ودوئ ته، بشارت ويل سپکاوی دی د يهوديانو.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٢٢﴾

او دغه کسان د يهودانو چي انبيا عليهم السلام يې ووژل او آمرين بالمعروف يې هم ووژل، لغوه سوه عملونه ددوئ په دنيا او اخرت کي، او نسته دوئ لره کومک کونکي يعني په اخرت کي چي له عذاب څخه د اخيرت يې خلاص کړي، ولي چي قتل د نبي کفر دی فضلاً عن الانبياء بتلک الکثرة کاسلاف اليهود کامر.

**فائده:** په دې آيت کي ذم دی د قتل د آمر بالمعروف والناهي عن المنکر، فبئس القوم الذي يقتلون الآمرين بالمعروف والناهين عن المنکر

**مسئله:** لا يسقط الامر بالمعروف والنهى عن المنکر عن العلماء في وقت من الاوقات لکنه لاينفع الوعظ والزجر في آخير الزمان حين تشتدد القلوب قسوةً وتکون الناس مولعة بلذات الدنيا، سعدي شيرازي مېگويد وما احسن ماقال

گرچه دانی که نشوند بگوی — هرچه ميدانی از نصيحت وپند
زود باشد که خيره سر بينی — بدو پای افتاده اند بند
دست بردست زند که دريغ — نه شنيدم حديث دانشمند

د اوسني زماني د ملايانو حال خصوصاً چي د يو مسجد امام وي دادی چي دوئ فضائل د اعمالو بيانوي او مقتديان که يې په يوه گناه بلکي په ډېرو گنهو مبتلا وي د هغو په زجر او منع او نهي عن المنکر کي هيڅ بحث نه کوي، ولي

چي امامان ببربري كه زه دغه منهيات بيان كړم او عذاب د دغو منهياتو بيان كړم مقتديان به مي له امامت څخه جواب راكړي، فوا ويلا على حال هؤلاء الائمة مساجد حيث تركوا النهي عن المنكر بمراعات حال المقتديين فلعلهم جعلوا المقتديين هم الرازقون، وقد قال رسول الله ﷺ افضل الجهاد كلمة حق عند امام جائر" متفق عليه د مثال په توګه د ملا په مقتديانو كي مشر سړی چي ملا صاحب له ملايي څخه جوابولای سي، يا چرسي وي او يا شراب خوره وي او يا د كافرانو طرفداره وي وغير ذالك. نو ملا صاحب كه څه خوله له دغو كارو څخه ووهي لكن تفصيلي بيان او زجر د دغو كارو نسي بيانولای.

**درويش وايي:** چي د ننني زماني خلګ دونده متكبرين دي كه يو چاته ملا يا بل څوک ووايي چي اتق الله هغه سړی ورته وايي چي مانو څه كړي دي چي ته وايي له خدايه وبېرېږه او سره له دې دغه سړی د كبائرو ګنهو جوال وي، بخلاف اخواننا الاقدمين من المؤمنين ﷺ. د تاريخ په پاڼو كي ليدل كېږي چي هارون الرشيد د عسكرو سره روان و چي يو يهودي په لاره كي ورته ولاړ و او هارون ته يې وويل اتق الله نو هارون او ټوله لښكر يې له آسانو څخه پياده سول لپاره د تعظيم د خدای ﷻ د نامه، او داغه رنګه په تاريخچه كي د عمر بن العزيز ﷫ چي عدالت يې په اسلامي تاريخو كي درج دی، او بعض علماء وايي چي عمر بن عبدالعزيز پنځم د خلفای راشيدونو دی، يوه ورځ يو عارض په مخ كي ورته ولاړ و او دی پر آس سپور و، او هغه سړي ورته وويل يا امير المؤمنين اتق الله عمر ﷫ له آس څخه را وغورځېدی او مخ يې پر مځكه كېښېښو او د عارض عرض ته يې غوږ ونيوی، وهكذا روی عن امير المؤمنين عمر بن الخطاب ﷺ. له ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي ګڼ شمېر محدثينو يې روايت كړی دی چي يوه ورځ عليه الصلوة والسلام د يهوديانو مدرسې ته ورغلی او يو جماعت د يهودو هوري موجود وو، نو عليه الصلوة والسلام ردوی ته دعوت د دين اسلام وركړی، نو نعيم بن عمرو او حارث بن زيد يهوديان چي په مدرسه كي موجود وه و عليه الصلوة والسلام ته يې وويل

علی ای دین انت یا محمد؟ قال علی ملة ابراهیم ودینه. هغو دوو ورته وویل چي ابراهیم خو یهودي و، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي ورسي تورات راوړئ هغه زموږ او ستاسي تر منځ محکم دی، نو له رواړو څخه د تورات دوئ منع وکړه، ولي چي تورات دوئ رسوا کول په دعوی کې د یهودیت پر ابراهیم نو دا آیت خدای ﷻ نازل کړی

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ اُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يُدْعَوْنَ اِلٰى كِتٰبِ اللّٰهِ

آیا ته نه ګوري اې محمد ﷺ

**پوه سه**: چي د استفهام لپاره د تقریر دی او رویت علمي دی ویحتمل البصري آه ایضاً چي ودوئ ته ورکړه سوي ده یوه برخه.

**پوه سه**: چي تنوین د نصیباً لپاره د تحقیر دی ای نصیباً حقیراً وهو العلم بظاهر الفاظ التوراة بدون العمل بمقتضاه، ولي كه دوئ عمل په مقتضی د تورات کولای خو پر علیه الصلوة والسلام به یې ایمان راوړی وای، او دوئ بلل کېږي وکتاب ته د خدای ﷻ یعني التورات کمامر في شان نزول الآیة، او له ابن عباس ﷺ په شان نزول ددې آیت ابي صالح داسي روایت کړی دی چي یو یهودي د خیبر له ښځي سره زناء کړې وه او دواړه محصن هم وه او په تورات کي حکم د دغسي زناء رجم و، نو چونکه دا دواړه زانیان له اشرافو څخه د یهودیانو وه، نو ملایانو د یهودیانو رجم د دوئ مکروه وباله او غالباً څه ناڅه رشوت به یې هم خندي اخستی و، نو فیصله یې پر دې وکړه چي ددې حکم دې دا نوی نبي یعنې و علیه الصلوة والسلام ته وسپارل سي، شاید دده په دین کي څه سپک والی وي، نو علیه الصلوة والسلام ته چي دوئ مرافعه وکړه علیه الصلوة والسلام موافق د قرآن کریم حکم د رجم پر وکړی، نو علیه الصلوة والسلام ته نعمان بن اوفی ومجری بن عمرو وویل چي تا ډېره دلاوري وکړه پر دې کسانو خو رجم نسته، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي زموږ او ستاسي تر منځ به تورات محکم کړو، نو هغو ورته وویل چي دا خو د انصاف خبره تا وکړه، لکن دا رته ووایه چي په تورات ته چا خبر کړې چي حکم د تورات په ورته

کسانو کې رجم دی، علیه الصلوة والسلام ورته وویل یو سترګی سړی چې په فدک کې اوسېږي زه یې په دغه حکم د تورات خبر کړی یم، چې نوم یې ابن صوریا دی، نو هغه ابن صوریا یې له فدک څخه را وغوښتی او هغه هم مدینې ته راغلی، او جبرائیل علیه السلام د ابن صوریا بیان و علیه الصلوة والسلام ته کړې و، نو علیه الصلوة والسلام وابن صوریا ته وویل انت ابن صوریا قال نعم قال انت اعلم الیهود، هغه ورته وویل هو، نو علیه الصلوة والسلام په ښوونه د جبرائیل علیه السلام هغه حصه د تورات را وغوښتله چې په هغه حصه کې حکم د رجم و، نو ابن صوریا ته یې وویل چې دغه ځای د تورات ووایه، نو ابن صوریا چې آیت الرجم ته را ورسېدی پر آیت الرجم یې ورغوی کښېښود، او وروسته توري یې د تورات وویل، نو عبدالله بن سلام چې یو ستر عالم د یهودیانو و او په ابتداء د قدوم د علیه الصلوة والسلام مدینې منورې ته یې ایمان راوړی و کمامرت قصة ایمانه، علیه الصلوة والسلام ته یې وویل چې ابن صوریا تر آیة الرجم خان تېر کړی، نو عبدالله رضي الله عنه ورته ولاړ سو د ابن صوریا لاس یې له آیت څخه پورته کړی، بیا عبدالله بن سلام رضي الله عنه پر علیه الصلوة والسلام او حاضرانو یهودیانو آیة الرجم د تورات ووایه، هغه داسې حکم و چې محصن او محصنه چې زنا وکړي وقامت علیه البینة رجما، او که ښځه حامله وه تر هغو دې حد نه پر جاري کوي چې وضع حمل کوي، فامر رسول الله ﷺ فرجما، فغضب الیهود من ذالک الحکم، او بیا ولاړل فانزل الله تعالی هذه الآیة.

لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ فَرِيقٌ مِّنْهُمْ وَهُم مُّعْرِضُونَ ﴿۲۳﴾

او دوی لپاره د کتاب الله تورات را وبلل سول، چې دا کتاب چې حکم وکړي یا رسول الله ﷺ چې حکم وکړي په منځ کې ددوی په قرآن کریم سره چې دا حکم موافق د تورات سره د دوی و، وروسته اعراض وکړی یوې ډلې ددوی له حکم څخه د تورات او د علیه الصلوة والسلام، او د یهودیانو دا اعراض له حق څخه عادت دی.

**بوه سه:** چې کلمه د "ثم" لپاره د استبعاد د "تولی" د دوی ده مع علمهم بانه

الحق من ربهم. او جمله د وهم معرضون حال ده له فريق څخه.

**سوال:** حال له نكره څخه خو نه دی روا؟

**ځواب:** فريق كه نكره ده خو مخصص په صفت ده يعني منهم، نو حال ځنې روا دی كما تقرر في كتب النحو.

# ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّآ أَيَّامًا مَّعْدُودَٰتٍ وَغَرَّهُمْ فِى دِينِهِم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٢٤﴾

او دغه تولي او اعراض د يهوديانو سره د علم بالتورات په سبب ددې وو يعني دوی عذاب په آخرت كي د خپلو ځانو لپاره ډېر آسانه كړی و كه هر څو معصيت وكړي او يا انبياء كرام مړه كړي، او كفر په محمد ﷺ سره وكړي كه څه هم منعوت في التوارت و. او يا له آيت الرجم څخه انكار وكړي الى غير ذالک من المعاصي. هغه آسانه كول يې دا وه چي موږ اور د دوزخ نه مسه كوي يعني دوزخ ته مو خدای ﷻ نه ورولي مگر په حساب د څو ورځو، چي هغه څلوېښت (۴۰) ورځي دي چي زموږ اسلافو د گلگي عبادت كړی و، او بعضو به ويل چي ټوله عمر د دنيا اووه زره (۷۰۰۰) كاله دی، پر هر زر كاله باندي موږ خدای ﷻ يوه ورځ دوزخ ته اچوي وبس، يعني كه ښه كارونه كوو او اصلاً گناه نه وكړو هم دغه ايام معدودات خدای ﷻ عذاب راكوي، او كه هرڅو بد كارونه وكړو هم دغه عذاب دی وبس. او يا به دوی ويله چي زموږ نيكه گان خو انبياء دي حتماً زموږ شفاعت كوي، او يا به يې ويله چي خدای ﷻ د يعقوب ﷺ سره وعده كړې ده چي ستا اولاد زه نه په عذابوم. نو خدای ﷻ ددوی په رد كي وايي چي تېر ايستلي او غولولي وه په دين كي هغه شي چي دوی به پر خدای ﷻ درواغ ويله.

# فَكَيْفَ إِذَا جَمَعْنَٰهُمْ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيهِ وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٢٥﴾

نو به څرنگه وي حال ددغو يهوديانو، او څه به كوي دغه يهوديان چي موږ



Scanned by CamScanner

دوئ سره راغونډ کړو لپاره د جزاء د ورځي يعني يوم القيامة چي په هغې ورځي کي هيڅ شک نسته، او پوره به ورکړه سي وهر سړي ته جزاء د ماکسبت ان خيراً فخر وان شراً فشر، وفي الحديث قال رسول الله ﷺ ليس على اهل لا الـه الا الله وحشة عند الـموت ولا في قبورهم ولا في حشرهم كاني باهـل لا الـه الا الله الا ينفضـون التراب عن رؤسهم وهم يقولون الحمدلله الذي اذهب عنا الحزن.

**زباړه:** عليه الصلوة والسلام وويل نسته پر اهل د لا اله الا الله.

**پوه سه:** چي مراد لـه لا الـه الا الله څخه مؤمنان دي چي له شرک او بدعت څخه خلاص وي، نسته وحشت يعني وار خطايي نه په وخت کي د مرګ او نه په قبر کي او نه په ورځ د حشر له قبرو څخه، عليـه الصلوة والسلام زياته کړه لکه زه چي دوئ تـه ګورم چي خاوري د قبرو لـه سرو څخه څنډي او دا وايي "الحمدلله الذي اذهب عنا الحزن" حمد دی خدای ﷻ لره ي له موږ څخه يې غم لېري کړی.

**فائده:** پر مسلمان لازم ده چي د خدای ﷻ حمد و وايي پر دې نعمت چي زه يې مؤمن ګرځولی يم او له امت شريفه محمديه څخه يې هم ګرځولی يم، نو څکه بعض علماء وايي له علاماتو څخه د سوء العاقبة داده چي سړی شکر د ايمان او اسلام نه وايي.

**فائده:** امام همام ابو حامد محمد الغزالي رحمه الله په منهاج العابدين کي وايي چي د توبې مقدمې درې دي يعني چي دغه درې خويه په سړي کي هغه تائب حقيقةً دی، الذي ورد في شانه في الحديث النبوي ﷺ التائب من الذنب كمن لا ذنب له"

(۱) اول په زړه کي ور ګرځول دي غايت قبح د ګناه (۲) دوهم ور پياد ول غاية عذاب د خدای ﷻ او سخت غضب پر عاصيانو (۳) خپل ضعف ته نظر کول دي او فکر پکښي وهل يعني چي د دوبې د لمر طاقت نه لرم، او د پوليسو د شلاخي طاقت نه لرم، او د مېږي د په غښوولو طاقت نه لرم، نو به زه څرنګه طاقت ولرم د ګرمي د اور د جنهم، او څرنګه به طاقت ولرم د زبانيه دوزخ د



Scanned by CamScanner

شلاخو، او څرنګه به طاقت ولرم د تبښن د مارانو د دوږخ چي لکه غاړي د اوښانو دي، نعوذ بالله من سخطته وعذابه.

**فائده:** في شان نزل الآية الآتية. ابن عباس او انس بن مالک وايي چي څه وخت چي عليه الصلوة والسلام فتح د مکې مکرمې وکړه، نو له امت سره يې وعده د فتح فارس او روم وکړه، يعني چي دوه مشر قوتونه به هم زما د امت په لاس فتح کيږي، وکان ذالک بوحي من الله، نو منافقان او نور يهوديانو به له پسخنده ويل هيهات هيهات ډېره لېري ده ډېره لېري ده چي دده امت به فارس او روم فتح کوي، ولي هغه ډېر غټ قوتونه دي داسي نه دي لکه اهل مکه چي بې وسه او بې قدرته قوم و او ده فتح کړی. او دا به يې هم ويله الم يکف محمداً المکة والمدينة حتی چي اوس يې طمع د فتح فارس او روم ته هم خواهش وسو فنزلت الآية "قل اللهم" الآية. او بيضاوي داسي شان نزول ذکر کړی دی چي عليه الصلوة والسلام چي په غزاء کي د احزاب د خندق د کيندلو امر وکړی، او هرو لسو کسانو ته يې د څلوېښت (۴۰) ګزه خندق د کيندلو امر وکړی، نو اصحابو کرامو په خندق کي کار کاوه چي ناګاه د خندق په منځ کي يوه ډېره غټه ګاره پيدا سوه چي ماتول د هغې ګاري د کار کوونکو تر طاقت تېره سوه، نو دوی سلمان فارسي و عليه الصلوة والسلام ته چي ده مبارک په يوه بله حصه کي د خندق کار کاوه ور واستاوه چي موضوع د ګارې و عليه الصلوة والسلام ته بيان کړي، نو عليه الصلوة والسلام ورته ويل چي زه درځم ان شاء الله تعالی، نو عليه الصلوة والسلام چي راغلی او مارتول يې را واخستی "يعني هغه آله چي خلګو به ډبري په ماتولې" او هغه ګاره چي يې په ووهله نو يوه ټوټه يې خندي جلا کړه. او د ګارې له منځ څخه يوه تېزه رڼا را ووتله چي منځ يې د دوو شپلو د مدينې منورې روښانه کړی، او داسي رڼا يې وکړه لکه چي په تاريکه خونه کي څراغ ولګوې، نو عليه الصلوة والسلام الله اکبر ووايه او مسلمانانو هم ووايه، نو عليه الصلوة والسلام وويل چي ماته په دې رڼا کي وير پښبدې بنګلې د حيرت لکه د سپو غاښونه. او بيا

يې دوهم وار ووهله هغسي رڼا يې وكړه عليه الصلوة والسلام وويل چي په دې
برېښنا كي ماته وبرېښېدلې قصور د الحمر من الارض الروم، او بيا يې دريم
وار گاره ووهله بيا يې هم هغسې رڼا وكړه، عليه الصلوة والسلام ووېل ماته
وبرېښېدل قصور د صنعاء، او عليه الصلوة والسلام زياته كړه چي ماته
جبرائيل عليه السلام خبر راكړى چي دغه ټولـه ښاروته او ځايونه به يو وخت په قبضه
كي د اسلام راځي نو خوشحاله اوسئ، نو منافقانو به ويل چي عليه الصلوة
والسلام د خپلي بېرې له كبله پر ځان خندق راگرځوي او سره ددې چي پر ده
يو څو محدودي ډلې د كافرانو را جمع سوي دي، او دى وخلگو ته تمنا او
باطلې وعدې د فتح فارس او روم وركوي، فنزلت هذه الآية.

**درويش وايي**: چي دوهم شان نزول هم بيضاوي راوړى دى او هم روح البيان
او هم مظهري، او نور ډېر گڼ شمېر مفسرانو رح هم راوړى دى، لكن
مظهري رحمه الله اول شان نزول په روايت د بغوي رحمه الله چي دده د تفسير لوى ماخذ
دى ترجيح وركړې ده، ولې چي مظهري د هر آيت په تفسير كي يو وار بغوي
ذكر كوي له سر څخه دده د تفسير بيا تر پايه پوري راوړى دى.

**درويش وايي**: چي غزوه د خندق خو تر فتح د مكې مخكي وه فكيف يصح
الجمع بين الواقعتين، يعني غزوة الخندق وفتح مكه في شان نزول الآية
الواحدة اللهم الا ان يقال بتكرار نزول الآية الواحدة في الواقعتين، كما قالوا
في وجه تسمية سورة الفاتحة بالسبع المثاني على مذهب البعض.

قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَآءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ
مِمَّنْ تَشَآءُ وَتُعِزُّ مَنْ تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَآءُ بِيَدِكَ الْخَيْرُ
اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۲۶﴾

**ژباړه**: ووايه اې محمد ﷺ چي يا الله ته مالك يې د ملك د اسمانو او مځكو
او د مافيهما او ما عليهما، ته اې خدايه وركوې بادشاهي د يو مملكت يو چاته
چي ستا ورته اراده سي كه مسلمان وي او كه كافر وي، او ته اخلې بادشاهي له

هغه چا څخه اراده د نزع الملک ورته وسي، او ته عزت ورکوې هغه چاته چې ستا خوښه وي، او ته ذليل کوې هغه څوک چې ستا د ذلت ورته اراده سي، په لاس او تصرف کې ستا دى هر خير، او په تحقيق ته پر هر شي قادر يې.

**تفصيل**: اللهمّ ددې کلمې اصل په قول د بيضاوي او د روح البيان او د روح المعاني او د مظهري بلکې په اتفاق د اکثرو اهل التفسير واهل العربية يا الله و، نو حرف نداء يې حذف کړه، او په عوض کې يې ميم راوړى، او ميم يې مشدد کړى لکونه عوضاً من حرفي التعريف، نو چونکه ميم مشدد عوض دى د يا، نو جمع د دواړو جائز نه ده، يعنې يا اللهم، لامتناع الجمع بين العوض والمعوض عنه وهذا التعويض من خواص هذا الاسم الجليل، يعني داسې نه ده روا چې په عوض کې د يا رحمن رحمانم څوک ووايي، وهکذا اسمائه تعالى الآخر، لکه دخول د ياء النداء عليه مع حرف التعريف يعني يا الله، لانه قد تقرر عند النحاة بالاجماع، انه اذا نودي المعرف باللام قيل يا ايها الرجل او يا ايهذا الرجل لامتناع الجمع بين اداتي حرفي التعريف لان ياء النداء ايضاً للتعريف، بناءً على هذا لايجوز ان يقال يا الرحمن مثلاً، او داغه رنګه خاصه د اسم جليل ده په قطع د همزه ويل نحو يا الله او په نورو اسماؤ کې همزه په وصل کې حذف کېږي مثلاً يا الرحمن په قطع د همزه نه ويل کېږي بلکې همزه يې په وصل کې حذف کېږي، او داغه رنګه تاء القسم خاصه ده ددغه اسم جليل نحو تالله، او تا الرحمن نه ويل کېږي، او تولو مذکوره مفسرانو او نورو هم دا احتمال په قيل راوړى دى چې اصل د اللهم يا الله امنا بخير يعني اقصدنا بخير مخفف بحذف حرف النداء ومتعلقات الفعل سوى الميم المشددة في امنا وحذف منه الهمزة ايضاً فبقى اللهم، او هغه ملايان چې لفظ د امنا په مد د همزه وايي يعني آمنا او په تخفيف د ميم، بظنهم انه ماخوذ من الايمان فهو غلط صريح اذ لا معنا له ههنا کما لايخفى.

او هغه سوال چې پر دې تقدير خفاجي کړى دى، په شرح کې د بيضاوي هغه دا دى چې په امنا بخير وروسته به دعاء، څرنګه مربوطه سي نحو اللهم



Scanned by CamScanner

اغفرلي؟

**خواب**: اغفرلي بیان دی د امنا بخیر. ولي چي مغفرت د گناه بخښنه قصد د خدای ﷻ گناه کار ته په خیر سره.

**سوال**: په هغه حدیث صحیح کي چي روایت یې بخاري او مسلم کړی دی چي علیه الصلوة والسلام ورعل، ذکوان او عفیه قبیلو ته وکړی چي هغو اصحاب د علیه الصلوة والسلام په بیر معونة کي په شهادت رسولي وه، نو علیه الصلوة والسلام داسي ښرا ورته وکړه اللهم العن رعل وزکوان وعفیة آه څرنگه به په امنا بخیر پوري مربوط سي؟.

**ځواب**: لعن د اعداء الله هم بیان د قصد د خدای ﷻ دی ومسلمانانو ته د هغي زماني په خیر سره، ولي چي لعنت الهي پر دغو قبیلو سبب د ذلت د دغو قبیلو کېدای سي په دنیا کي.

"ملک الملک" بعض مفسرین وایي چي صفت دی د منادی مذکوري په اللهم کي، او بعض وایي نداء بعد النداء د حذف منه ایضاً حرف النداء تقدیره یا مالک الملک.

**پوه سه**: چي ملک مصدر دی د الملک، او مراد دلته معنا د مفعول ده واللام للاستغراق ای مالک جمیع المخلوقات من العلویات والسفلیات والملائکة والجن والانس لانه تعالی یتصرف فیها حسب مشیئته تعالی لا راد لحکمه تعالی ولایجوز ان یتصرف احد في ملکه تعلی الا باذنه تعالی "تعطي" آه یعني ته ورکوې سلطنت د یو مملکت هر چا ته چي ستا خوښه او ستا ورته اراده سي، او ته بیرته اخلي مملکت له هغه چا څخه اراده او مشیت د استرداد الملک ورته وسي لکه مثلاً فرعون او نمرود وغیرهما ته یې مملکت ورکړی و او بیرته یې جبراً خندي واخستی او دوئ یې د هلاکت وکندي ته په بد حالت وغورځول، کما هو المذکور في القرآن في قصصهم او دا قانون الهي روان دی په ملوک کي د دنیا الی یوم القیامة، او ته اي خدایه عزت ورکوې وهغه چاته چي ستا خوښه وي په دنیا کي فقط، او یا په آخرت



Scanned by CamScanner

کي فقط او یا په دواړو داړینو کي او دغه رنګه ذلت ورکوي وهغه چاته چي ستا خوښه وي، عزت د دنیا چي په نصرت سره دی پر دښمنانو او په عقبی کي په ثواب او جنت سره دی، او ذلت د دنیا په شکست سره او په ترک د نصرت دی، او ذلت د آخرت په عذاب او دوزخ سره دی "بیدک الخیر" ای بقدرتک الخیر کله فاللام للاستغراق.

**سوال:** خیر او شر خو ټوله له طرفه د خدایﷻ دي نو شر ولي نه سو ذکر؟

**ځواب:** بعض علماء وايي چي شر هم ورسره مراد دی لکن اکتفی في العبادة بذکر الخیر فهو من قبیل قوله تعالی وسرابیل تقیکم الحر ای الحر والبرد، او ښه تر ټولو دا ځواب دی سیاق په دې آیت په خیر کي دی، یعني چي خدای پاک وعده وکړه د نبي علیه الصلوة والسلام سره یعني د امت سره دده فتح د فارس او روم کما مر في شان نزول الآیة، او بعض علماء وايي چي شر یې نه کړی ذکر مراعاتاً للادب في خطابه تعالی، وما قال بعض المفسرین کالبیضاوي وذکره المظهریرح ایضاً ان المقضي بالذات هو الخیر والشر هو المقضي بالعرض فلاحاجة الی ذکر ما بالعرض بعد ذکر ما بالذات انتهی

**درویش وایي:** چي دا ځواب پر مذاق د حکماؤ دی چي دوی د شر له ارادې ځخه بالذات منکر دي فلایناسب ذکره في تفسیر القرآن العزیز کما لایخفی "انک علی کل شيئ قدیر" او ته پر هر شي قادر یې ولا یقدر احد غیرک علی شيئ اصلاً، یعني قدرت د خلق او ایجاد وقصاری حال العبادة القدرة الکاسبة دی، قال الله تعالی والله خلقکم وما تعملون.

**درویش وایي:** چي بیضاويرحمه الله پر خپل مخني ځواب پښېمانه دی، ولي چي ددې جملي په تفسیر کي داسي ویلي دي نبه بهذه الجملة علی ان الشر ایضاً بیده یعني بالذات، والله اعلم.

**فائده:** بعض اهل تجربه د علماء کرامو وايي چي که څوک په ذلت في الناس او یا فقر او مسکنت مبتلا وي، او د عزت او غنی خواهان وي نو دغه آیت دې خپل ورد وګرځوي، یعني د ماخستن تر لمانځه وروسته دې دري واره همېشه

وايي، يعني له قل اللهم څخه بيا تر انک علی کل شيئ قدير پوري، او دا آيت په دفع کي د دښمنانو او په سر کوبي کي د هغو ډېر موثر دی ان شاء الله. لکن خبر دار چي په ناجائزه ځای کي او د ناجائزه غرض لپاره يې استعمال نه کړئ.

## تُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ

ته داخلوې شپه په ورځ کي، يعني د شپې ساعات په ورځ کي داخل کړې، نو ورځي وږده سي او شپه لنډه سي، حتی چي په اول سرطان کي د معظم د معموري مځکي ورځ پنځلس ساعاته وګرځي او شپه نهه ساعاته وګرځي.

## وَتُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ

او ته داخلوې ورځ په شپه کي يعني ساعات د ورځي کموې شپه په اوږدوې حتی چي شپه د اول جدي نهه ساعته وګرځي او شپه يې پنځلس ساعته وي په معظم کي د معموري مځکي.

## وَتُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ

او ته اې خدايه راباسې ژوندي له مړي څخه، يعني له جماد شي څخه لکه حيوان له نطفي څخه، او مرغه له هګۍ څخه.

**پوه سه**: چي مراد له حي او ميت څخه يا معنا مجازي ده، لکه عالم له جاهل څخه او مؤمن له کافر څخه، او نباتات له وچي مځکي څخه.

## وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ

او ته راباسې مړي يعني جماد شيان له ژوندي شي څخه، لکه نطفه له حيوان څخه او هګۍ له چرګي څخه او جاهل له عالم څخه، او کافر له مسلمان څخه او تخمونه د نباتاتو له مځکي څخه.

## وَتَرْزُقُ مَنْ تَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿۲۷﴾

او ته رزق ورکوې هغه چاته چي خوښه دي سي بې حسابه.



Scanned by CamScanner

**يوه سه:** چي دا پنځه جملې ددې لپاره راوړه سوي دي په دې سره دليل وايي پر دې چې خداى ﷻ قادر دى چي قدرت او سلطنت دي له عجمو څخه واخلي لكه فارس او روم او عربو ته دې وركړي، نو منافقانو ته ولي عجيب معلومېږي او ولي د هيهات هيهات نعرې وهي، وجه د استدلال داده چي هغه ذات چي پر دغو امورو عظامو چي په دې پنځو جملو كي ذكر سوي دي چي عقول ورته حيران دي قادر دى چي خداى جلت قدرته دي هغه ذات پر اخذ د سلطنت له يو چا څخه اخستل او بل چاته وركول چي تر هغه پنځو كارو آسانه دي په طريقه اولى قادر دى.

**پوښتنه:** اوس ولي مسلمانان د كافرانو لخوا څخه مغلوب دي؟

**ځواب:** د مسلمانانو بدو عملونو مسلمانان پس مانده كړه او كفار يې عذاباً پر غالبه كړه، كما قال النبي ﷺ چي زما پر امت به داسي زمانه راسي چي اميران به يې ظالمان وي، او ملايان به يې طامعان وي او پيران به يې ريا كاران وي او تجاران به يې سود خواره وي، كه صريح سود نه كوي لكن بيوع رائيول او خرڅول به يې ټوله فاسد وي، او په فقه شريفه كي وايي چي هره بيع فاسد سود دى، او ښځي به د زينت شوقياني وي.

**درويش وايي:** چي په كوم اسلامي ملك كي دا پنځه خويه نسته سره د نورو بدو كارنو، نو خود به مسلمانان هر ځاى مغلوبه او د كافرانو تر لاس به لاندي وي يا بالذات يا بالواسطه، په اوسني زمانې كي كوم اسلامي مملكت دى چي ازاد مطلق دي وي د هر كافر مملكت د چنبې څخه، لهذا قال عليه الصلوة والسلام كما تكونون يولي عليكم" څرنګه چي تاسي ياست داغه رنګه به مو والي وي، والمعنى كه تاسي اهل طاعت ياست اولو الامر به ستاسي اهل رحمت وي، او كه تاسي اهل معصيت ياست ولاة الامر به مو اهل عقوبت وي.

**فائده:** له حضرت علي كرم الله وجهه څخه روايت دى چي عليه الصلوة والسلام وويل چي سورة فاتحة الكتاب او آية الكرسي او دوه آيته د آل عمران "شهد الله انه لا اله الاهو" الى قوله "ان الدين عند الاسلام" وقل اللهم ييا تر

دي قوله یوري بغیر حساب "مشفعات" یعني شفاعت کونکي دي، او نسته د دوئ او د خدای ﷻ تر منځ حجاب، نو دې کلماتو خدای ﷻ ته وویل چي موږ استوې مځکې ته په قرآن عظیم الشان کي چي هغه په مځکه کي دی درج کوي مو، او هغه چاته مو هم ور استوې چي هغه به ستا عصیان کوي، نو خدای پاک ودوئ ته وویل چي ما پخپل ذات قسم کړی دی چي ستاسي قرآئت به نه کوي احد من المسلمین وروسته تر هر لمانځه مګر نه زه ګرځوم جنت ځای د هغه علی ما کان فیه یعني عملونه د بدو چي په هغه کي وي، او مګر زه اوسوم دي په خطیرة القدس کي والا نظرت الیه کل یوم سبعین مرةً وقضیت له کل یوم سبعین حاجةً ادناها المغفرة والا اعذته من کل عدو و حاسد ونصرته علیه.

**پوه سه:** چي راوي ددې حدیث بغوي دی په قول د مظهري رح او روح البیان او تفسیر کبیر یې هم روایت کړی دی.

**درویش وایي:** چي حاصل د کلام دادی چي قاري د فاتحة الکتاب چي خواصي او عدد یې درویش په شرح کي د قدوري چي په پښتو ژبه ده په اکمله وجه ذکر کړي دي، او داغه رنګه د آیة الکرسي خواصي په تفسیر کي او د قدوري په شرح کي بیان کړي دي، او د دوو آیتو د آل عمران چي ذکر سوه سره د آیة الکرسي او فاتحة الکتاب تاسو په دې حدیث شریف کي واوریدل، نو دا ټوله ویل تر څلورو پنځو دقیقو بالا وخت نه غواړي، نو که یې سړی د همېشه لپاره تر هر لمانځه وروسته خپل ورد لازم وګرځوي ، نو دا ټوله ویل تر څلورو پنځو دقیقو بالا وخت نه غواړي، نو که یې سړئ د همېشه لپاره تر هر لمانځه وروسته خپل ورد لازم وګرځوي نو په ارزي او که نه.

**پوه سه:** چي په اخبارو کي داسي راغلي دي چي بعض د انصارو رض د بعض یهودیانو سره په جاهلیت کي معاهده درلوده، او وروسته تر اسلام هغو انصارو د هغو یهودیانو سره ناسته ولاړه کول او یهودیان په دې کوشش کي وه چي دغه خپل حلیف انصار له اسلامه څخه ویهودیت ته راغب کړي، او



Scanned by CamScanner

همېشه به يې داسي خبري ضمناً ورته کولې چي د اسلام ضد به وې، نورو قريبانو د انصارو به هغو انصارو ته چي د يهوديانو حليفان وه وويل چي تاسو د دغو يهودو سره شناخت او قرابت حلفي قطع کړئ، او هغو حليفانو د خپلو قريبانو په خوله نه کول، نو دا آيت نازل سو.

# لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ

نه دي گرځوي مؤمنان کافران خپل اولياء او دوستان، که په سبب د قرابت نسبي وي او که په سبب د جاهليت د وخت د اشنايي او حلف وي، او که په سبب د همسايه توب وي الی غير ذالک من اسباب الولايت والمحبة، يعني د مسلمانانو محبت او بغض د چا سره بايد لپاره د خدای ﷻ وي چي د دوست سره د خدای ﷻ چي نور مسلمانان دي شناخت او دوستي کوي، او د دښمنانو سره د خدای ﷻ چي ټول کافران دي بغض او عداوت ولري، وهذا معنی قوله عليه الصلوة والسلام الحب في الله والبغض في الله من الايمان.

**بوه سه:** چي "من دون المؤمنين" په اعتبار د متعلق محذوف حال دی له مؤمنون څخه ای متجاوزين من المؤمنين الی الکافرين في الصداقة والولاية والمحبة.

**فائده:** د دوو کسانو چي سره عداوت وي دريم سړی چي د دوارو دښمنانو د دوستي دعوه کوي دا اجتماع المتنافين ده چي عقلاً محاله ده، نو څرنگه چي هر نوع کافر د خدای ﷻ دښمن دی، نو مسلمان چي د خدای ﷻ دوست خان بولي څرنگه د دوارو د محبت دعوه کولای سي، نو د کفارو سره محبت کول قبح ذاتي لري چي د خدای ﷻ له دښمنه سره يې محبت دی او بله قبح عارضي لري چي د نورو مسلمانانو سره يې محبت قطع کوي.

**درويش وايي:** چي په تجربه ثابته ده چي څوک چي خانونه د امريکايانو مثلاً دوستان بولي او د هغو سره محبت او نشست وبرخاست لري، او د هغو د ښووني پر لار روان وي، نو ددغو مسلمانانو د هغو مسلمانانو سره چي د

امریکایي قوانینو ضد وي بد ښندي کېږي او بغض قلبي ورسره لري، وهکذا المحبة النوع الآخر من الکافرین کالیهود والنصاری والمشرکین والروسیین.

**پوه سه**: چي بغوي وايي چي مقاتل وايي چي دا آیت په شان کي د حاطب بن ابي بلتعه‌ﷺ نازل سوی دی چي هغه وکفارو ته د مکې یو خط استولی و چي په هغه خط کي بعض احوال د علیه الصلوة والسلام او اراده د جنګ د علیه الصلوة والسلام یې ودوی ته کشف کړې وه، نو هغه خط چي د یوې ښځي په لاس یې ورکړی و، او هغه خط خدایﷻ و علیه الصلوة والسلام ته کشف کړی، او هغه خط علیه الصلوة والسلام په استولو سره د علي، او مقداد وغیرهماﷺ د هغې ښځي څخه ونیوی او حاطب یې را وغوښتی او ورته وه یې ویل چي ما هذا یا حاطب او هغه خپل عذر ورته بیان کړی، او علیه الصلوة والسلام هغه عذر ومنی چي تفصیل به یې په یو مناسب ځای کي ددې تفسیر راسي ان شاء الله تعالی.

او کلبيرحمه الله له ابي صالحرحمه الله څخه روایت کړی دی چي دا آیت په شان کي د منافقینو نازل سوی دی یعني عبدالله بن ابي واصحابه وه چي هغو به تولي او محبت له مشرکینو سره د مکې کاوه او د یهودیانو سره د مدینې به یې کاوه، او احوال د علیه الصلوة والسلام او د اصحابوﷺ به یې ودوی ته رسول، او ددوی دا امید و چي په دې ذریعه به موږ پر علیه الصلوة والسلام او پر مسلمانانو غالب سو نو خدایﷻ مسلمانان له ورته کارنامو څخه د منافقینو نهي کړه.

**درویش وايي**: چي دا آیت د شان نزول د سیاق سره د آیت ډېر مناسب دی والله اعلم بالصواب.

**فائده**: پوه سه چي محبت کول او بغض کول تر منځ د خلګو لپاره د خدایﷻ د اسلام د دین یو ګټور عمل دی، له ابن مسعودﷺ څخه روایت دی ده وویل چي علیه الصلوة والسلام وویل "المرء مع من احب" یعني سړی به د آخرت په ورځ د هغه چا ملګری وي چي ده په دنیا کي د هغه سره محبت کاوه، رواه البخاري ومسلم، او له ابي موسی اشعريﷺ څخه روایت دی چي علیه الصلوة

والسلام ووېل مثال د صالح انډيوال او د بد انډيوال لکه له يو چا څخه چې
مشک ور سره وي، او يا د پښ بټۍ وهي، نو حامل المسک به يا تاته يو څه
مفت درکړي او يا به يې ته په بيع خندي رانسي، او که نور نه وي په يوه ګړۍ
ناسته سره د حامل المسک به تاته خوشبويي د مشکو ورسيږي. او نافخ
الکير يعني پښ چې بټۍ وهي ـ به ستا کالي در سوځي او يا به يې د دوکان
بد بويي ستا تر سږمو سي، بخاري مسلم. او له ابو ذر ﷺ څخه روايت دی چې
عليه الصلوة والسلام ووېل "احب الاعمال الحب في الله والبغض في الله" رواه
احمد، وابو داؤد، او نور هم ګڼ شمېر احاديث په دې باب کې موجود دي.

وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللَّهِ فِي شَيْءٍ

او که څوک دغه کار وکړي يعنې اعداء د خدای ﷻ دوستان خپل وګرځوي.
نو نه دي دغه من يفعل په هيڅ شي د دوستۍ د خدای ﷻ

**پوه سه:** چې "من الله" حال دی له "شيئ" څخه قدم عليه لتنکر ذی الحال کما
هو القانون النحوي او "في شيئ" خبر د "ليس" دی او تنوين د شيئ لپاره د
تحقير دی، يعني ليس هو کائنان في شيئ حقير من ولاية الله يعني کما ان
ولاية الکفار لايجتمع ولاية المؤمنين کذا لايجتمع ولاية الله تعالی ايضا کذا
قال المظهري رحمه الله

إِلَّا أَن تَتَّقُوا مِنْهُمْ تُقَاةً ۗ وَيُحَذِّرُكُمُ اللَّهُ نَفْسَهُ ۗ وَإِلَى اللَّهِ الْمَصِيرُ ﴿٢٨﴾

مګر نه هغه موالات قولي او ظاهري ورسره کوه د کافرانو سره، يعنې يو څو
کسه مسلمانان په ملک کې د کفارو اوسيږي او که دوی معادات ظاهري
وکفارو ته ښکاره کړي، نو د هغو له شر څخه بېرېږي، نو دوی ته روا دی چې
په ځای کې د معادات ظاهري دې موالات ظاهري ورسره کوي وقلوبهم مملوة
بالمعادات معهم، او تاسي خدای ﷻ بېروي له خپل غضب او عذاب څخه.

**پوه سه:** چې په راوړلو کې د نفس وعيد عظيم دی دغو کسانو لره چې
موالات له کفارو سره کوي، بېله عذر له خوف، ولې هغه عذاب چې قادر

متعال وخان ته منسوب کړي معلومه ده چې هغه به سخت عذاب وي، او خدای ﷻ ته ده ستاسي رجوع یعنې په ورځ کې د قیامت.

**پوه سه:** چې ملا عصام الدین رحمه الله په حاشیه کې د بیضاوي وایي الا ان تتقوا آه استثناء مفرغ ده او منصوب علی الظرفیة ده، او دا استثناء په دواړو مخنیو جملو پورې مربوط ده معناً او په یوې پورې مربوط ده لفظاً او په هغه بله جمله کې مقدره ده کما هو شان التنازع المذکور في النحو ودفع ذالک التنازع. والمعنی لایجوز موالات الکفار في شیئ من الاوقات الا وقت ان تتقوا منهم، ونقل مفصل بیان عصام الدین المظهري رحمه الله.

**فائده:** تقاة" مفعول مطلق دی د تتقوا من غیر لفظه.

**مسئله:** د کفارو له بیرې د مسلمان ناحقه وینه تویول نه دی رواه، او د کافرانو د بیرې له سببه څوک حرام مال د چا نسي خوړلای او کافرانو ته د مسلمانانو جاسوسي نه ده روا.

**قُلْ إِنْ تُخْفُوا مَا فِي صُدُورِكُمْ أَوْ تُبْدُوهُ يَعْلَمْهُ اللَّهُ وَيَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٢٩﴾**

او ته ووایه یا محمد ﷺ خلګو ته چې دلته په قرینه د سیاق مراد خندي مسلمانان دي که تاسي پټ کړئ هغه څه چې ستاسو په زړونو کې دي من محبة الکفار قلباً وغیرها من المعاصي، او یا یې ښکاره کړئ یا په قول او یا په فعل سره خدای ﷻ په دواړو خبر دی، او خدای ﷻ خبر دی په هغو شیانو چې په آسمانو کې دي کالملائکة والکواکب البیت المعمور وبیت العزة وغیرها من لا یعلم تفاصیلها الا هو.

**فائده:** واو په "ویعلم" کې استینافي دی او دا جمله مستانفه ده، او عطف یې پر جزاء د شرط نه دی صحیح لعدم الربط والسببیة اللازمة بین الشرط والجزاء اذ یکون التقدیر هکذا قل ان تخفوه آه ویعلم ما في السموات آه.

**پوه سه:** چې تخصیص د سموات اوارض یې له دې سببه وکړی چې ظاهري

نظر د عوامو پر اسمانو او مځکو منحصر دی، ورنه خدای ﷻ په هر موجود خبر دی من اجزاء کرة الماء، ومافيها من الحيطان والجواهرات واللؤلؤ، وما في الجو بين السماء والارض الى غير ذالک لان الله خالق کل شیئ وان کان ذرة وخلق شيئ بالاختيا والارادة يستلزم العلم، وهذه الجملة يعني قل ان تخفوه الآية كانهما بيان السبب للجملة السابقة اى ويحذركم الله الآية. والحاصل ان العبد ينبغي ان لا يتجاسر على من له العلم الشامل للظاهر والخفي والقدرة الباهرة على كل ذرة من ذرات العالم بان يعصيه ويتجاوز حدوده. په حديث شريف کې راغلي دي عليه الصلوة والسلام ويلي دي چې څلور شيه له کبيره ګنهو څخه دي يو د وړيو کالي اغوستل دي يعني څيره او بې کاره کالي لپاره د طلب د دنيا، يعني چې يا د خلګو د بزرګ ګمان راباندي راسي او يا د ډېر مسکين، نوبه روپۍ راکوي لکه په مياشت کې د روژې چې يې بعض سوال او فقر عادته ملايان يا عوام کوي، او بل دا چې سړی دعوه د محبت د صالحانو کوي او د هغو پر لار نه ځي، او بل دا چې د اغنياؤ ذم کوي او پټسې خندي غواړي.

**درویش وايي**: چې ما د بعضو ملايانو څخه اورېدلي دي چې وايي د فلاني غني يوه ګوله ډوډۍ او يو درهم حلال نه دی او بيا هم شپه او ورځ يې پر سترخوان ناست وي او دراهم خندي غواړي، او بل دا چې سړی وايي چې کسب هيڅ شی نه دی او خوراک د اهل کسب له مال څخه کوي، سعدي رحمه الله

| | |
|---|---|
| گر آنها كه ميگفتمي كردمي | نيكو سيرت وپارسا بوده مي |

**فائده**: درويش وايي چې صحبت او محبت ډېر تاثير لري كما قيل

| | |
|---|---|
| عن المرء لاتسئل وانظر قرينه | فكل قرين بالمقارن يقتدى |
| قال علي رضي الله عنه فلا تصاحب اخا الجهل | واياک واياه فكم من جاهل اردي |
| حليماً حين اخاه | قاس المرء بالمرء اذا ما هو شاه |
| وللقلب على القلب | ليل حين يلقاه |

**مسئله**: كه يو سړی په سفر د حج روان و او يا غزاء ته يو فاسق ورسره ملګری



Scanned by CamScanner

سو. نو د فاسق په سبب خو به غزاء او حج نه پرېږدي، لکن په زړه کي به يې له هغه فاسقه او د هغه له عمله بد وړخي. لکن جنګ وجدال دي هم نه ورسره کوي، ولې چې نه بايد وسفر ته د طاعت نقصان پېښ نه سي، او شايد ددغه صابر د صبر په برکت به هغه فاسق توبه وکاږي.

**حکايت**: په تاريخ کي راغلي دي چي دوه ډېر بزرګواره کسان چي يو د حاتم اصم په نامه ياد ېدی او بل شقيق بلخي نومېدی، په سفر د حج يا د عمرې روان وه، چي يو سپين ږيری فاسق ورسره ملګری سو چي په دې سفر کي به يې غزلي هم ويلې رباب به يې هم واهه. او په عين حال کي شيخ فاسق د شقيق او د حاتم نومان هم اورېدلي وه لکن پېژندل يې نه، خو دې شيخ فاسق د شقيق او حاتم حال ډېر ور دريغ کړی لکن حاتم له ادبه ږغ نه کاوه چي ګوندي شقيق به دا فاسق منع کړي، خو شقيق سره ددې چي په زړه کي ډېر له شيخ فاسق څخه تنګ و لکن په خوله يې نه منع کاوه لئلا ينجر الى النزاع في هذا السفر المبارک. نو څه وخت چي شيخ فاسق له دوئ څخه په لار کي جلا کېدی، نو شيخ فاسق و حاتم او شقيق ته وويل چي تاسي دوه له شريعت څخه ډېر لېري ملايان ياست، ولې چي ما ګرده لار وتاسي ته رباب واهه او غزلي مي ويلې تاسي ماته نصيحت ونه کړی او زه مو له دې بد فعل څخه منع نه کړم. نو حاتم ورته وويل چي موږ په مراعات د سفر د انډيوالی کله څه هم ستا له رباب او غزلو څخه ډېر تنګ وو ږغ مو نه درته کاوه، او ورته وه يې ويله چي زه حاتم يم او دا بل ملګری مي شقيق بلخي دی، نو شيخ فاسق رباب مات کړی او توبه يې وکښل، او بيرته ددوئ سره ملګری سو او ددوئ خدمت به يې کاوه، نو شقيق وحاتم ته وويل چي ودي ليدل نتيجه د صبر چي موږ وکړی

**بيت**

نه آنکه بر در دعوی نشيند از خلقي — که گر خلاف کنندش بجنگ برخيزد

وگر زکوه فرو غلطد آسيا سنگي — نه عارفست که از سنگي برخيزد



Scanned by CamScanner

يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ مُّحْضَرًا ۖ وَمَا عَمِلَتْ مِن سُوءٍ تَوَدُّ لَوْ أَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهُ أَمَدًا بَعِيدًا ۗ

**پوه سه:** چې لفظ د "یوم" منصوب دی او ظرف مقدم د "تود" دی او لفظ د "ما" دواړه ځایه موصوله شرطیه نه دی، ولې چې ټوله قاریان "تود" په رفع سره وایي، نو که ما شرطیه نو که ما شرطیه وای نو باید چې قاریانو په جزم ویلی وای، ولې چې په قرار د قانون نحوي رفع او جزم دواړه روا دي چې شرط ماضي لکه دلته.

**پوه سه:** چې موصول سره د صلې مفعول د "تجد" دی، ولې تجد دلته په معنا د تصیب دی چې یو مفعول غواړي.

**ژباړه:** هغه ورځ یعنې چې ورځ د قیامت ده چې پیدا کړي هر نفس له نفوسو مکلفه وو ښخه هغه شی چې ده عمل کړی د خیر له کارو ښخه یعنې فرائض واجبات الی غیر ذالک حاضر کړه سوي په امر د خدای ﷻ یعنې په عمل نامو کي، او هغه کارونه چې ده عمل کړي وي د بدو کارو یعنې که کبیره گنهونه وي او که صغیره وي، یعنې دا بد کارونه به هم حاضر کړه سي د عمل نامو په ذریعه لکن د کارو سره یې احضار نه کړي ذکر. له دې سببه چې مقصود احضار الخیر دی، او احضار الشر بناءً پر حکمت الهي دی، نو به دغه "کل نفس" خوښ لري داچې کاشکې په منځ کي د نفس او په منځ کي د دې ورځې له خوف او بېرې او یا د نفس او عمل سوء تر منځ امد وای یعنې مسافت وای کبېرې کما بین المشرق والمغرب مثلاً.

**فائده:** مراد له "کل نفس" ښخه هغه کسان دي چې ښه او بد عملونه یې دواړه کړي وي، یعنې مؤمن خو وي، او هر چې هغه کسان دي چې عمل سوء هر گز نه لري او ټوله اعمال یې صالح وي کالانبیاء علهیم السلام، او یا ماسوی له ایمانه بل عمل صالح اصلاً نه لري ددغو کسانو بالمقایسة علی حال اولئک خلطوا عملاً صالحاً وآخر سیئاً معلومېږي، اما الاول فلانهم لا یودون ان بینها

وبينه امداً بعيداً، واما الفريق الثاني فلانهم يودون لو ان آه بطريق الاولى.

**تنبيه**: هغه كسان چي په عمل نامو كي بي خير او شر دواړه وي. دا بي خوښه وي چي خداى ﷻ مي په خپل رحمت عامه سره ټوله سيئات محوه كړي او را وه بي بخښي، او بوازي عمل نامه د حسناتو په لاس راكړي او يا كه هغسي نه وي نو حساب به په پټه را سره وكړي، او اهل محشر ته مي رسوا نه كړي.

**يوه سه**: چي بخاري او مسلم له ابن عمر ﷺ څخه روايت كړى دى، قال قال رسول الله ﷺ يدني المؤمن" خداى ﷻ نژدې كوي يعني په ورځ كي د قيامت مؤمن يعني بعض مؤمنان فيضع عليه كنفه ويستره" او خداى ﷻ پر هغه كښېږدي خپل بغل يعني حجاب النور او پټ يې كړي له خلگو څخه، او خداى ﷻ ورته وايي چي په ياد دي ده هغه فلانى گناه يعني چي تا كړې ده په دنيا كي "اتعرف ذنب كذا" به هر وار ورته ووايي نعم يا رب حتى چي بنده به په ټولو گنهو اقرار وكړي، او دى به پخپل زړه كي وايي چي هلاک سوې، يعني اوس به نو خداى ﷻ راته ووايه چي ولاړ سه ودوږخ ته، لكن خداى ﷻ به ورته ووايي سترتها عليک في الدنيا وانا اغفرها لک اليوم فيعطى كتاب حسناته، خداى ﷻ به ورته وايي چي ما ستا دغه گنهونه در پټ كړي دي يعني له خلگو څخه او نن زه ستا دغه ټوله گنهونه دربخښم يعني په دې ورځ د قيامت دي هم نه رسوا كوم، نو عمل نامه فقط د نېكو په لاس وركړي الى اخير الحديث، اللهم اجعل عبدک الذليل العاصي بانواع المعاصي من جملة هؤلاء المؤمنين برحمتک يا ارحم الراحمين وبحرمة الشهر المبارک رمضان الذي وصلت فيه الى تحرير هذا المقام.

وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ ۗ وَاللّٰهُ رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ ۝٣٠

او تاسي ببروي خداى ﷻ له خپله ځانه څخه، او خداى ﷻ مهربان دى پر بندگانو.

**پوښتنه**: دا آیت خو د مخه هم تېر سو عنقریب، نو بیا ذکر کول به یې تکرار نه وي؟

**ځواب**: په د مخه آیت کي بېږول د مسلمانانو له دوستي او محبت څخه د کافرانو کما مر تفصیله او په دې آیت کي بېږول دي د مسلمانانو له ترک څخه د فرائضو او واجباتو او له کولو څخه د محرماتو او معاصي وو فلا تکرار، روح البیان وایي ای یقول الله احذورا من سختي وهو تکریر لما سبق لئلا یغظون عنه آه.

**درویش وایي**: چي تاسیس کما في التوجیه السابق خیر دی تر تکریر کما تقرر عندهم خصوصاً في الموضع القریب کما ههنا.

**پوه سه**: چي مراد له عباداتو څخه مؤمنین دي لان الخطاب معهم من سیاق الکلام

**پوه سه**: بعض محدثینو له حسن بصري رحمه الله څخه روایت کړی دی چي بعضي خلګو په زمانه کي د نبي ﷺ وته ویله والله انا لنحب ربنا فانزل الله تعالی "قل انکنتم تحبون الله فاتبعوني" الآیة، او ابن اسحاق صاحب المنازي او نور کښ شمېر محدثین وایي چي دا آیت په وفد کي د نجران نازل سوی دی، چي دوئ به ویل انما نعبد عیسی حباً لله، او محي السنة بغوي رحمه الله وایي چي دا آیت په یهودو او نصاری وو کي نازل سوی دی، حیث قالوا نحن ابناء الله واحبائه، او له عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي علیه الصلوة والسلام په مکه مکرمه کي و قریشو ته ودرېدی او هغو خپل بتان درولي وه او په غاړو یې د شتر مرغ هګۍ ور ځړولې وې، او په غوږو کي یې غوږ والي ور ځړولي وه او سجدې یې ورته کولې، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل یا معشر قریش والله لقد خالفتم ملة ابیکم ابراهیم واسماعیل، فقال قریش انما نعبدهم حباً لله لیقربونا الی الله زلفی فقال الله تعالی:

**قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي**

ته و قریشو ته ووایي چي که تاسي محبت د خدای جل جلاله لرئ نو زما متابعت

وکړئ یعنې په توحید کې د خدای ﷻ او په ترک کې د عبادت د بتانو.

**یوه سه**: چې د حب لفظ په ضمه د حا او کسره د حا وکذا الحباب بالضم والکسر، وکذا المحبة تَوله مصادر دي من احبه یحبه فهو محبوب علی غیر قیاس لان احب من باب الافعال والمحبوب من المجرد والقیاس مُحَب بفتح الحاء للمفعول لکنه قلیل في الاستعمال. په هر حال محبت تعلق دی د زړه د محب په محبوب پورې او الفت دی د محبوب سره په داسې ډول چې محب منع کړي له التفات څخه وغیر ته د محبوب، او که دا حالت داسې حال ته ورسېږي چې دوام یې پیدا کړي بیا یې نو عشق بولي، قال اهل العشق العشق نار في القلوب یتحرق ماسوی المحبوب فیجعل غیر المحبوب نسیاً منسیاً.

**درویش وایي**: چې دا محبت او عشق ګاهې مجازي وي لکه عشق د مجنون له لیلي سره او عشق د فرهاد له شرینې سره الی غیر ذالک، او ګاهې حقیقي وي لکه محبت د اولیاء الله الکرام رح د خدای ﷻ سره، او دا محبت او عشق ګاهې داسې وي چې سړی اولاً سلوک په لار د عباداتو او اربعیناتو شروع کړي په اخیر کې جذبه او عشق الهي پیدا سي دا لار څه اوږده ده لکن تر پایه پورې د شریعت مطهره سره سمون لري. او ګاهې جذبه او عشق تر سلوک دمخه پیدا سي او اصل عریان اول نصیب د سالک وګرځي او ورسته بیا سلوک پیدا کېږي، او دا لار که څه هم و اصول الی الله ته لنډه ده لکن ګاهې په دې لار کې خلاف الشریعة الغراء قول یا فعل پیدا کېږي کما قال المنصور انا الحق. او بل ددغې لارې سړی په خطاب کې وخدای ﷻ ته وایي. خود زدي بانگ انا الحق بر سردار آمدي، وغیر ذالک من ترهاتهم.

**درویش وایي**: چې دا تَوله خو بیان د محبت د بنده و له خدای ﷻ سره، او محبت د خدای ﷻ له بنده سره چونکه خدای ﷻ لره قلب نسته، او داسې هم نه دی چې خدای ﷻ محبت د یوه بنده د بل بنده له محبت څخه منع کړي لانه تعالی لایشغله شان عن شان یعنې لکه بندګان چې دیوه چا عشق او محبت د بل د عشق او محبت څخه منع کاوه، نو د خدای ﷻ د محبت معنا داده چې

خدای ﷻ بنده وخپل خان ته جذب کړي او غیر ته یې پرې نه ږدي، نو محبت الهي د بنده سره دمخه دی تر محبت د بنده د خدای ﷻ سره لکه په دې آیت کې چې دی "یحبهم ویحبونه" چې خدای ﷻ خپل محبت دمخه ذکر کړی تر محبت د بندګانو

**فائده**: پر حب د بنده له خدای ﷻ سره دا فائده مرتبیږي چې بنده به اطاعت د خدای ﷻ کوي په اداء کې د اوامرو الهیه وو او په ترک د معاصیو او د حب الله د بنده سره نتیجه داده چې خدای ﷻ به توفیق د عباداتو ورکوي او حسن ثواب به ورکوي او عفوه د سیئاتو به ورته کوي

**بوه سه**: چې کلمه د "فاء" په "فاتبعوني" کې لپاره د سببیت ده یعني زما متابعت سبب د محبت د خدای ﷻ ګرځي، ولې چې محبت د خدای ﷻ خو په کولو کې د مرضیاتو الهیه وو دی او مرضیات الهیه خو په عقل سره نه معلومیږي بلکه په وساطت د تعلیم الهي و علیه الصلوة والسلام ته. نو ځکه متابعت د علیه الصلوة والسلام مشروط دی په محبت الهي کې، نو چونکه په انتفاء د شرط مشروط نیستي کیږي، نو که متابعت د علیه الصلوة والسلام نه وي نو مدعي د محب د خدای ﷻ کذاب دی، هذا کلمة ماخوذ من البیضاوي والمظهري والبغوي والخفاجي واحیاء الغزالي وزاد علیه العاصي رحمهم الله

**پوښتنه**: په "فاتبعوني" کې کلمه د "یا" ولې باقي ده؟

**ځواب**: په اصل کې خو یا پکښې موجوده وه.

**سوال**: په "فاتقون" او "اطیعون" کې خو هم په اصل کې یا وه، نو بیا ولې ساقطه کړه؟

**ځواب**: هغه دوه لفظه خو په اخیر کې د آیت وه نو په سبب د د وقف یې یا پرېښوله

**يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ۗ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ**

**بوه سه**: یحببکم" مجزوم دی جواب د امر دی یعني "فاتبعوني" والمعنی که تاسې زما متابعت وکړئ، نو خدای ﷻ به ستاسې سره محبت وکړي او

بخښنه به وکړي تاسي ته له ګناهو ستاسي، او خدای ﷻ بخښنده د ګناهو د بندګانو دی او مهربانه دی

**درویش وایي**: والله در البیضاوي رحمه الله حیث فسر هذه الآیة بما یناسب اذهان المبتدیین والمتوسطین والمنتهیین، حیث قال ای یرض عنکم ویکشف الحجب ای حجب الشکوک والشبهات عن قلوبکم بالتجاوز عما فرط منکم ای النقصان الواقع منکم في طاعت الله واتباع رسوله ﷺ فیقربکم من خباب عزه ویبوئکم في جوار قدسه ای دار المقربین، ثم دفع البیضاوي التوهم الوارد ههنا بان المحبة هي میل النفس والقلب الی شيئ ولا یتصور ذالک في شانه تعالی بقوله "وعبر عن ذالک بالمحبة علی طریق الاستعارة والمقابلة ای المشاکلة انتهی کلامه، واما امام المظهري رحمه الله فاورد هـ سؤال الدور ثم دفعه بجواب لایناسبان حال المبتدیین بل المتوسطین فلهذا اعرضنا عن ذالک السوال والجواب من شاء فلیطالها في تفسیره.

قُلْ أَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ ۖ فَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْكَافِرِينَ ﴿٣٢﴾

ته ووایه وخلکو ته چي تاسي اطاعت کوئ د خدای ﷻ ای فیما یامرکم به وینهاکم عنه، او اطاعت کوئ د رسول یعني د علیه الصلوة والسلام، ولي چي اطاعت د رسول په دې حیث چي دی رسول د خدای ﷻ دی دا عین اطاعت د خدای ﷻ دی لاغیره، قال الله تعالی "وما ینطق عن الهوی ان هو الا وحي یوحی الآیة" نو دا آیت شامل دی اطاعت لره د رسول الله ﷺ في الوحي الغیر المتلو اعني الآحادیث النبویة.

**پوه سه** چي د خدای ﷻ د محبت او اطاعت او د علیه الصلوة والسلام سره د محبت او د اطاعت تر منځ د تلازم هغه حدیث نبوي چي بخاري یې له جابر بن عبدالله رضي الله عنه څخه روایت کړی دی تائید کوي چي په یوه برخه کي د هغه حدیث داسي راغلي دي کل امتي یدخلون الجنة الا من ابی" ټول امتیان زما به جنت ته دا ننوځي مګر نه هغه امتیان چي له دخول څخه د جنت منع وکړي، اصحاب کرامو ورته وویل "ومن ابی" څوک به منع له دخول څخه د جنت یا

رسول الله قال "من اطاعني دخل الجنة ومن عصاني فقد ابی" څوک چي زما اطاعت وکړي هغه به جنت ته داخلېږي او هغه څوک چي زما څخه عصيان وکړي هغه د دخول د جنت څخه منع کوي "ومحمد فرق بين الناس" او محمد فرق دی په منځ کي د خلګو يعني اطاعت دده او عصيان فرق په منځ کي د خلګو يعني الداخلين في الجنة والمانعين منه.

**درويش وايي:** چي وجه د تلازم داده چي دا معلومه خبره ده چي جنت ته ورځي مګر هغه څوک چي د خدای ﷻ سره محبت لري او د خدای ﷻ اطاعت کوي، نو دي حديث مبارک دا وښوول چي ددې دوو محبتو تر منځ تلازم دی وكذا بين العصيانين فافهم، او که څوک اعراض او روی ګرداني وکړي نو په تحقيق د خدای نه دي خوښ کافران، يعني اعراض کونکي کافران دي او د خدای کافران نه دي خوښ وهو كناية عن البغض معهم. په روح البيان کي وايي چي دا آيت پر شرف د عليه الصلوة والسلام صراحةً دلالت کوي ولي چي خدای محبت خپل محبت د حبيب خپل وباله او جوت يې کړی اطاعت خپل په اطاعت پوري د حبيب خپل.

**تفريع:** هغه څوک چي دعوه د محبت د خدای ﷻ کوي او له سنت څخه د عليه الصلوة والسلام مخالف وي هغه كذاب دی.

**درويش وايي:** وهذا كثير في بعض مشائخ الزمان الحاضر فتفكر، والى هذا اشار المجنون العامري.

امر على الديار ديار ليلى ... اقبل ذا الجدار وذا الجدار
وما حب الديار شغفن قلبي ... ولكن حب من سكن الديار

قال القاشاني رحمه الله محبت النبي ﷺ انما تكون بمتابعته وسلوک سبيله قولاً وعملاً وخلقاً وحالاً وسيرةً وعقيدةً ولاتمشي دعوى المحبته الا بهذا فانه قطب المحبة ومظهرها الى آخير ماقال.

**درويش وايي:** چي مثل د داسي محب الرسول ﷺ في الزمان الحاضر يعني سنه ۱۴۲۶ هجري قمري کي نادر دی، فهو كالمسک الاذفر والكبريت الاحمر



Scanned by CamScanner

وتوفيق الوصول اليه من الله الاكبر. اللهم ارزقني حبک وحب حبيبک وحب من يحبک وحب عمل يقربني اليک آمين آمين آمين.

روايت کړی دی بخاري رحمه الله له عبدالله بن هشام رضي الله عنه څخه چي هغه وويل چي زه د عليه الصلوة والسلام ملګری وم او عليه الصلوة والسلام عمر رضي الله عنه تر لاس نيولی و، نو عمر ورته وويل يا رسول الله ﷺ انت احب الي من کل شيئ الا نفسي، نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل والذي نفسي بيده لا يؤمن احدکم ای ايماناً کاملاً حتی اکون احب اليه من نفسه. نو عمر رضي الله عنه وويل فانه الآن والله انت احب الي من نفسي. نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل الآن يا عمر صار ايمانک کاملاً.

**حکايت**: بادشاه عادل فاتح الهند محمود الغازي الغزنوي رحمه الله يوه ورځ د شيخ رباني د ابو الحسن الخرقاني رحمه الله ملاقات ته ورغلی او يو ګړی ورسره کښېناستی، بيا محمود له ده څخه پوښتنه وکړه چي ستا څه رايه ده په باره کي د بايزيد بسطامي قدس سره، ابو الحسن خرقاني محمود ته وويل چي بايزيد رحمه الله داسي شخصيت و چي دی چا ليدلی وای د دوزخ اور ورته حرام و، محمود ورته وويل چي دا څرنګه مدح د بايزيد تا وکړه، ابو جهل خو عليه الصلوة والسلام ليدلی و او د دوزخ اور نه سو ورته حرام، نو ابو الحسن خرقاني رحمه الله ورته وويل چي ابو جهل رسول الله ﷺ نه دی ليدلی بلکي د محمد بن الله يتيم د ابو طالب يې ليدلی و حتی که ابو جهل رسول الله ﷺ ليدلی وای دی به هم له شقاوت او دوزخه خلاص وای.

**درويش وايي**: چي د شيخ مطلب دا و که ابو جهل په حيثيت د انه رسول الله ليدلی وای نو خو ايمان به يې پر راوړی وای، نو د بدبختی څخه د کفر به خلاص سوی وای او د عليه الصلوة والسلام د لويو اصحابو څخه به وای، لکه ابو بکر و عمر وغيرهما رضي الله عنهما نو به خود د دوزخ اور ورته حرام وای، لکن ابو جهل عليه الصلوة والسلام ته په سترګو د يتيم د ابو طالب کتله، نو د شيخ خرقاني رحمه الله په مدح کي د بايزيد بسطامي رحمه الله همدغه مراد و، يعني که چا



Scanned by CamScanner

بایزید ته په سترګو د سلطان العارفین کتلي وای، نو دده متابعت به یې په اقوالو او افعالو او احوالو کي کړی وای نو د اهل سعادت څخه به ګرځېدلی وای، لکن ټولو خلګو بایزید ته په دغه سترګه نه کتل.

**درویش وایي:** چي مصداق د ماقلنا في باب ابو جهل قوله تعالی "وتراهم ينظرون اليک يعني بعين الراس وهم لا يبصرون" او سره د هغه تا نه ویني یعني په سترګو د زړونو والا اتبعوک وامنوبک.

**درویش وایي:** چي د جابر بن عبدالله ﷺ څخه روایت دی چي اصحاب الحدیث تقریباً ټولو دا حدیث راوړی دی چي یو وخت علیه الصلوة والسلام بیده و چي دوې ملکي ورته راغلې یوه یې وسر ته کښېنستل او بله یې وپښو ته، یوې و هغې بلې ته وویل چي ددې سړي یو مثال باید وویل سي، نو مسئول عنه ملکي ورته وویل چي دی خو بیده دی نو مثال یې څه فائده لري یعني دی خو یې په سبب د خوب نه اوري، هغې بلې ملکي ورته وویل چي سترګي بیدې دي لکن زړه ویښ دی او ادراک او فهم د مثال خو په زړه پوري اړه لري، نو ملکي وویل چي مثال دده داسي دی لکه یو سړی چي ښه بهترین سرای جوړ کړي او ښه فوق العادة مهماني پکښي جوړه کړي او مالک الدار یو منادی او اعلان کونکی واستوي چي خلګو ته عمومي دعوت د مهمانی ورکړي، نو یوې ملکې وهغې بلې ته وویل چي ددې خبري تفصیل ته ودې سړي ته وکړه چي دی په پوه سي، هغې بلې ملکې ورته وویل چي سرای خو جنت دی یعني بانيٌ او خالق یې رب جل وعلا دی، او داعي ومهمانۍ ته د خدای ﷻ محمد ﷺ دی، نو که چا د داعي چي محمد ﷺ دی دعوت قبول کړی نو سرای ته به ورسي یعني الجنة او د مهمان سرای څخه به خوراک وکړي یعني نعیم الجنة ورضی عنه صاحب الدار یعني خدای ﷻ، او که چا د داعي یعني چي محمد ﷺ دی دعوت قبول نه کړی نو به دار ته داخل نه سي یعني الجنة او نه به د مهمان خانې چي جنت دی میلمستیا وخوري. وسخط علیه صاحب الدار، او کما قال رسول الله ﷺ.



Scanned by CamScanner

إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَىٰ آدَمَ وَنُوحًا وَآلَ إِبْرَاهِيمَ وَآلَ عِمْرَانَ عَلَى الْعَالَمِينَ ﴿۳۳﴾

او په تحقیق سره خدای ﷻ خوښ کړی دی د خان لپاره او د خپل محبت لپاره او د رسالت لپاره آدم ابو البشر ﷺ چې امر یې د سجدې وده ته پر ملائکه وو وکړی، او په جنتو کې یې ده او حوا ﷺ ته ځای د اوسېدو ورکړی، او ټوله انبیاء کرام یې دده له نسله څخه پیدا کړه الی غیر ذالک من الکرامات او نوح ﷺ.

**پوه سه:** چې د نوح ﷺ رسالت هغه وخت منځ ته راغلی چې په اولاد کې د آدم ﷺ کفر او شرک پیدا سو او لس کاله ټوله خلګ پر دیني حق د آدم ﷺ وه، او نوح ﷺ نهه نیم سوه (۹۵۰) کاله وقوم ته تبلیغ د توحید وکړی او د شرک په مقابل کې یې سخته مبارزه وکړه، او د کافرانو له خوا ډېر ازار او کړاونه یې ولیدل آخیر الامر چې خدای ﷻ د قوم له خوا څخه بالا تر هغو کسانو چې پر ده یې ایمان راوړی وو نا امیده کړی بقوله تعالی "لن یؤمن قومک الا من قد امن" نو نوح ﷺ خواست د استیصال د ټوله نړی د کفارو وکړی بقوله "رب لاتذر علی الارض من الکافرین دیاراً" فهلکهم الله کلهم بالطوفان فلذا لقب نوح بالآدم الثاني، لان الناس کلهم من اولاده الی یوم القیامة لان من نجا من الطوفان في سفینة نوح ﷺ وهم (۸۰) رجال ونساء کانوا من نسله بالذات او بالواسطة، او د "آل ابراهیم" څخه مراد اسماعیل، اسحاق او یعقوب او ټوله انبیاء علیهم السلام د بني اسرائیلو او سید المرسلین ﷺ داخل دی في آل ابراهیم لانه ﷺ من ولد اسماعیل ﷺ واصطفاء نفس ابراهیم مفهوم من اصطفاء ولده بالطریق الاولی، او له عمران ﷺ څخه په قول د مقاتل، عمران بن یصهر بن قاهت بن لاوي بن یعقوب مراد دی چې دا عمران پلار و د موسی او هارون علیهما السلام.

او بعض مفسرین ﷫ وایي چې مراد څندي عمران بن ماثان من اولاد سلیمان بن داؤد چې دا عمران والد دی د مریم مور د عیسی ﷺ، او په منځ کې د دغو دوو عمران نامو بعض وایي یو زر او اتیا کاله فاصله وه، او بعض وایي یو زر او اته سوه کاله فاصله وه، او بنه مذهب دادی چې له عمران څخه



Scanned by CamScanner

مراد دلته د مریمؑ پلار دی، نو "آل" عمران عیسیٰؑ دی.

**پوښتنه**: تخصیص ددغو کسانو په آیت سره ولي وکړه سو؟

**ځواب**: له دې سببه چې ټول انبیاء او یا اکثره ددغو مذکوره کسانو له نسل څخه وه، مظهري قوله تعالی "علی العالمین"

**پوه سه**: چې دمخه آیت شامل دی لنبینا ﷺ او دغه رنګه و ابراهیم، موسی وعیسی وسائر الانبیاء من بني اسرائیل وغیرهم علیهم السلام کمامر و هو التفسیر الراجح عند اکثر المفسرین، نو د هغو اصطفاء پر ټوله عالمیانو ظاهره ده، او دا آیت دلیل دی پر افضلیت د خواص البشر چې انبیاء علیهم السلام پر خواصو د ملائکه وو لکه جبرائیل ومیکائیل واسرافیل وغیرهم. ولي چې په ټوله عالمینو کې څو ملکې هم داخلې دي، وان اخرج عن الآية السابقة بعض الانبیاء کما في القول المرجوح نو مراد له عالمینو څخه عالمیان د خپل زماني دي والله اعلم بالصواب، او صاحب د روح البیان وایي چې مراد له "اصطفاء" د هر واحد له انبیاء څخه شامل په آیت سابقه کي وه پر عالمیانو د خپلي زماني.

**درویش وایي**: چې دا تفسیر ډېر صحیح دی.

**سوال**: تفضیل د علیه الصلوة والسلام څو یوازې مخصوص د خپلې زمانې په عالمیانو سره نه دی بل هو افضل جمیع العالمین علی الاطلاق؟

**ځواب**: په تفسیر کې د روح البیان څو نفي د تفضیل د علیه السلام پر ټولو عالمیانو علی الاطلاق نه دی سوی بلکې تفضیل د انبیاؤ پر عالمیانو د خپلې زمانې دی وذالک لاینافي کون بعض الانبیاء کسیدنا محمد ﷺ افضل علی الاطلاق من جمیع نسل آدمؑ والملائکة فافهم.

ذُرِّيَّةً بَعْضُهَا مِنْ بَعْضٍ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٣٤﴾

دا مذکورین اولاد دي بعض د بعض، او خدای ﷻ سمیع اوریدونکی د اقوالو د بندګانو او خبر په احوالو د بندګانو دی.

**پوه سه**: چې "ذریة" حال دی یا بدل دی د "آلین" څخه په آل ابراهیم او آل

عمران کي او يا د آلين او نوح څخه يعنې دا اولاد يو دي په اصل کي مګر يو له بله سره جدا سوي دي.

**فائده:** الذرية لولد يطلق على الواحد والجمع والمذكر والمونث. و وزنه فعلية د زر بتشديد الراء والياء للنسبة والذر في الاصل صغار النمل جداً ووجه تسمية الاولاد بالذرية لانهم اخرجوا من صلب آدم كالذر حتى اخذ الله منهم ميثاق الست بربكم قالوا بلى. او يا وزن يې فعولة د مشتق د ذرء څخه دی بيا يې همزه په يا بدله کړه او بيا يې واو د فعولة هم په يا بدل کړی حسب القانون الصرفي او يا يې په يا کي مدغمه کړه.

**پوه سه:** چي سميع عليم يې ددې لپاره ووايه چي خدایﷻ چي په اقوالو او اعمالو د انسانانو خبر دی. نو هغه څوک مصطفى کوي چي مستقيم القول والعمل وي.

## إِذْ قَالَتِ امْرَأَتُ عِمْرَٰنَ

په ياد کړه هغه وخت چي وويل مايني د عمران بن ماثان چي حنة بنت فاقوذا يې نوم و، او د مريم مور او د عيسىؑ انا کېږي.

**پوه سه:** چي د ماثان زامن رئيسان وه د بني اسرائيلو او علماء يې هم دوئ وه او مملکت هم ددوئ و، راوي وايي چي حنه مذکوره وچه وه و د ډېر سن هم وه. يو وخت دا د يوې درختي وسايې ته ناسته وه چي وه يې ليدل چي يو مرغنه په درخته کي وخپل چيچي ته په خوله کي طعام ورکاوه، نو ددې په زړه کي هم شوق پيدا سو چي کاشکي ماهم يو ولد درلودای، او دداسي کورني ښخه چي پر خدایﷻ يې ډېر اعتبار درلودی نو خدایﷻ ته يې خواست وکړی چي ماته زوی راکړې، نو مريم يې په حمل کي سول. كذا اخرج ابن جرير عن ابن اسحاق.

**پوښتنه:** د عمران بن يصهر چي د موسى او د هارون پلار دی يوه لور يې وه چي تر موسى او هراون مشره وه او د هغې نوم هم مريم و، نو موږ په څه دليل وايو چي په آيت کي مذکور عمران عمران بن ماثان دی چي د هغه مايينه حنه و چي د مريم مور وه يعنې حنه بن فاقوذا چي د عيسىؑ انا کېږي، ولې دا بل عمران چي پلار د مريمي دی چي د موسى او هارون خور وه نه دی مراد؟

**ځواب:** دلیل یې دادی چې د مذکوره في القرآن مریمې کفالت زکریا علیه السلام پر غاړه اخستی دی کما سیجئ في الآیات الآتیة. او زکریاء بن اذن او عمران بن ماثان د یوې زمانې وه، نو دا معلومه سوه چې په دې آیت کې له عمران څخه مراد عمران بن ماثان دی، چې د مریم ام عیسی نیکه سي. او تاریخ وایې چې زکریاء علیه السلام د ایشاع لور چې د مریم ام عیسی خور وه په نکاح کړې وه، نو عیسی بن مریم او یحیی بن زکریاء سره د خاله زامن سوه.

**تمهید:** پوه سه چې په دین کې د دوئ داسې نذر مشروع و په نرو اولادو کې چې دوئ نر ولد لپاره د خدمت د بیت المقدس نذر کاوه، کما اخرجه ابن جریر عن قتادة نو چې چا به دغه نذر وکړی نو هغه هلک به یې وکنیسا ته یعني معبد ته د نصاری وو وروستی او د بیت المقدس خدمت به یې کاوه. او جارو کښې به یې کوله چې ددې کارو به قابل سو او مور او پلار به یې تر بلوغه کار نه په درلودی، نو چې بالغ به سو بیا نو دده اختیار و که هورې په بیت المقدس کې د خدمت لپاره پاته کېدای او که پر بله خوا تلای. او په هغه زمانه کې داسې نبي نه و چې دده یو زوی محرر او ازاد د بیت المقدس لپاره نه و بلکې د هغه وخت د علماؤ یو یو زوی به هم محرر په بیت المقدس کې موجود و، نو څه وخت چې د عمران ماینې خدای جل جلاله خواست د ولد وکړی او خدای جل جلاله د حنه دغه خواست قبول کړی او دې احساس د حمل وکړی او دې دغه حمل خو په واقع کې مریمه وه یعنې ام عیسی. نو دې دغسې خواست خدای جل جلاله ته وکړی او دا حمل یې نذر کړی د بیت المقدس د خدمت لپاره کما هو المعتاد في الزمان المذکور کمامر. او دې وویل.

رَبِّ إِنِّي نَذَرْتُ لَكَ مَا فِي بَطْنِي مُحَرَّرًا فَتَقَبَّلْ مِنِّي ۖ إِنَّكَ أَنتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿٣٥﴾

اې زما خدایه ما نذر کړی هغه شی چې زما په نس کې دی یعنې ما في رحمي، نو ته دا نذر زما څخه قبوله کړې په تحقیق سره ته اوریدونکی زما

قول او خبر یې زما په نیت سره، نو ددې مېږه چې په نذر خبر سو نو پر دې یې منت وکړی چې دا دي څرنګه نذر وکړی ته څه خبره یې که ستا په نس کي ښځینه عیال و نو هغه د نذر وړ نه دی کما مر ان النذر المذکور کان یختص بالذکور، نو دویٔ دواړه په دې غم کي و چې دا څرنګه نذر سو. خیر خو په وخت د حمل کي عمران وفات سو او حنه حامله وه په مریمي سره.

**پوښتنه**: حنه خو هم د نذر په قانون خبره وه. نو دې ولي دا نذر مجهول کاوه؟

خواب: ددې تقدیر او خیال خو دا و چي زما حمل به نر وي او دي په نذر کي ضمناً سوال د نر عیالي له خدای ﷻ څخه کاوه.

**فائده**: نذر هغه شي ته وایي چي انسان یې پر خپل ځان لازم وګرځوي.

**سوال**: دې ولي تعبیر د ولد څخه په ما سره وکړی ما خود غیر ذوی العقول لپاره استعمالېږي؟

**خواب**: اولاً کلمه د من که څه په ذوی العقول پوري خاصه ده لکن کلمه د ما عامه ده کما في شرح الکافیه لعبدالرحمن الجامي رحمه الله، وثانیاً قال صاحب روح البیان عبر عن الولد بما لابهام امره وقصوره عن درجة العقلاء وقت الوضع و بعده.

**فائده**: لفظ د محرراً منصوب دی حال دی له "مافي بطني" څخه والمعنی معتقاً لخدمة بیت المقدس لا اشغله بشيء من الدنیا خالصتاً مفرغاً لعبادة الله تعالی.

## فَلَمَّا وَضَعَتْهَا قَالَتْ رَبِّ إِنِّي وَضَعْتُهَا أُنثَىٰ

هغه وخت چي دې حمل کښېښود یعني لنګه سوه او لور یې راوړه، نو دې وویل چي خدایه ما خو لور راوړه، او دا قول ددې له جهته د غم و پر عکس د امید ددې، ولي چي دې خو نر فرض کړی و او یا لپاره د عذر وه خدای ته چي دا انثی خو وړه نه ده د خدمت د بیت المقدس، ولي چي ښځه په سبب ددې چي دا لوسي عورت ده او غالباً ښځه تر نر ضعیف البنیة وي او حیض او نفاس ور پیدا کېږي، نو له مسجد څخه وخروج ته مجبوره کېږي، ولا تستطیع



Scanned by CamScanner

خدمة بيت المقدس طول عمرها.

## وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِمَا وَضَعَتْ

او خدای ﷻ خبر دی په ما وضعت.

**پوه سه:** چې ابن عامر، ابو بکر او یعقوب رح لفظ د وضعت پر صیغه د متکلم وایي یعني بضم التاء، نو پر دې تقدیر دا عبارت د امرئة العمران مقوله ده. غرض ددې دا و چې خپل ځان ته یې تسلي ورکوله په دې معنا چې خدای ﷻ خو خبر دی په ما وضعت سره نو شاید د خدای په دې کې کې یو حکمت مستوره وي، او دا ښځینه اولاد به خیر وي په نیزه د خدای ﷻ تر نارینه اولاد، او نور قاریان یې په صیغه د غیبت وایي یعني په سکون د تا، نو پر دې تقدیر دا جمله مستانفه ده او د کلام ځخه د خدای ﷻ ده لپاره د تعظیم د موضوع ددې او لپاره د ناخبرتیا ددې په حکمت الهي کې ددې د موضوع انثی.

## وَلَيْسَ الذَّكَرُ كَالْأُنْثَىٰ

او نه دی نر لکه ښځه یعني په خدمت کې د بیت المقدس لما قلنا آنفا. مظهري رح وایي چې دا جمله احتمال لري چې قول د امرئة العمران دي وي لپاره د اظهار د عذر وخدای ﷻ ته نو پر دې تقدیر کلمه د لام تعریف لپاره د جنس ده. او دا هم احتمال لري چې دادي کلام د خدای ﷻ وي فالمعنی ولیس الذکر الذي طلبته وترجوه کالانثی التي وهبت لها یعني الانثی الموضوعة افضل من الذکر المطلوب، نو پر دې تقدیر لام د لفظ د الذکر والانثی لپاره د عهد دی، فافهم هداک الله لمعاني کلام الله ﷻ.

## وَإِنِّي سَمَّيْتُهَا مَرْيَمَ

او ما پر دې نوم ایښی دی د مریمي.

**پوه سه:** چې دا جمله عطف ده پر مقوله د مور د مریمي او د منځ جمله معترضه ده

فائده: د مریم معنا ددوی په ژبه کې د عابدې ده، د مریمي مور ددې



Scanned by CamScanner

لپاره دا خبره وکړه چي خدای ﷻ دي نوم او مسمی سره برابر کړي.

**پوښتنه**: مور يې ولي نسبت د نوم اېښوولو وخان ته وکړی، او سره د دې چي قانون دادی چي نومان د عيال پلار ايږدي؟

**ځواب**: دمخه تېره سوه چي مريم چي د مور په حمل کي وه پلار عمران يې وفات سو، نو ګويا مور يې طلب د مهرباني له خدای ﷻ ځخه وکړی پر مريم باندي لانها يتيمة.

# وَإِنِّيٓ أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ ٱلشَّيۡطَٰنِ ٱلرَّجِيمِ ﴿٣٦﴾

او زه پناه غوارم له تا ځخه ای خدايه ددې لپاره او ددې د اولاد لپاره له سرکښه شيطان ځخه چي مردود دی له درباره ځخه د خدای ﷻ.

**پوه سه**: په حديث شريف کي راغلي دي چي رسول اکرم ﷺ چي خپله لور بي بي فاطمه ؓ وعلي ؓ ته په نکاح ورکړه، نو عليه الصلوة والسلام دعاء ورته وکړه "اني اعيذها بک وذريتها من الشيطان الرجيم"

**پوه سه**: چي په حديث کي چي روايت يې ابو هريره ؓ کړی دی داسي راغلي دي چي ما د عليه الصلوة والسلام ځخه واورېدل چي مولود نه دی زېږېدلی مګر شيطان يې په کوټه ووهي نو هغه طفل بغاري وکړي له سببه د مسي د شيطان الا مريم وابنها يعني عيسی ؑ، متفق عليه.

**درويش وايي**: چي مظهري ؒ وروسته تر دې داسي ليکلي دي ببرکة هذه الاستعاذة آه.

**درويش وايي**: چي دا استعاذه خو مور د مريمي وروسته تر زېږېدلو د مريمي وکړه نو مريمه ځرنګه د مس الشيطان ځخه خلاصه سوه په سبب د دعاء د مور سره، ولي ولادت مريم خو مقدم دی تر دې استعاذې د مور البته په عيسی ؑ کي دا اثر د استعاذه د مور د مريمي صحيح دی، ولي چي مور يې ذريتها ذکر کړی و، فالاولی في معنی الحديث داده چي مريم په وخت کي د ولادت چي شيطان له مسي خلاصه سوې وه په دې سبب چي يو خو دا نذيره مقبوله د بيت المقدس وه او بل په وخت کي د ولادت دا يتيمه وه چي مستحق

د رحمت الهي وه، نو خدای ﷻ دا له مسي څخه خلاصه کړه، او عیسی علیه السلام یا په اثر د دعاء د مور مریمي د مس الشیطان څخه خدای ﷻ وساتی.

# فَتَقَبَّلَهَا رَبُّهَا بِقَبُولٍ حَسَنٍ

نو قبوله کړه مریمه خدای د مریمي په قبول حسن سره.

**یوه سه:** چي تقبل دلته په معنی د مجرد دی، روح البیان وایي د قبول حسن په ترجمه کي وایي ای بوجه حسن یقبل به النذائر وهو قبول تلک الانثی مع انوثتها وصغرها مع ان المعتاد في تلک الشریعة ان لایجوز التحریر الا في حق غلام یقدر علی خدمة المسجد وهو عاقل.

**درویش وایي:** چي دا تفسیر احسن التفاسیر دی لهذه الآیة الکریمة، بیضاوي وایي چي حنه چي مریم وزېږوله، نو په یوه ټکړه کي یې ونغښتل او را وایې خستل ومسجد ته د بیت المقدس، او دا یې کېښېښول و علماؤ ته د مسجد او ورته وه یې ویل دونکم تلک النذیرة، یعني دروا خلئ دا منذوره.

**یوه سه:** چي احبار د بیت المقدس په دغه وخت کي زامن د هارون وه، او تولي د بیت المقدس د دوئ په لاس کي وه، نو د احبارو د بیت المقدس په تربیت کي د مریم عظیم اختلاف پیدا سو. یعني هر حبر غوښتل چي د مریمي تربیه دي ودته ورکړل سي ولي چي مریمه د لوی امام چي عمران و لور وه، لکن زکریا علیه السلام چي په دغو متولیانو کي موجود و دعوه یې وکړه چي زه حقدار یم د تربیې د مریمي، ولي د مریمي خاله چي اشیاع یې نوم و او د یحیی بن زکریا مور وه زما په نکاح کي ده والخالة کالام في الشفقة، لکن نورو احبارو دا دلیل د زکریا نه ومانه بلکي وه یې ویل چي قرعه اندازي پر کوو، نو دغه احبار اوه ویشت (۲۷) کسه وه دوئ وویل چي مور به یو جاري ولي ته ورځو یعني نهر الاردن او هغه قلمان چي دوئ به تورات په نوشته کاوه دا یې وویل چي دا به دا جاري اوبو ته اچوو نو د هرچا قلم چي پر جاري اوبو ودرېږدی یعني اوبو تل نه کړی او نه یې یوړی هغه سړی د مریمي د تربیې کفیل دی، نو

قلمان چې یې اوبو ته وروواچول د نورو ټولو احبارو قلمان ټوله په اوبو کې ډوب سوه د زکریاﷺ قلم د اوبو پر سر ودرېدی، او بعض علماء لکه سعدي وغیره وایي چې قلمان د نورو احبارو ولې ډوب نه کړل بلکې د ابو پر سر د اوبو د جریان سره ولاړه او قلم د زکریا د اوبو پر سر لوړ روان و، نو زکریاﷺ تربیه د مریمې وګټل ولهذا قال الله تعالی

## وَّاَنۡۢبَتَهَا نَبَاتًا حَسَنًا ۙ

**یوه سه:** چې "نباتاً" مفعول مطلق دی له غیر څخه د فعل ناصب، ولې چې انبت باب د افعال دی او نباتاً مصدر د مجرد دی، قال النحاة والتقدیر انبتها فنبتت نباتاً حسناً.

**فائده:** الانبات ډ استعارة لازدیاد عظام المولود وقامته واعضائه، تفاسیر په یوه خوله وایي چې مریم به په یوه ورځ کې دونده لوېدله لکه نور کوچنیان چې به په کال کې دومره لوېدله.

## وَّكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا ۚ

**یوه سه:** چې بعض قراء "کفلها" په تشدید د فاء وایي یعني ماضي د باب د تفعیل او فاعل یې خدایﷻ دی لانه تعالی جری ذکره فیما سبق من الایات فلا حاجة الی ماقال المظهريؒ في ان الفاعل هو الله لتقرره في الاذهان، او بعض قراء یې تخفیف د فاء وایي یعني من المجرد.

**یوه سه:** چې بیضاوي وایي او دده په متابعت مظهري هم وایي چې حمزه او کسائي او عاصمؒ فاء مشدده وایي، زکریاء په کسره وایي، نو فاعل خدایﷻ بولي او زکریاء مفعول بولي، والمعنی جعل الله زکریاء کافلاً لها وضامناً لمصالحها، او نور قاریان "کفل" په تخفیف د فاء وایي او "زکریاء" په رفع وایي او په مد یعني فاعل یې بولي، والمعنی ضمانت یې وکړی زکریاء د مریمې د تربیې او مصالحو.

**یوه سه:** چې محمد بن اسحاق وایي چې اول زکریاءﷺ مریمه وخپلې خاله ته وسپارله چې د زکریاءﷺ ماینه وه نو هغې یې ساتنه او تربیه کوله حتی چې

مریمه پېغله سوه د ښځو ځای ته ورسېدله، نو زکریاﷺ دې ته په مسجد کې د بیت المقدس یوه بالاخانه جوړه کړه چې د محراب په نامه یادېدله او سېړې به په ځینو کې ورځنې. او دروازه یې لوړه ورکړې وه لکه باب الکعبة المبارکة، او دې محراب ته غیر له زکریاﷺ بل څوک بېله اجازې دده نه سو ورتلای یعنې دروازه به یې د دباندې د خوا پسې قلفوله، او ووړې، او یه او د سر غوړلو تېل به زکریاﷺ ومحراب ته وروړله.

**یوه سه**: چې محراب هغه اشرف المجالس ته وایې، او ځای ته د جنګ هم وایې ځکه محراب ته د مسجد محراب وایي لانه محل ومحاربة الشیطان، او لوړې خونې ته هم محراب وایې، قال المبرد لایکون المحراب الا ان یرتقی الیه بدرج، یعنې په ځینه سره، په صحیح حدیثو کې راغلي دي چې زکریاﷺ چې به مریمې ته ورغلی او دروازه به یې هم قلف وه بیا به هم ومریمې ته د دوبې مېوه په ژمي کې تر وتازه پرته وه او د ژمي مېوه به بېله خزانه ودې ته په دوبي کې پرته وه، وقد بین الله تعالی ذالک.

كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ وَجَدَ عِنْدَهَا رِزْقًا ۖ قَالَ يَا مَرْيَمُ أَنَّىٰ لَكِ هَٰذَا ۖ قَالَتْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ ۖ إِنَّ اللَّهَ يَرْزُقُ مَنْ يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٣٧﴾

نو هر وخت چې به زکریا، داخل سو پر مریمې په محراب کې، نو دده به ولیدلې په نېز د مریمې رزق یعنې د ژمي او دوبي مېوې، نو مریمې ته به یې وویل اې مریمې دا مېوې تاته د کومې خوا راځي، دا استفهام د زکریاﷺ له مریمې ځخه لپاره د تعجب او استبعاد و چې دروازه به د دباندې له خوا قلف وه نو دا مېوې تاته له کومې خوا راځي، مریمې به ورته وویل چې دا مېوې د خدایﷻ له خوا راځي یعنې له جنت ځخه په واسطه د ملکې له حسن بصري ﷫ ځخه روایت دی چې مریم چې وزوکېدله د مور شیدې یې نه دي رودلي، بلکې له هغه کوچنیوالي ځخه غذاء د جنت ورته را روانه وه.

**فائده**: کلما دخل علیها آه، پر ماقبل عطف نه کړئ، ولې دا جمله د ماقبل

تاکید ده یعنې فتقبلها بقبول آه. نو په منځ کې ددې دوو جملو کمال اتصال دی فلایصح العطف کما تقرر في علم المعاني.

**فائده**: کلما" ظرف زمان متضمن معنی لره د شرط دی، او منصوب دی په جواب دده یعنې وجد عندها آه.

او مریمې ورته زیاته کړه دا خبره یې هم تر جواب د زکریاء وروسته وکړه چې په تحقیق سره خدای ﷻ رزق ورکوي هغه چاته چې خوښه یې سي یعنې اراده یې سي بې حسابه.

**پوه سه**: چې لفظ د "بغیر حساب" کنایةً عن الکثرة. او دا هم احتمال سته چې ان الله یرزق آه دي له کلام څخه د خدای ﷻ وي.

**فائده**: دا قصه دلیل ده ددې چې کرامت د اولیاؤ حق دی. ولې چې مریم خو نبي نه وه او خارق العادة یې پر لاس ښکاره سوه.

**فائده**: له جابر بن عبدالله ؓ څخه روایت دی چې فاطمه ؓ و علیه الصلوٰة والسلام ته په یوه ټکره کې دوې ټیټرې او یو څه غوښې ور واستولې، نو علیه السلام سر بسته هغه سترخوان او ډوډۍ د فاطمې ؓ کره راوړه، نو یې فاطمې ؓ ته وویل هلمې یابنې، نو فاطمې سترخوان ورته خلاص کړی. نو په سترخوان کې که څه هم فاطمې ؓ دوې ټیټرې او یو څه غوښې ایښې وې لکن چې دې سترخوان خلاص کړی د ډوډۍ او د غوښو ډک و. نو علیه الصلوٰة والسلام خپلې لور فاطمې ؓ ته وویل اني لک هذا فاطمة ورته وویل هو من عندالله "ان الله یرزق من یشاء بغیر حساب" نو ددې دغه جواب چې موافق د کتاب الله سره و په دې الفاظو علیه السلام شکر اداء کړی. الحمدلله الذي جعلک شبیهةً سیدة نساء بني اسرائیل یعني مریم، وروسته علیه الصلوٰة والسلام علي والحسن والحسین ؓ او نور اهل البیت لعل الله المراد بهم الازواج المطهرات رضي الله تعالی عنهن لان اهل بیت فاطمه ؓ هي وعلي والحسن والحسین ؓ نو ټولو ته خانونه په ماړه کړه باقي مانده یې د همسایه ګانو کره واستول.

# هُنَالِكَ

یعني په هغه ځای کي او یا په هغه وخت کي، یعني زکریاء ؑ کرامت د مریمي ولیدی او فراخي د رحمت الهي. او په عین حال کي ده زوی نه درلودی چي وارث دده د علم او نبوت وګرځي او د اکا زامن که یې درلوده لکن دی ببریدی چي هغه به د دین او د علم پالنه او روزنه ونه کړي. نو په محراب ننوتی او دروازه یې بنده کړه.

دَعَا زَكَرِيَّا رَبَّهُ ۖ قَالَ رَبِّ هَبْ لِي مِن لَّدُنكَ ذُرِّيَّةً طَيِّبَةً ۖ إِنَّكَ سَمِيعُ الدُّعَاءِ ﴿۳۸﴾

دعاء او خواست یې وکړی زکریاء له خدای ﷻ څخه ښېل. او وه یې ویل ای زما ربه ماته هبه کړې یعني په صرف بخښنه سره، وانما قال ذالک لان الاسباب العادیة لاتساعد مطلق الولادة منه لما سیاتي ان زوجته کانت عاقراً وکان هو شیخاً کبیراً فهذه الولادة انما تکون علی خرق العادة کرزق مریم.

**پوه سه**: چي خارق د خدای ﷻ یعني له عادت څخه د خدای ﷻ خلاف یو شی چي خدای پاک پیدا کړي، نو که هغه کار مقرون په دعوه د نبوت سره و او موافق د خواست سره د مدعي النبوة و هغه ته معجزه وایي چي مثالونه یې ښېخي ډېر دي کشق القمر لنبینا ﷺ وعصا موسی ؑ واحیاء الموتی لعیسی ؑ وغیرها من المعجزات الانبیاء علیهم السلام. او که دعوه د نبوت ورسره وه لکن له خواست څخه د مدعي النبوة مخالفه وه هغه ته اهانت وایي کما روی چي مسلمة الکذاب ته یو سړی چي په یوه سترګه ړوند و راغلی او ورته وه یې ویل چي که ته رشتیا نبي یې خدای ته خواست وکړه چي زما دا ړنده سترګه بناء سي. مسلمه چي خواست وکړی د هغه سړي هغه روغه سترګه هم ړنده سوه، او که مقرون په دعوه د نبوت سره نه و لکن د یو فاسق بې دینه پر لاس ښکاره سو هغه ته سحر وایي. او که د شریعت سره موافق د چا پر لاس یا په دعاء یا بې دعاء هغه ته کرامت الولي وایي.

**فائده**: معتزله کرامت د ولي نه مني. دوی وایي چي د کرامت او معجزه یا

د سحر تر منځ اشتباه راځي.

**درویش وايي:** چي موږ يې فرق بیان کړی، او د معجزې د نبي او د سحر د ساحر دا فرق دی چي د معجزې مقابله څوک نه سي کولای. او د سحر د ساحر مقابله کېدای سي او مغلوبه ګرځول کېږي. کسحرة فرعون مع موسى عليه السلام حيث جعلوا عصيهم واحبلهم في مرئ الناس كانها كلها حية تسعى لكن اذا القى موسى عصاه فصار حية وتلقف ما صنعوا. فلهذا وقعت السحرة سجداً وقالوا آمنا الآية.

**درویش وايي:** چي د مریم رزق راتله له جنت څخه ددې کرامت و بیله غوښتني ددې فكان المعتزلة انكروا القرآن يعني من هذه الآية.

**درویش وايي:** چي په ټولو کتابو کي د اهل السنة والجماعة دا عقیده مذکوره ده وکرامات الاولياء حق. او قرآن کریم يې هم شاهد دی کمامر في قصة مریم والآحاديث النبوية التي يبلغ آحادها حد الشهرة ايضاً شاهدة بكرامات الاولياء. واقوال الصحابة واحوالهم واقوال التابعين واحوالهم وهلم جرا ايضاً شاهدة بكرامات الاولياء. که درویش وغواړي چي ټوله کرامات د اولیاؤ وڅېړي او تفصیلي بیان يې وکړي شایئ پوره جلد کتاب خندي جوړ سي. د سهل بن عبد الله رحمه الله څخه روایت دی چي لوی د کراماتو د مسلمانانو دادي چي خپل مذمومه اخلاق په محموده اخلاقو بدل کړي. روایت سوی دی چي بایزید بسطامي رحمه الله ته چا وویل چي فلانی ولي الله پر اوبو باندې لکه پر مځکه روان وي نو دا کرامت ګڼل کېږي. بایزید رحمه الله ورته وویل که دا کرامت وي نو ماهی په دې باب کي اعجب دی تر فلان، بیا هغه سړي ورته وویل چي فلانی ولي الله په هواء کي رفتار کوي نو دا هم کرامت دی؟ بایزید رحمه الله ورته وویل چي ټوله مرغان په دې رفتار کي د هواء اعجب دي تر فلان، بیا هغه سړي ورته وویل چي فلانی ولي الله مکې ته په یوه ورځ کي ولاړ سي له دیار بعیده وو څخه او بېرته په هغه ورځ کي خپل وطن ته راسي. نو دا کرامت بولې او که څرنګه؟ بایزید رحمه الله ورته وویل چي ابليس عليه اللعنة په دې باب کي

اعجب دی تر فلاني، چې هغه ټولې مځکې طی کوي په یوه لحظه کې مع انه ملعون في جناب الله ﷻ، نو هغه سړي ورته وویل چې ستا په عقیده کرامت د ولي الله څه دی، بایزید ﷫ ورته وویل چې ټوله هغه غرائب چې په څوکانې کې د اتباع د شریعت غراء او د قال الله او قال الرسول وي هغه کرامات الأولیاء دي، لکن حقیقةً کرامت د مؤمن ترک دی د شهواتو نفسانیه وو او متابعت دی د شریعت غراء محمدیه اللهم ارزقنا اتباع الشریعة الاحمدیه آمین ثم آمین ثم آمین.

**حکایت**: له ابو عنوان واسطي ﷫ څخه روایت دی، دی وایي چې زه او ماینه مې چې حامله هم وه په کښتۍ کې په سفر وو چې کښتۍ طوفاني سوه او ماته سوه او سوري او اموال د هغو ټوله په ابو کې د دریاب ډوب سوه او زه او ماینه مې پر یوه لویه تخته د کشتۍ. د دریاب پر مخ څو ورځې پاته سوو او ماینه مې په دغه حال کې لنګه سوه او زوی یې راوړی، باره یې ېغاري کړې چې له تندې مړه سوم ولي چې د دریاب اوبه خو ترخې وې، نو ما اتفاقي لوړ وکتل چې یو سړی په هواء کې ناست دی او په لاس کې یې ځنځیر د سرو زرو او په ځنځیر پوري کوزه د سرو یاقوتو خړېږي، ماته یې نعره وکړه چې دراخلې دا کوزه او اوبه وڅښې. ماچې کوزه ځندي را واخستل او اوبه مې وڅښلې دا اوبه تر مشکو خوشبویه وې او تر عسلو غوړې وې، نو ما ورته وویل چې ته څوک یې یرحمک الله؟ ده راته وویل انا عبد لمولاک، ما ورته وویل بم وصلت الی هذه الرتبة ده راته وویل ترکت هوایي لمرضات مولای فاحبسني في الهوا ثم غاب فلم اره، خیر دا خو کرامت و، هغه ابو عنوان وایي چې وروسته خدای ﷻ له یو بلې خوا څخه کښتۍ پیدا کړه چې خلګ پکښې سپاره وه موږ چې یې په دې حالت زار کې ولیدلو نو کښتۍ یې زموږ تختې ته را وسته او موږ یې هم ور سره واخستلو، او دا به بیا د ابو عنوان کرامت و. په تاریخ کې راغلي دي چې سفیان ثوري ﷫ چې د امام اعظم ابو حنیفه ﷫ معاصر و د شیبان راعي رحمه الله د حج په سفر کې روان و او په لار کې یو



Scanned by CamScanner

درنده زمری یا پرانگ وغیره پر پیښ سو، نو سفیان ثوري وشیبان راعيﷺ ته ووېل چي هغه درنده ته نه وینې چي په لاره کي ولاړ دی، شیبانﷺ ورته ووېل چي مه بېرېږه. نو شیبانﷺ ورغلی او درنده یې تر غوږو ټینګ کړی او غوږونه یې ورو‌بېچل. درنده سر کښته نیولی و او لکۍ یې ښورولـه. نو سفیانﷺ ورته ووېل چي شیبانه دا دي څه د شهرت کار وکړی، شیبانﷺ ورته ووېل چي که د شهرت في الناس څخه نه بېرېدلای ما به خپل د سفر بار ددغه درنده په شا ورکړی وای او د سفر ملګری کړی به مي وای تر څو چي مکې ته رسېدلای، سعدي شیرازيﷺ وایي

| | |
|---|---|
| تو هم گردن از حکم داور مپیچ | که گردن نه پیچد زحکم تو هیچ |
| محا لست چو دوست دارد ترا | که در دست دشمن گذارد ترا |

**تبصره**: پوه سه چي سفیان ثوريﷺ د‌ېر لوړ عالم و چي په زمانه کي یې د امام اعظمﷺ ځان داغسي مجتهد باله لکه امام اعظم، لکن شیبان راعي که څه هم دونده لوړ عالم نه و لکه سفیان ثوري لکن د خدایﷻ د رضا او د دوستي لاره یې خپله کړې وه. نو ځکه سفیانﷺ چي برجسته عالم د علم ظاهر و لـه درنده څخه بېرېدی، او شیبان راعي چي زړه یې د محبت د خدایﷻ لب ریز و د درنده بېره لا څه که یې تر غوږو یې ونیوی خواجه عبدالله انصاري هرويﷺ چه زیبا ودل پذیر ابیات درفشان از خزانه دل پر جواهر خود به نشر عام سپرده ومیگوید.

| | |
|---|---|
| ای طالبی که دعوه عشق خدا کنی | بغیر او نظر بمحبت چرا کنی |
| از جستجوی خلق تو بیگا نه شو اگر | خواهی که دل بحضرت او آشناکنی |
| حقا که شور وغلغله درآسمان فتد | آندم که تو زبیم خدا یک نداکنی |
| ملک دو عالم از تو شود گرزوری عجز | خود را فدای خاطر یک بینوا کنی |
| انصاریاچو روز شوی رو شن از شبی | و د را معجز بر در سبحان گدا کنی |

دورېش بینوا مي گوید که گفتارهای شائسته دوستان خدا جل شانه همه وهمه برحق است لکن در رسیدن بمنازل شان موانع بسیار اند که بآن موانع



Scanned by CamScanner

خداوند متعال درین آیت هدایت نموده "زين للناس حب الشهوات من النساء" الى اخير الآية.

درویش میگوید سخنان از بس شرين که از دل فراگنده بر قلم او زبان می در آیند ، فراگندگي دل قائل شان در آن خبرهای شیرین تاثیر نموده دلهای مستمعان را پراگنده مي گردانند ، وچون سخنان شیرین از دل پر درد و محبت وعشق الهي سرزد مي شوند وبرقلم وزبان در آیند ، کنه آن سخنان دلهاء مستمعان را بعشق ووجد مي درآورند ، چون سخنان خواجه عبدالله انصاري رحمه الله

این سخن پایان ندارد بازرو بر سر تفسیر قرآن بازرو

**فائده**: د "زرية" معنا ولد دی که مذکر وي که موئث وي او که مفرد وي او که جمع وي ټولو ته وايي، او "طيبة" صفت دی د "ذرية" او د طیب معنا صالح معصوم او پاک له ګنهو څخه، او د "سميع الدعاء" معنا مجيب الدعاء او انک سميع الدعاء علت دی د دعاء کولو د زکریاء عليه السلام

**پوه سه**: چي تانیث د "طيبة" په اعتبار د لفظ د "زرية" دی.

**فَنَادَتْهُ الْمَلَائِكَةُ وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّي فِي الْمِحْرَابِ**

نو نعره وکړه ملکو وزکرياء ته په داسې حال کې چي دی ولاړ و لمونځ یې کاوه په محراب کي.

**پوه سه**: چي منادی جبرائيل عليه السلام و په قول د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه

**سوال**: نو صیغه د جمع ولي راوړه سوه؟

**ځواب**: فضل بن سلمه رحمه الله وايي چي قائل د یو قول چي رئیس وي اخبار په جمع له هغه څخه روا دی، ولي اصحاب دده ورسره وي، او جبرائیل خو رئیس الملائكة او لږ واره به جبرائیل پر یو خوا استول سوی وي یوازي چي نوري ملکي به نه وي ورسره.

**درویش وايي**: چي په جنګو کي د مسلمانانو ښکه د جبرائیل عليه السلام سره به نوري ملکي ورسره وي، او یا د انزال د عذاب پر کافرانو به هم نوري ملکي

ورسره وې، لكن په انزال كي د وحي چي نوري ملكي به ورسره وې دا په حديث كي نه دي ثابت سوي، او داغه رنگه په نداء كي وزكرياء ﷺ ته هم د نورو ملكو ورسره والى نصاً معلوم نه دى.

**درويش وايي**: چي دې توجيه ته ضرورت نسته بلكي لپاره د تعظيم له مفرد څخه اخبار په جماعت سره روا دى، او بعض مفسران رح وايي چي معنا د نادته الملائكة داده چي د جنس د ملكو يو چا ورناري كړې چي هغه به نو جبرائيل ﷺ و غالباً وهذا توجيه ضعيف.

**درويش وايي**: چي منادى و يوازي جبرائيل ﷺ ويدل عليه ما ذكر عبدالرحمن بن ابي حماد انه كان يقرء فناداه جبرئيل، قال البرسوي في روح المعاني او يكون هذا من قبيل اسناد فعل البعض الى الكل يعني كما في بني فلان قتلوا مع ان القائل منهم واحد قوله وهو قائم آه جملة حالية له مفعول څخه د نادته يعني زكرياء ﷺ، وقوله يصلى حال دى له ضمير مستكن څخه په قائم كي او يا بل حال دى له مفول څخه د نادته، يعني زكرياء په نيز د هغو نحاتو چي تعدد د احوالو بيله عطف روا بولي، روح المعاني.

**يوه سه**: چي مراد له "صلوة" څخه دغه متعارف لمونځ دى، وعليه اكثر المفسرين رح، او بعض مفسران وايي چي مراد له "صلوة" څخه دعاء ده.

**فائده**: مراد له محراب څخه نفس مسجد دى، او يا غرفه د مريم ده، او يا متعارف محراب المسجد دى.

**يوه سه**: چي لمونځ كول په محاريب مشهوره وو د مسجادو يعني دننه په محراب كي يوازي امام لره بعض ائمه مكروه بولي، والى ذالك ذهب على كرم الله وجهه، بلكي د امام المسجد پښې وغيره به تر محراب دباندې وي، وقد ذكر في كتب الفقه ايضاً.

**فائده**: حمزه او كسائي رح داسي قرائت ددې آيت وايي "فناداه" على التذكير لان الفاعل وهو الملائكة اسم ظاهر دى، او مؤنث غير حقيقي دى، او نور قاريان يې نادته په تانيث وايي لتانيث لفظ الملائكة، روى عن ابراهيم



Scanned by CamScanner

قال كان عبدالله په تذکیر یې ووېل ملائکة یعنې فعل به یې مذکر ورته مسند کوی رداً علی المشرکین ان الملائكة بنات الله تعالى اذ على هذا لا يجوز تذكير الفعل المسند اليهم فافهم

## أَنَّ اللَّهَ

**پوه سه**: چې حمزه او ابن عامر دا لفظ په کسره د همزه وايي على اضمار القول، والتقدير فنادته الملائكة فقالت ان الله. او باقي قاريان يې په زور د همزه وايي بتقدير الباء اى بان الله.

## يُبَشِّرُكَ

زېری درکوي.

**پوه سه**: چې دا لفظ حمزه يَبشرک وايي بفتح الياء وسكون الباء وضم الشين بالتخفيف من باب بشر يبشر المجرد في جميع القرآن تقريباً وهي لغة تهامة. او نور قاريان يې بضم الياء وفتح الباء وتشديد الشين وايي من باب التفعيل ومعنى القرائتين واحد.

## يَحْيَىٰ

قال ابن عباس د يحيى نوم يې په دې پر کښېښوی چې په ده سره زوندی سو رحم د مور يعنې عقر يې زائل سو. او قتاده وايي وسمى يحيى لانه تعالى احيا قلبه بالايمان والطاعة حتى چې يحيى نه معصيت کړی دی او نه يې قصد د معصيت ته کړی دی.

**درويش وايي**: والاول اوجه ومناسب للسياق.

## مُصَدِّقًا بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللَّهِ

په داسي حال کي چي دی به تصديق کونکی وي په کلمة الله سره يعنې عيسى وجه التسمية به لان الله تعالى قال له كن من غير اب فكان يعنې اراد ذالک فكان كما اراده الله تعالى فسمى بكلمة وقيل سمى عيسى بكلمة الله لان الناس يهتدى به كما يهتدون بكلام الله.

**فائده**: مصدقاً حال مقدره دی، ولي په وخت کي د بشارت خو دی مصدق نه وو بلکه تقدير د مصدق والى يې له جانبه څخه د خدای سوی و.

**فائده**: یحی اول سړی و چې ایمان یې پر عیسیٰ ﷺ راوړی دی او دده تصدیق یې کړی دی، او یحی شپږ میاشتې تر عیسیٰ ﷺ مشر و، وقد روی في حديث المعراج الطويل الذي رواه البخاري ومسلم ان يحى وعيسى كانا ابني خالة. یعنې د هر یوه مور د هغه بل خاله وه یعنې مندې ددوئ سره خوندې وې.

**فائده**: وقد قتل يحى ﷺ قبل رفع عيسى السماء.

## وَسَيِّدًا

یعنې یحی سردار د قوم و او فوق تر ټولو و په علم، عبادت او تقوی کې او په خصالو کې د خیر، او مجاهد وایي چې د سید معنی الكريم على الله، وقيل الحليم الذي لا يغضبه شئ، وقيل غير ذالک.

**درویش وایي**: چې اوله معنا د سید جامع د ټولو معاني اخر ده کما لايخفى فهو الحسن في معاني السيد.

**سوال**: یحی ﷺ چې مصدق د عیسیٰ ﷺ سو، نو ددې معنا داده چې یحی امتي د عیسیٰ ﷺ و که څرنګه؟

**ځواب**: یحی ﷺ خپله هم نبي و او مصدق د عیسیٰ ﷺ هم و ولدفع التوهم لمذكور قال الله تعالى "وسيداً" لان السيادة الشرعية هي النبوة وان كان يطلق لفظ السيد مجازاً على السيد الدنيوي كمولى الغلام. وهذا كما ان نبيناﷺ مصدق لموسى وعيسى وسائر الانبياء مع انه صلعم ليس من امتهم.

**پوښتنه**: سید په امور شرعیه وو کې هم غیر د نبي کېدای سي كما ورد في الحديث المتفق عليه في غزوة بني قريضة من اليهود انه لما جاء سعد ﷺ راكباً على الحمار قال عليه السلام للحاضرين قوموا الى سيدكم؟

**ځواب**: په حدیث کې خو سید مضاف دی و لفظ ته د "کم" او کلام په سید مطلق کې د.

## وَحَصُورًا

عطف دی پر ماقبل باندې

**پوه سه:** چې معنا د حضور کما هو المروي عن ابن عباس في احدى الروايات هو الذي لا ياتي النساء مع القدرة على الجماع، او په بل روايت کې د ابن عباس راغلي دي چې معنی د "حصور" عنين ده الذي لا ذكر له يتأتى به الجماع ولا ينزل، روح المعاني وايي چې حفاظ د احاديثو نبويه وو د عليه الصلوة والسلام داسي روايت کړی دی ان ما معه ای مع يحيى من ذكره كان كالانملة" لکه د گوتي سر، او په بعض رواياتو کې لکه پوه شگه او په بل روايت کې کالنوات، قال صاحب روح المعاني والاصح المعنى الاول، لان العنة عيب لايجوز على الانبياء، او بله خبره داده چې "حصوراً" خدای د يحيى د مدح په ځای کې راوړی کسائر صفاته المذكورة ههنا. او عنت که عيب هم نه وي نو صفت خو هم نه دی، وما رواه الحفاظ عنه على التقدير صحته وارد على طريق التمثيل يعنى يحيى چې وطي او جماع ته ميل نه درلودی په سبب د شغل تام په امور دينيه وو سره، نو دده ذكر في عدم الانتفاع به كالشئ الفلاني مما قد مر آنفاً، ځکه بعض مجتهدين وايي چې نكاح نه كول لپاره د فراغ ونوافلو ته د عباداتو افضل دی تر نكاح استدلالاً بحال يحيى. نو که دی عنين وايی نو استدلال ددغو مجتهدينو په حال سره دده څرنگه صحيح کېدی، لعدم قدرته على الجماع. او صاحب د روح المعاني وايي چې د "حصور" معنا دا هم کېدای سي چې دی حصور ووای مبالغ في الحصر لنفسه عن الشهوات مع القدرة عليها، ويدل عليه ما ورد في حديث ولعن الله تعالى والملائكة رجلاً تحصر بعد يحيى ابن زكريا، رواه صاحب روح المعاني.

**درويش وايي:** چې ددې حديث څخه خو صراحةً دا معلومه سوه چې حصر د يحيى اختياري و والا لم يستحق اللعنة من حصر نفسه كحصر يحيى لعدم الاختيار حين ارادة العنين من الحصور، والله اعلم بالصواب.

وَنَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۳۹﴾

او يحيى به نبي وي ناشياً من اصلاب الصالحين. او يا مراد له

صالحینو څخه انبیاء معصومین دي.

او یا معنا د آیت داده چي یحیی علیه السلام به داخل وي په حساب کي د هغو کسانو چي هغو نه صغیره ګناه کړي وي او نه کبیره، نو پر دې تقدیر کلمه د من لپاره د تبعیض ده. وقیل معناه علی الاول انه ذو نسب عظیم. وعلی الثاني انه معصوم وعلی التقدیرین فلا یلغو ذکره بعد قوله نبیاً کما یتوهم کذا علامة بغداد رحمه الله.

# قَالَ

او زکریاء علیه السلام په مناجات کي د خدای جل جلاله سره داسي وویل مع قطع نظر عن بشارة جبرائیل علیه السلام

# رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِىْ غُلٰمٌ

**پوه سه:** چي دا قول د زکریاء علیه السلام له سببه د شک په بشارت کي د جبرائیل نه دی بلکه په سبب د طبع بشري دی لپاره د استبعاد عن مقتضی العادة المستمرة، الالهیه وتعجباً عن تولد الغلام عن مثل زکریاء وزوجته کما سیاتي منشاء والتعجب في الآیة. کل ذالک علی مقتضی الطبع

**سوال:** زکریاء علیه السلام خو نبي و او صاحب د عقل کامل و، نو ده څرنګه و قدرت ته د خدای جل جلاله تعجب کاوه في اعطاء الغلام؟

**ځواب:** ګاهي طبعي حالات پر عقلي حالاتو غالب سي او سړی و تعجب ته ور کش کړي خصوصاً چي منشاء د تعجب موجوده هم وي، نو د زکریاء علیه السلام سبب د استفهام دا و چي پر څه کیفیت به ماته غلام خدای جل جلاله راکړي آیا زه به ځوان سم او د ماینې عقر به مي هم زائل سي یعني هغه به هم ځوان سي، او یا به ماته غلام له بلي نکاح څخه غلام راکوي، او یابه وماته او عقیم ماینې ته پر دغه حال موجوده خدای په خپل قدرت عامه سره غلام راکړي، نو بناء علی هذا انی په معنا د کیفیت د مسئول عنه چي غلام دی هم کېدای سي یعني چي زما له موجوده ماینې څخه به خدای جل جلاله ماته غلام راکړي او په معنا د "من این" هم کېدای سي یعني چي د بلې نکاح څخه به ماته خدای جل جلاله غلام راکوي، وهذا هو الجواب الصحیح، او هغه جواب چي مظهري له سدي رحمه الله څخه نقل کړی دی چي

زکریاﷺ چې نداء د ملکو واورېده شیطان ورته راغلی او ده ته یې دا وسوسه په زړه کې ور واچوله چې دا نداء د خدای له خوا نه ده بلکې د شیطان له خوا ده ولې که د خدای له خوا وای نو تاته یې وحې نه کوله، نو لپاره د دفعې ددغې وسوسې زکریاﷺ دا خواست وکړی انی یکون لی غلام آه.

**درویش وایي:** چې دا جواب علامه بغداد په روح المعاني کې په سختې سره رد کړی دی، او قاضي بیضاوي هم رد کړی دی، دوی وایي لایجوز ان یشتبه علی النبي کلام الملائکة بکلام الشیطان عند الوحي علی الانبیاء علیهم السلام، اذ لوجوزنا ذالک لارتفع الوثوق عن کل الشرائع بانه یحتمل انیکون من القاء الشیطان لا من الله تعالی ولا شک في بطلانه، واجاب عنه بعض المفسرینؒ چې په امورو کې د دین چې معجزات ورسره وي ونبي ته احتمال د القاء الشیطان خو نه پیدا کېږي بلکې نبي اعتماد لري چې دا وحي دي د خدایﷻ له خوا بواسطة الملک ولادخل للیشطان فیه او هر چه نداء ده په مصالح کې د دنیا التي منها اعطاء الغلام فربما لم یتاکد بالمعجزة فلا جرم بقی احتمال انیکون هذا النداء من جانب الشیطان، ولهذا رجع زکریاﷺ الی الله تعالی في السؤال لیزیل هذا الخاطر والاحتمال، الوسي بغدادي په مجمل لفظ سره دا جواب رد کړی ان الاعتراض ذکر یعني نر دی او قوي دی والجواب المذکور بشخه ده یعنې ضعیف دی، آه.

**درویش وایي:** چې تفصیل د قول د بغدادي دادی چې معجزه خو لپاره د اثبات د نبوت د نبي ده په مقابل کې د کافرانو نه د دفع خواطرو له زړه څخه د نبي، ولې که داسې وای نو باید د هر امر دیني د وحي سره معجزه د صدق د وحي لازمه وای ولم یقل به احد فافهم.

**درویش وایي:** چې لپاره د توجیه د سوال د ذکریاﷺ نوري متعددې وجوهې علماء ذکر کړي دي، او آلوسي ټولې راوړي دي او ټولې یې ضعیف ګڼلي دي ان شئت التفصیل فراجع الی روح المعاني.



Scanned by CamScanner

## وَقَدْ بَلَغَنِيَ الْكِبَرُ

**پوه سه**: چې بعض مفسرانﷺ دا عبارت مقلوب بولي ای قد بلغت الکبر یعني فاعل او مفعول یې سره اړولي دي یعنې زه سپین ږیری سوی یم. او روح البیان او روح المعاني پر ظاهر د عبارت ترجمه کړې ده یعنې کبر السن وماته رسېدلی دی، ګویا کبر السن طالب دی او زه یې مطلوب یم والمآل واحد، او دده عمر په دغه وخت کې په قول د کلبي ﷺ دو نیوي (۹۲) کاله و. او ضحاک ﷺ وایي یو سل او شل (۱۲۰) کاله و او ماینه یې د اته نیوي (۹۸) کالو وه.

## وَامْرَأَتِي عَاقِرٌ

او زما ماینه وچه ده.

**پوه سه**: چې په عاقر کې مذکر او مونث سره برابر دی یعنې وچ نر او یا وچه ښځه چې عیال یې نه کېږي.

**فائده**: درویش وایي چې منشاء او سبب د تعجب د زکریاءﷺ هم دغه دوه علته وه چې یو په زکریاءﷺ کې و یعنې کبر السن في الغایة الذي هو سبب عدم الولادة في العادة، او علت یې په ماینه کې و چې وچه وه چې دا هم سبب د عدم الولادة دی په عادت کې.

## قَالَ كَذَٰلِكَ اللَّهُ يَفْعَلُ مَا يَشَاءُ ۝

خدای پاک ورته وویل یعنې په ذریعه د جبرائیلﷺ چې همدغسې کار کوي خدایﷻ چې اراده یې ورته وسي، یعنې چې کبیر السن في الغایة او عاقري ښځې ته عیال ورکړي لان هذا الفعل انموذج من افعاله المقدورة وعجائب قدرته المرئية والمعلومة بالبداهة او بالنظر والاستدلال.

**الاعراب**: کذالک خبر د محذوفي مبتداء دی ای الامر کذالک یعنی یولدلک مع کونک شیخاً وامرئتک عاقر، او یا کذالک خبر دی او لفظ الله مبتداء دی والتقدیر الله کذالک یفعل آه، نو پر دې تقدیر یفعل مایشاء بیان دی د کذالک.



Scanned by CamScanner

قَالَ رَبِّ اجْعَل لِّيٓ ءَايَةً ؕ

نو زکریاء وویل چي خدایه زما ماته یوه علامه ددې راوښیه چي زه به دې یوه سم چي زما ښځي نو اوس حمل واخستی.

**یوه سه**: چي مطلب د زکریاء په ښولو کي د علامې یو خو زیادت سرور او خوشحالي خپل وه، او بل دا چي مبالغه او زیادت په طاعت کي به وکړم شکراً لک علی اجابة المسؤل وهو الغلام.

**سوال**: د زکریاء ځه تلوار و خو یو څو میاشتي وروسته په حمل د ښځي سړی پخپله پوهېږي؟

**ځواب**: چونکه له ډېري زمانې څخه زکریاء په ارمان د غلام و، نو په طلب کي د علامې غرض دده دفع د انتظار وه چي مبشر به کله د مور په حمل کي پیدا سي. جامي وایي

چه خوش باشد که بعد از انتظاری بامید رسد امید واری

او بل دا چي له ابتداء څخه د حمل د خدای ﷻ په شکر لاس پوري کړي تاچي په تام مدة الحمل کي دی شاکر وه اوسي، او هغه خبره چي سدي کړې ده چي زکریاء چي سوال د آیت وکړی ددې لپاره چي ده ته دا معلومه سي چي هغه بشارت اولی د خدای ﷻ له خوا و د شیطان له خوا نه و هغه غلطه خبره ده کمامر سابقاً.

**یوه سه**: جعل" که په معنا د "تصییر" سي؛ یعنې چي دوه مفعوله غواړي، نو مفعول اول یې آیت دی او مفعول ثاني یې لفظ د "لي" دی په اعتبار د متعلق، او تقدیم د مفعول ثاني پر مفعول اول بلا اختلاف بین النحات رواه دی، او که "جعل" په معنا د خلق سي یعنې چي یو مفعول غواړي نو آیةً یې مفعول دی، اولی په محل کي نصب حال دی ای آیةً کائنةً لي.

قَالَ ءَايَتُكَ أَلَّا تُكَلِّمَ ٱلنَّاسَ ثَلَٰثَةَ أَيَّامٍ إِلَّا رَمْزًا ؕ

خدای پاک ورته وویل چي علامه د حمل د ښځي ستا به دا وي چي ته به



Scanned by CamScanner

خبري نه سې کولای د خلګو سره یعني ذکر او تسبیح به ویلای سې صرف له خبرو څخه د خلګو به ممنوع یې مګر نه خبري د خلګو سره به دې په اشاره د لاس وي یا د سر مثلاً.

**پوه سه**: چي له تکلم څخه که مراد معنی متارفه وي نو استثناء د "الا رمزاً" استثناء منقطع ده، او که مراد له تکلم څخه پر طریقه د عموم مجاز مطلق مایدل علی ما في الضمیر وي نو استثناء بیا متصل ده فافهم او دا عدم تکلم به جاري وي درې ورځي. او عطاء رحمه الله وایي چي مراد درې ورځي روژه ده، ولي چي ددوئ په شریعت کي روژه د صمت یعني د خبرو نه کولو مشروع بلکي افضل کار و، او زموږ په شریعت کي روژه د صمت منسوخه ده بلکي مکروه ده کما تقرر في کتب الاحادیث النبویة.

**پوه سه**: چي دا عدم تکلم مع الناس د آفت له سببه نه و وهو الانسب بکونه آیت، او د سورت مریم له آیتو سره هم برابره ده کما سیناتي ان شاء الله تعالی، او ابن جریر و ابن حاتم د جبیر بن معتمر رحمه الله څخه داسي روایت کړی دی چي زکریا علیه السلام به د خلګو سره د خبرو اراده وکړه ژبه به یې پخوله کي ویرسېدله نو خبري به یې نه سوای کولای، نو آیت به دې کي دا و چي په وخت کي د ذکر او تسبیح به یې ژبي ته آفت نه پېښېدی قال العلامة البغدادي رحمه الله وعلی التقدیرین عدم التکلم مع الناس اضطراري اما بغیر آفت في لسانه کما هو الانسب بمنصب النبوة او بسبب عروض الآفت في لسانه کما في روایة ابن جریر علی مامر.

**فائده**: په سورت مریم کي داسي راغلي دي "ثلث لیال" نو ځکه بعض مفسران وایي چي په دې آیت کي مضاف محذوف دی ای لیالي ثلثة ایام لیوافق مافي سورة مریم. والحق ان المراد عدد ستة من الایام واللیالي مجموعاً الا انه اکتفی في بعض الآیات کما ههنا بالایام وفي سورة مریم باللیالي وجعل کل واحد منهما قرینة علی الآخر.



Scanned by CamScanner

وَاذْكُرْ رَّبَّكَ كَثِيرًا وَسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ

او ذکر کوه د خدای ستا ډېر

که کثیراً مفعول مطلق وي نو معنا یې ذکراً کثیراً ده. او که ظرف وي نو معنا یې زماناً کثیراً ده. یعني هغه وخت چي مذکوره علامه تانه ښکاره سي "او تسبیح وایې په وخت کي د عشي" چي له وخته څخه د زوال الشمس شروع سره د بعض شپې پوري، او ابکار د صبح صادق څخه بیا تر څاښته پوري. دا ترجمه د مظهري وه، او آلوسي رحمه الله وایي چي عشي له زوال څخه بیا تر غروب پوري د لمر دغه وخت ته وایي، او روح البیان هم بعینه دا ترجمه کړې ده لکن.

**درویش وایي**: چي ما تولـه تفاسیر چي زما سره موجود وه من البیضاوي وروح البیان وتفسیر القرطبي وتفسیر الامام الرازي والتفسیر الخازن وتفسیر الجمل وغیرها مطالعه کړه او ټولو له ذکر څخه او له تسبیح څخه معنی متعارف مراد کړې ده یعني الله الله الله. یا لا اله الا الله او سبحان الله مثلاً. خو یو امام مظهري دی چي تسبیح یې معنی مجازي کړې ده یعني "صل" او د عشي هغه دمخه معنی چي ما ذکر کړې ده، نو ده ویلي دي یعني صلوة الظهر والعصر والمغرب والعشاء، او د ابکار ترجمه یې په صلوة الفجر کړې ده.

**درویش وایي**: چي دا پنځه لمونځونه په اوقات مخصوصه وو سره خاصه د امت محمدي ﷺ ده. کمایدل علیه حدیث المعراج وامامة جبرائیل له علیه الصلوة والسلام في یومین کما في البخاري ومسلم والسنن الاربعة. البتة ده پنځه لمونځونه متفرق په نورو امتو کي خو وه په بعضو کي یو او په بعضو کي دوه لکن مجتمعاً په بل امت کي هیڅ څوک نه دی ورته تللی، او نه په کوم روایت کي: د احادیثو مبارکه وو راغلي دي او نه هیڅ صحابي رضي الله عنه یا تابعي رحمه الله ددې پنځو لمونځو په نورو امتو کي پخلی کړی دی.

**درویش وایي**: چي والله اعلم چي ولي مظهري رحمه الله تفسیر د ذکر او تسبیح په دین کي د زکریاء علیه السلام په دغو پنځو لمونځو سره کړی دی ولعل لکلامه وجه لا نعلمه فان المظهري بحر زاخر والفقیر بالنسبت الیه کالحباب والی الله المرجع والمآب

**درویش وایي**: چي نهایت توجیه د کلام د مظهري رحمه الله داده چي دغه پنځه لمونځونه چي پر امم سابقه فرضیت متفرق و کمامر آنفاً لکن په وروستنیو امتو کي یې اوقات معلوم وه کډ څه هم د لمونځو فرضیت نه و، نو مراد دده دادی چي خدای ﷻ زکریا علیه السلام امر کړی چي ته په شکرانه کي زیږي د غلام او یا د هغه په استقرار په رحم کي د مور نوافل لمونځونه په دغو اوقاتو مخصوصه وو کي کوه لان لتلک الاوقات فضیلة علی سائر الاوقات کمالایخفی فتفکر وتشکروا الله الملهم.

**پوه سه**: چي زکریا علیه السلام مامور بالذکر والتسبیح و په دغو درو ورځو کي د بندیز، او یا په ټولو ورځو کي د حمل تاچي برکات ددې ورځو د حمل وغلام ته سرایت وکړي

**فائده**: امام رازي رحمه الله وایي په تفسیر کي ددې آیت واذکر ربک کثیراً چي په دې کي دوه قوله دي، یو دادی چي خدای ﷻ دی مبتلاء کړی په حبس اللسان سره په امورو کي د دنیا الا رمزاً، او په ذکر او تسبیح کي یې ژبه ډېره بنه چلېدله وهذا من المعجزات الباهرات له علیه السلام کما لایخفی، او دوهم قول دادی چي مراد له ذکر څخه ذکر قلبي دی. ولي هغه کسان چي غرق په دریاب کي د معرفت د خدای ﷻ وي د هغو د اول الامر څخه به عادت دا و چي همېشه والی به یې پر ذکر الهي په ژبه سره کاوه مدة مدیدة لکن مع حضور القلب لا بذکر من قیل في شانه. بیت

برزبانت یا صمد پیدا ودردل یاصنم ای بباطن کافر ظاهر مسلمانی چه سود

چي زړه به یې له نوره څخه د ذکر د خدای ﷻ ډک سو په ژبه به ساکت سو وبقی الذکر في القلب، ولهذا قالوا من عرف الله کل لسانه، وقیل آن کس که خبر شد خبرش بازنیامد، نو د زکریا علیه السلام چونکه د ذکر لساني واریې تېر سو کمافي قوله "دعاء زکریا ربه قال رب هب لي من لدنک آه" نو په ذکر قلبي او استحضار باطني خدای ﷻ امر کړی، شاه نقشبند رحمه الله چه خوش میفرماید

لب به بند وگوش بند وچشم بند گرنه بیدی سر حق برما بخند



Scanned by CamScanner

**فائده**: روح البیان وایي چي ذکر پر څو مرتبې دی او ذکر لساني نسبتاً وذکر قلبي ته تنزل دی، په یوه روایت کي راغلي دي چي عیسی علیه السلام چي د ذکر قلبي په دریاب کي غرق و او اعلی مراتبو ته د ذکر رسېدلی و شیطان ورغ پر وکړی یا عیسی اذکر الله او عیسی علیه السلام ته څو معلومه سوه چي دا ورغ خو د شیطان دی، نو تعجب یې ودې ته وکړی چي شیطان څرنګه امر په ذکر سره وکړی او سره د دې چي خلقت د شیطان څو پر منع دی له ذکر څخه، وروسته تر تامل عیسی علیه السلام ته دا ظاهره سوه غرض اغوا وه دده چي د اعلی مرتبې څخه د ذکر قلبي تنزل ورکړي وذکر لساني ته وذالک کان تنزلاً بالنسبة الی مقامه الذي کان فیه من الاستغراق في الذکر القلبي، او امام قشیري رحمه الله وایي چي ذکر لساني بالقلب الحاضر بنده رسوي وهمېشه توب ته د ذکر قلبي فاذا کان العبد ذاکراً بلسانه وقلبه فهو الکامل في السلوک، انتهی، او سهل بن عبدالله رحمه الله وایي چي ما من یوم الا والجلیل سبحانه ینادی عبدي ما انصفتني اذکرک وتنساني وادعوک الي وتذهب الی غیري واذهب عنک البلایا وانت معتکف علی الخطایا یا ابن آدم ماتقول غداً اذا جئتني انتهی کلامه الشریف، او حسین رحمه الله وایي چي حلاوت او خوند خدای جل جلاله په درې شیانو کي نغبښتی دی، په لمانځه کي، په ذکر کي او په قرائت کي د قرآن عظیم الشان، نو که چا په دغو درو شیانو کي خوند او حلاوت ومندی نو هغه کامل انسان دی والا فاعلموا ان الباب مغلق.

وَإِذْ قَالَتِ

**یوه سه**: چي دا جمله معطوفه پر هغه جمله اذ قالت امرئة عمران آه.

الْمَلَائِكَةُ

یعني جبرئیل شفاهاً

يَا مَرْيَمُ إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَاكِ

چي ته خدای جل جلاله مختاره کړې یې لپاره د ځان



Scanned by CamScanner

**درویش وایي:** چې ددې په تفسیر کې د مفسرینو عظیم اختلاف دی یعنې چې ښځه نبي کېدای سي او که نه؟ نو فقیر به د خو تفاسیرو عبارتونه رانقل کړي په نفي او اثبات کي، تفسیر مظهري ای اختارک لنفسه بالتجلیات الذاتیة التي عبرها الصوفیة بکمالات النبوة وهي بالاصالة للانبیاء علیهم السلام وبالتبعیة للصدیقین وکانت مریم صدیقة. قال الله تعالی في شان عیسی وامه صدیقة

**درویش وایي:** چې مظهري په داسې عبارتو کې بېله حوالې تابع د مکتوبات شریف دی. لکن ددې عبارت حاصل دادی چې مریم نبي نه و ویدل علی عدم نبوتها حدیث علي قال سمعت النبي خیر نسائها ای الامم السابقة مریم بنت عمران وخیر نسائها خدیجة ای نساء هذه الامة متفق علیه، نو خدیجة زوجة النبي خو اتفاقاً نبي نه وه، نو مریم هم نبي نه و نعم هما صدیقتان، وعن انس ان النبي قال حسبک من نساء العالمین مریم بنت عمران وخدیجة بنت خویلد وفاطمة بنت محمد وآسیة امرئة فرعون رواه الترمذي، نو فاطمة خو بالاتفاق نبي نه وه او داغه رنګه خدیجه بنت خویلد هم نبي نه و اجماعاً، نو مریم بنت عمران او آسیه امرئة فرعون هم نبیاني نه وي، وفضل عائشة علی النساء کفضل الثرید علی سائر الطعام متفق علیه. نو عائشه خو نبي نه وه او علیه السلام تر ټولو نساء بالا وېلل نو که مریم بنت عمران او اسیه امرئة فرعون نبي وایی یلزم تفضیل غیر النبي علی النبي ولم یقل به احد، روح البیان. وکلام جبرئیل مع مریم لم یکن وحیاً الیها لتکون نبیاً فان الله یقول وما ارسلنا من قبلک الا رجالاً نوحي الیهم ولانبوة في النساء اجماعاً فکلام جبرنیل معها شفاها کان کرامة لها. وکرامات الاولیاء حق کمامر تفصیله من الفقیر. او یا کلام شفاهي د جبرنیل مع مریم کان ارهاساً-ای مقدمة لنبوة عیسی. د ارهاس معنا لاندې تادای دی د دېوالـه، او په اصطلاح کې ما یتقدم علی دعوی النبوة مایشبه المعجزة کاظلال الغمام لرسول الله یعني في سفر الحر قبل دعوی نبوته وتکلم

الحجر والمدر معهﷺ بالتسليم عليه قبل دعوى النبوة كما ثبت في الأحاديث الصحيحة، وقصة الفيل كما هو المشهور وسيناتي تفضيلها في موضعه ان شاء الله تعالى وغير ذالک کل ذالک كانت ارهاسات لنبوته عليه السلام، او يا معنا د اصطفک داده تقبلک من امک بقبول حسن ولم يتقبل غيرک انثى في خدمت بيت المقدس ورباک في حجر زكرياعليه السلام ورزقک رزق الجنة واكرمک بالكرامات السنية.

**درويش وايي**: وجميع ذالک لا يدل على نبوتها انتهى مع زيادة، بيضاوي كلموها اى الملائكة شفاهاً كرامةً لها، ومن انكر الكرامة كالمعتزلة زعم ان الكلام المذكور كانت معجزة زكرياء او ارهاساً لنبوة عيسى فان الاجماع على انه تعالى لم يستنبئ المرئة نبياً لقوله تعالى وما ارسلنا من قبلک الا رجالاً. وقيل كان كلام الملائكة الهاماً لاشفاهاً واول الاصطفاء لمريم تقبلها من امها ولم يقبل قبلها انثى يعني لخدمة بيت المقدس، والثاني تفريغها للعبادة، والثالث اغنائها برزق الجنة من الكسب، والرابع تطهيرها عما يستقذر من النساء، والخامس هدايتها وارسال الملائكة اليها، والسادس الولد من غير اب وتبريتها عما قذفتها به اليهود من الزنى بانطاق الطفل، والسابع جعلها وابنها آية للعالمين.

**درويش وايي**: چي دا دى بيضاويِ چي له نبوت څخه د ښځو صراحةً منکر دى نعم ولايت بعضهنّ كماذكرت في القرآن والآحاديث النبوية لاينكر ههنا الا جاهل كافر.

او په بخاري او مسلم کي د عائشةرضي الله عنها څخه روايت دى چي عليه الصلوة والسلام وفاطميرضي الله عنها ته وويل ته نه يې راضي په دې چي سرداره د ښځو د اهل جنت يې او يا د نساء المؤمنين، او درويش وايي چي فاطمهرضي الله عنها خو نبي نه وه، نو كه مريم او يا آسيه وغيرهما نبيانې واى نو په جنت سره تفضيل د فاطميرضي الله عنها څرنګه پر هغو روا دى، او له ابن عباسرضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول اللهﷺ وويل افضل النساء اهل الجنة خديجة بنت خويلدرضي الله عنها او فاطمة



Scanned by CamScanner

بنت محمد، رواه ابو داؤد والنسائي والحاكم، وعن حذيفة ان النبي چي
يوې ملكې په آسمان كي له خداى څخه اجازه وغوښتل چي ماته سلام
ووايي او ماته زيرى وكړي چي فاطمه سيد د نساء د اهل الجنة ده.

**درويش وايي:** چي ددغو احاديثو په رڼا كي دا معلومه سوه چي فاطمه
افضله ده تر مريم لان النساء اهل الجنة لفظ عام لايقبل التخصيص بزمان
دون زمان بخلاف قوله تعالى في حق مريم "اصطفك على نساء العالمين"
ولي چي په دې آيت كي احتمال ددې سته چي مراد دې نساء د زمانې د
مريمې وي، په هر صورت فاطمه خو نبي نه ده بالاتفاق نو مريمه وغيرها
به څرنګه نبي سي.

**فائده:** درويش وايي چي بيضاوي او روح البيان او مظهري چي دعوى د
اجماع الامة كړې ده پر دې چي نبي ښځه نه سي كېداى يعني د خداى
تقدير داسي نه دى راغلى چي ښځه دي نبي كړي، او په فقه شريفه او اصول
الفقه كي وايي چي اجماع لره سند ضروري دى يا حديث يا اشارة النص وغير
ذالک، نو دغه احاديث مباركه چي دلته د صحيح كتابو په روايت تاسي
واوريده دا سند دى د اجماع پر عدم استنباء الله النساء.

**درويش وايي:** چي اوس نو غور ونسي! وكلام ته د علامه بغدادي في روح
المعاني حيث قال في ج ٣ ص ١٥۴ واستدل بهذه الآية يعني واذ قالت
الملائكة الآية من ذهب الى نبوة مريم لان تكلم الملائكة مع احد يقتضى
النبوة، او امام لقاني وايي چي تكلم د ملكو مستلزم نبوت لره نه دى.
ولي دداسي چا سره خبري كړي دي چي هغه اجماعاً نبي نه و لكه په يو حديث
طويل كي چي راغلي دي چي يو سړى روان و لپاره د زيارت او ملاقات د
خپل ورور چي ورور يې في سبيل الله و، نو په لاره كي ملكه ورته ولاړه وه او
هغه سړي ته يې خبر وركړى چي خداى د تا سره محبت لري لكه ته چي يې
ددغه ورور سره لرې في سبيل الله ولم يكن ذالک الرجل نبياً اتفاقاً.

علامه بغداد وايي چي بعض علماء پر عدم نبوت د ښځو په اجماع سره

دلیل وایي کمامر في کلام البیضاوي و روح البیان، نو دی وایي چي حکایت د اجماع ډیره نادره خبره ده، ولي د څو ښځو په نبوت کي خلاف مشته لکه حواء، آسیه، وام موسی، وساره وهاجره، ومریم، نو سره د وجود د اختلاف د علماؤ څرنګه اجماع منعقده کېدای سي.

**درویش وایي**: چي د مخه موږ هغه احادیث مبارکه ذکر کړه چي سند د اجماع کېدای سوای بلکي هغه احادیث مبارکه هر یو دلیل د عدم نبوت کېدای سي، کمامر من هذا العاصي مراراً في بیان تلک الاحادیث، نو موږ ویلای سو چي دا اختلافات حادث بعد الاجماع دي، نو اجماع ته تاوان نه لري. او بیا بغدادي رحمه الله زیاته کړې ده خصوصاً في مریم فان القول بنبوتها شهیر بل مال الشیخ تقي الدین السبکي في الجلیات الی ترجیح القول بنبوتها او ابن السید وایي چي ذکر ددې في سورة الانبیاء قرینة قویة لنبوتها آه.

**درویش وایي**: چي روح البیان او نورو مفسرینو رحمهم الله دا قول د خدای ﷻ "وما ارسلنا قبلک الا رجالا آه" دلیل ګرځولی دی پر نفي د نبوت په ښځو کي، آلوسي بغدادي رحمه الله دا استدلال رد کړی وقال لایصح الاستدلال المذکور لان المذکور فیها الارسال وهو اخص من الاستنباء ولا یلزم من نفي الاخص نفي الاعم.

**درویش وایي**: چي دده خیال دادی چي له رسالت څخه مراد هغه معنا اخص ده یعني چي رسول هغه څوک دی چي صاحب د شریعت متجدد وي، او نبي عام دی که نوی شریعت لري او که نه کانبیاء بني اسرائیل بعد موسی کانوا علی شریعت موسی فهم انبیاء ولیسوا برسل، چي رسولان په دې معنا صرف درې سوه دیارلس (۳۱۳) نو مذکوره ښځي دي انبیاء وي او رسولاني دي نه وي.

**درویش وایي**: چي دا توجیه د آلوسي رحمه الله له انصاف څخه لېري خبره ده، ولي ټوله مفسرین تقریباً د آیت مذکوره ترجمه د رسول په معنا مرادف سره د نبي کوي، وقد جاء الرسول بالمعنی المرادف للنبي ایضاً باتفاق اهل اللغة والتفسیر والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب.



Scanned by CamScanner

**درویش وایي:** ويرد ما قال الآلوسي ما في الصحيحين من حديث مسور بن مخرمة من قوله عليه السلام "فاطمة بضعة مني" يعني يوه ټوټه زما ده الى اخير الحديث، وعند احمد والترمذي والحاكم عن ابن الزبير نحوه وهذا الحديث يدل على فضل فاطمة على جميع الرجال والنساء، كما قال مالك لا نعدل ببضعة رسول الله احداً، لكن جمهور اهل السنة والجماعة خص من هذا الحديث من علم فضلهم قطعاً من الانبياء، وبعض الصديقين كالصديق الاكبر وبقي من سواهم في العموم هذا ماقال المظهري.

**درویش وایي:** چي هر څوک د اظهار د خپلي عقيدې حق بجانب دی، نو د درویش هم دا عقیده ده چي نبوت محصور په رجال کي دی او صدیقیت عام دی، او د فاطمة الزهراء په باب کي هم د درویش ورته عقیده ده، د مظهري او د روح البيان وغيره ومن الله التوفيق.

وَطَهَّرَكِ وَاصْطَفَاكِ عَلَىٰ نِسَاءِ الْعَالَمِينَ ﴿٤٢﴾

او ته يې پاکه کړې يې له ګنهو څخه يا په عصمت او يا په مغفرت، او يا يې پاکه کړې يې له مس څخه د شیطان عند الولادة كمامر من حديث ابی هريرة برواية البخاري ومسلم وغيرهما، او يا يې پاکه کړې يې له مس څخه د رجالو يعني بالوطي، وماقيل من الحيض فليس بشيئ؛ او تاته يې فضل درکړی دی پر ښځو د عالمينو يعني عالمي زمانها.

**درویش وایي:** چي مونږ تخصيص د عالمینو د زماني ددې وکړی تاچه ددې آيت او مامر من الآحاديث النبوية المروية بطريق متعددة صحيحة تر منځ تعارض را نه سي، ولي چي هغه تخصیص نه قبلوي فتامل فيمامر

**درویش وایي:** چي صاحب د روح البيان نساء العالمين پر حقيقت عموم باندې اېښی دی، لکن د اصطفاء معنا يې دا کړې ده چي تاته عيسى بېله پلاره درکړی دی ولم يكن ذالک لاحد من نساء العالمين وجعلكما آية للعالمين، "وهذا توجيه وجيه يدل على قدرته تعالى الباهرة واصطفاء لحظرة مريم بتلك النعمة بالقدرة العظيمة.



Scanned by CamScanner

يٰمَرْيَمُ اقْنُتِيْ لِرَبِّكِ وَاسْجُدِيْ وَارْكَعِيْ مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ﴿۴۳﴾

اې مريمې طول القيام كوه په لمانځه كې لپاره د شكر د نعم ظاهره وو او باطنه وو د خداى ﷻ پر تاباندې او سجده كوه او ركوع كوه، ذكر كل مراد خندې جزء دى، يعنې لمونځ كوه په جماعت د نورو لمونځ كونكو سره

**پوښتنه:** سجده يې ولې مقدمه كړه تر ركوع مع ان الترتيب الخارجي عكس ذالك؟

**ځواب:** ددې لپاره چې سجده افضل د اركانو د لمانځه ده واقصى غاية الخضوع ولا يقتضى الترتيب الذكري كون الترتيب الخارجي كذالك فيكون العطف للترقي من الافضل الى الفاضل، او يا ددې لپاره چې د ركوع ذكر له راكعين سره يو ځاى سي، او هغه چې بعض مفسرانو ويلي دي چې په لمونځ كې د شريعت د زكريا ؑ سجده تر ركوع له مخه وه د هغه جواب كوم ثبوت نسته.

**فائده:** په ركوع او سجده سره چې له لمانځه څخه تعبير كوې حكمت يې دادى چې مصلى چې دركوع او سجدې مراعات نه كوي يعنې د شريعت سره برابر يې نه كوي هغه گويا لمونځ نه دى كړى، ولهذا قال عليه السلام لشخص لم يراع الركوع والسجود والقومة من الركوع والجلسة بين السجدتين صل فانك لم تصل رواه البخاري ومسلم في حديث طويل، او بعض مفسرين وايي چې مراد له قنوت څخه دوام پر طاعت كول دي كما في قوله تعالى امن هو قانت انا والليل ساجداً وقائماً، اى مداوم في ساعات الليل حال كونه ساجداً وقائماً، او له سجود څخه لمونځ مراد دى كما في قوله تعالى وادبار السجود يعني وروسته تر لمانځه، او له ركوع څخه خشوع مراد ده.

ذٰلِكَ

اى ما ذكر من القصص وهو مبتداء.

مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ

اى من اخبار الغائب عنك هو خبر المبتداء.



Scanned by CamScanner

## نُوْحِیْهِ اِلَیْكَ

موږ يې وحي کوو تاته، خبر بعد الخبر دی او يا حال دی.

## وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ يُلْقُوْنَ اَقْلَامَهُمْ

او ته نه وې اې محمدﷺ په نيږ د دوئ هغه وخت چې احبارو د بيت المقدس خپل قلمان اچول يعنې وه ولې ته لپاره د قرعه اندازۍ د مريمې پر تربيت کولو، کمامر تفصيله.

**پوه سه:** چې په دې آيت کې دليل دی پر دې چې آنحضرتﷺ نبي بر حق دی او صاحب د وحي دی له طرفه څخه د خدایﷻ رداً على منكري نبوتهﷺ وان مايقوله افتراء على الله من عند نفسه وكونه اساطير الولين وتوجيه الاستدلال، چې اسباب د علم درې دي، العقل، و السماع، والحس، او دا بدهي خبره ده چې قصې د تېرو امتو خو په عقل سره نه معلومېږي، او چونکه عليه السلام دوئ يعنې منکرينو ته هم معلوم و چې "امياً" و نو دا قصې له اورېدو څخه په کتابو کې د تاريخ هم معلوم الانتفاء عندهم وه فبقی احتمال الحس يعنې چې عليه السلام دي داقصې په سترگو ليدلي وي، او هيڅ عقل دا نه سي ويلای چې عليه الصلوة والسلام له چشم ديد څخه بيان کوي، نو دا معلومه سوه چې بيان د قصص د امم ماضيه وو چې عليه الصلوة والسلام يې مطابق د تواريخو سره د هغو قصو کوي دا معجزه ده د عليه الصلوة و السلام، او هم دا بيان القصص دليل قطعي د نبوت دده دی او دا قصص وحي الهي دي.

## اَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ

چې څوک به کفالت د تربيت د مريم کوي، او يا معنی دا چې څوک به خان ته ضموي مريم

**پوه سه:** چې دا جمله استفهاميه ده متعلقة بمحذوف دل عليه ماقبله ای يلقون اقلامهم يقولون ايهم يكفل مريم



Scanned by CamScanner

وَمَا كُنتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يَخْتَصِمُونَ ﴿٤٤﴾

او ته وې اې محمدﷺ په حضور کې د احبارو د بیت المقدس چې د دوی په کفالت کې د مریم اختلاف و. یعنې بلکې په وحي الهی تا ته معلومه شو، فانک نبي بالحق لوکان الیهود والنصاری یعقلون ویترکون التعنت والعناد الناشي من علمائهم خوفاً علی الربانیة.

**تذنیب**: پوه سه چې صاحب د روح البیان په تفسیر کې د آل عمران ص ۳۳ کې داسې وایې چې اهل کمال په رجال کې ښځې ډېر دي، او ونهایت ته د کمال غیر له دغو څلورو ښځو چې په حدیث کې د انس ﷺ راغلي دي نه دي رسېدلي، مریم بنت عمران خدیجة بنت خویلد . فاطمة بنت محمدﷺ او آسیة امرئة فرعون.

**پوه سه**: چې دی وایي معنا د کمال پای ته رسېدل دي په فضائلو او اعمالو کې د بر او د تقوی، وحسن الخصال والکمال في شئ مایکون حصوله للکامل اولی من غیره والنبوة لیست اولی للنساء لانّ مبناها ای النبوة علی الظهور والدعوت للناس ای علی رؤس الاشهاد والمقابلة مع الکافرین جهرة او حال د ښځو خو مبني پر ستر دی فلا تکون النبوة في حقهن کمالاً بل الکمال في حقهن الصدیقیة، وهي قریب من النبوة والصدیقین من صدق في جمیع اقواله وافعاله واحواله فمن النساء، کاملات عارفات واصلات الی مقام الرجال فهن رجال في المعنی، د بعض اولیاء الله څخه چا پوښتنه وکړه چې ابدال اولیاء څو کسه دي هغه ورته وویل اربعون نفساً سائل ورته وویل چې نفس خو عام دی نر او ښځې ته، ولې دې اربعون رجلاً ونه ویل؟ ولي الله ورته وویل چې په ابدالو کې ښځې هم سته ویناسب هذا، دا حکایت دی چې ام محمد والدة الشیخ ابي عبدالله بن الحنیف رحمهما الله تعالی، دا ډېره عابده ښځه وه او ددې زوی ابو عبدالله به اخیرې شپې د روژې به یې تمامه شپه بیداري کوله په عبادت کې لپاره د طلب د لیلة القدر، او عادت دده دا و چې لمونځ به یې

کاوه پر بام باندي په امید ددې چې ګوندي انوار د لیلة القدر به پر بام به ښکاره سي، او مور به یې متوجه وخدای ﷻ ته وه په عبادت سره په خونه کې، نو په شپه د لیلة القدر دې انوار ولیدل په خونه کې، نو زوی ته یې ورنغرې کړې یا محمد چې هغه شی چې تا طلب کاوه پر بام باندې هغه دادی چې په خونه کې ښکاره سو نو ژر راسه، نو شیخ په ډېر تلوار له بامه څخه را کښته سو فرئ انوار لیلة القدر في بیت الام، نو شیخ د مور پر پښو پرېوتی او پښې یې ور مچ کړې، نو شیخ وویل چې په قدر د مور دلته خبر سوم چې انوار د لیلة القدر مي ددې په خونه کې ولیدل، نو باید سړی فکر وکړي چې ځرنګه مور له صدیقاتو څخه وه هدایت یې وخپل زوی ته وکړی، او ځرنګه دا بالا سوه پر خپل زوی په فضل او شرف کې سره د کثرت د زوی په ریاضت کې او په عبادت سره چې زوی یې په شیخیت سره منل سوی شخصیت و. په اخیر کې روح البیان وایي فظهر ان من النساء من هي افضل من الرجال وذالک بالوصول الی جناب القدس ولیس ذالک الا بحسن الاستعداد والهدایة الخاصة ولیس ذالک دلیل بنوة هذه المرئة بلا خلاف اسعدنا الله وایاکم بهذه السعادة نعوذ بالله من نساء زماننا حیث لایری فیهن من هي من اهل التقوی فضلاً عن مقام الصدیقیة.

**درویش وایي:** چې د صاحب د روح البیان وفات خو په سنه ۱۱۳۷ ه کې سوی دی، نو که ده د سنه ۱۴۲۶ د زمانې د ښا وخوا ښځو حالات لیدلای نو به یې څه ویلای، چې هغه ښځې مصداق دهغه حدیث نبوي دي چې علیه السلام وایي دوه صنفه د دوږخیانو دی چې ما نه دی لیدلی یعني في عصره ﷺ لطهارة ذالک العصر یوه برخه یې ده نرو بیان کړې ده، او بل ده د ښځو په برخه کې داسې ویلي دي "کاسیات" یعنې کالي خو یې ظاهراً اغوستي وي "عاریات" وي په معنا کې له لباس څخه د تقوی او بعض اهل حدیث وایي چې داسې نازک کالي یې اغوستي وي چې بدنونه یې تر معلومېږي.

**درویش وایي:** چې یو داسې قمیصان په ښځو کې اوس رواج دی ټر



Scanned by CamScanner

پیغلانو او تر مرو والا وو پورې بلکې تر اکثره سپین سرانو پورې چې دا قمیصان د سینه لخ په نامه شهرت لري یعني تر تیو پورې بې سینه بالکل لخ وي چې د محرم نظر هم نه وي ورته روا "ممیلات" یعني میل ورکونکي ای ونرو ته وخپلو خانو ته د سترګو په اشاراتو او د نورو اوضاعو په دعوت چې کاسیان د زناء په هغو اشاراتو پوهېږي "مائلات" او ددوی میل وبېګانه نرانو ته وي "روسهن کاسنمة البخت" او سرونه ددوی یعني ویښتان د سرو بې دا سې جوړ کړي وي لکه بوکان د مایه اوښانو "المائلة" چې دا بوکان پر یوه طرف مائل وي "لایدخلن الجنة ولا یجدن ریحها وان ریحها لیوجد من مسیرة کذا وکذا" دوی نه سي ورتلای جنت ته او نه د جنت بوی دوی ته رسیږي. او په تحقیق چې بوی د جنت د لېرې لېرې مصافت څخه معلومېږي یعني پر سړي ولاړېږي انتهى.

## إِذْ قَالَتِ الْمَلَٰٓئِكَةُ يَٰمَرْيَمُ

**پوه سه:** چې دا جمله بدل ده د هغه جملې اذ قالت الملائکة یا مریم او تر هغه وروسته جملې ټولې معترضې جملې وې لپاره د احسان پر علیه الصلوة والسلام، په سبب د وحي پر ده او لپاره د تنبیه پر جهل د کفارو او عناد د دوی.

**پوه سه:** چې مراد له ملائکه وو څخه جبرئیل ﷺ دی او جمع بې تعظیما ده کما مر.

## إِنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ اسْمُهُ الْمَسِيحُ

په تحقیق سره خدای ﷻ تاته زېری کوي یعني خوشحاله کوي دې په یوه کلمه سره

**پوه سه:** چې مراد له کلمې څخه په اتفاق د مفسرینو عیسی ﷺ دی او اطلاق د کلمې پر عیسی قسم د اطلاق د سبب پر مسبب دی، ولې چې سبب د وجود دده کلمه د کن ده علی ماجرت به العادة الآلهیة کما قال الله تعالی "انما امره اذا اراد شیئا ان یقول کن فیکون.



Scanned by CamScanner

**سوال**: خدای ﷻ خو ټوله شیان په کلمه د "کن" پیدا کوي کما دلت علیه الآیة المذکورة، نو تخصیص د اطلاق د کلمه په عیسی پورې څه وجه لري؟

**ځواب**: چونکه حدوث او وجود د عیسی علیه السلام پر وجه متعارفه نه وو چې د پلار له نطفې څخه دي له موره پیدا سي، نو اسناد د حدوث دده وکلمې ته د کن اولی او اکمل دی تر اسناد د نورو شیانو چې پر وجه متعارفه پیدا کېږي په کلمه د "کن" نو هم په دغه سبب عیسی عین کلمه وبلله.

**پوښته**: چې د اسمه ضمیر راجع دی وکلمه ته په اعتبار د معنا چې مراد څنې عیسی علیه السلام دی، او لفظ د "منه" صفت د کلمه دی ای کلمة کائنة منه او ضمیر د منه راجع والله ته دی، او اسمه مبتداء ده او المسیح یې خبر دی، او ټوله جمله صفت اخری د کلمه ده.

**فائده**: مسیح لقب دی له القابو څخه د فخر لکه صدیق د ابوبکر رضی الله عنه لپاره او فاروق د عمر رضی الله عنه لپاره، او دا لفظ له عبراني څخه وعربي ته رانقل سوی دی په تغیر سره، ولي اصل یې شیخاً وچې په عربي یې معنا مبارکه ده لکن صاحب قاموس فیروز آبادي وایي چې مسیح د خدای ﷻ په مخلوق کې مبارک ته هم وایي او ملعون ته هم وایي فهو من الاضداد ای یطلق علی الضدین والمسیح عیسی علیه السلام سمی به لبرکته والدجال لشومه وملعونیة انتهی او بعض اهل تفسیر وایي چې عیسی علیه السلام یې په دې سبب مسیح وباله چې دی پاک سوی و له نجاساتو څخه د مني او رحم، او داغه رنګه دی پاک سوی دی له ګنهو څخه او ابن عباس رضی الله عنه وایي چې مسیح یې په دې وباله قبل الولادة چې ده به وروسته تر نبوت هر مریض مسح کړی خدای پاک به جوړاوه کماسیناتي فهو في المعنی بشارة اخری لمریمه، او بعض وایي چې مسیح یې په دې بولي چې ده پر یوه ځای قرار نه درلودی نن دلته صبا هلته، وفي القاموس المسیح الکثیر السیاحة، او څوک وایي چې د مسیح الدجال څخه ټوله خصال محموده زائل کړه سوي من الایمان والعلیم والعقل والحلم وسائر الخصال الحمیدة، او له مسیح عیسی څخه زائل کړه سوي وه ټوله خصال زمیمه بالکلیة من الجهل

والحرص والبخل وغیر ذالک وهذا معنی ماقیل علی وجه المعمی ان المسیح الدجال لعنه الله ممدوح الیمنی، والمسیح عیسی ﷺ ممسوح الیسری فتامل، او صاحب قاموس وایي چي ماذکر کړي دي د اشتقاق د لفظ مسیح لپاره پنځوس قوله زما په شرح کي د مشارق الانوار.

## عِیْسَی ابْنُ مَرْیَمَ

**پوه سه:** چي عیسی معرب دی د الیشوع چي معنی یې سید دی.

**فائده:** عیسی خبر بعد الخبر دی د اسمه. او یا خبر د محذوف مبتداء دی ای هو عیسی، او یا بدل دی له مسیح څخه.

**پوه سه:** چي مسیح اسم لقب دی د عیسی او عیسی یې اسم محض دی، او ابن مریم یې کنیت دی لـه ابن الزبیر او ابن عباس وغیرهما، وایي چي په ابن مریم دده پوره تمیز کېدی کما هو الشرط في الکنیة یعني هر زوی ته د زبیر یا د عباس د کنیت په توګه ابن الزبیر او ابن عباس نه ویل کېږي بلکې فقط عبدالله بن الزبیر او عبدالله بن عباس ته ویل کېږي لشهرتهما وتمیزهما بهذین الاسمین دون سائر ابنائهما.

**پوښتنه:** نومان د عیسی درې ذکر سوه، نو ولې اولاً اسمائه نه وویل سو؟

**ځواب:** لفظ د اسم اسم جنس دی او اضافت یې ضمیر ته استغراقیه دی فیشمل الکل ویصح حمل الاسماء الثلثة علیه اجتماعاً وانفراداً، او دا هم روا دی چي ابن مریم دي د اعراب په اعتبار له اسم څخه قطع وي بلکې خبر د محذوف مبتداء دي وي ای هو ابن مریم.

**پوښتنه:** ملکو خو خطاب د مریم سره کاوه نو یې ولې ابن مریم ذکر کړی یعني داسي یې نه وویل ابنک؟

**ځواب:** په اضافت کي ودي ته تنبیه ده پر دې چي دا زوی ددې به پلار نه لري ولې اولاد چي پلار لري نو نسبت یې پلار ته په عرف کي کېږي یعني ابن فلان یا بنت فلان او مور ته یې نسبت نه کېږي بخلاف الاضافة الی الضمیر فانه تجوز الاضافة الی ضمیر الام علی تقدیر وجود الاب ایضاً فتذکر فانه سانح عزیز



Scanned by CamScanner

**سوال:** اسم د عیسی خو یوازي عیسی و او مسیح خو یې لقب و او ابن مریم خو یا کنیت او یا صفت فکیف یصح حمل قوله المسیح عیسی بن مریم علی قوله اسمه؟

**ځواب:** د اسم یا معنا نحوي مراد ده ای مادل علی معنی نفسه غیر مقترن باحد الازمنة الثلثة، والثلثة اسم بهذا المعنی ولیس المراد به مقابل اللقب والکنیة کمامر او یا مراد له اسم څخه معنی لغوي ده ای العلامة علی المسمی فالمعنی العلامة الدالة علی المسمی والمراد من الکلمة هي هذا الثلاثة فتدبر.

## وَجِيهًا فِي الدُّنْيَا

یعنې شریف به وي خاوند د جاه او قدر به وي په دنیا کې په نبوت سره او په اطاعت د خلګو ده لره.

**پوه سه:** چې وجیهاً حال له کلمه څخه دی. او د تذکیر وجه یې هغه ده چې مورِ دمخه ذکر کړه چې معنی د کلمه مذکر ده یعنې عیسی.

**سوال:** حال له نکرې څخه خو نه دی روا الا اذا قدم علی ذی الحال کما تقرر في النحو؟

**ځواب:** حال خو له نکره محضه څخه نه دی روا دلته خو کلمه موصوفه ده په منه سره کمامر من قبل.

**سوال:** په نحو کې وایي چې زمانه د حال او عامل به سره یو وي او دلته خو عامل د ذی الحال یبشرک دی، او زمانه د وجیهاً خو بعد النبوة ده وبینهما سنون؟

**ځواب:** داسې حال ته مقدره وایي یعنې په تقدیر کې د خدای ﷻ وجاه ته دعیسی په زمانه کې د بشارت سوی و وامثلتها کثیر

## وَالْاٰخِرَةِ وَمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ

او په اخیرت کې به ذا جاه وي بالشفاعة للامة او په سبب د لوړو درجو په جنت کې او د خدای ﷻ له مقربو بندګانو څخه به وي بالقرب الدائمي مع الله ﷻ.



Scanned by CamScanner

**پوه سه**: چي ومن المقربين په تقدير د متعلق عطف دی پر وجيها يعني وكائناً من المقربين

**وَيُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ**

ای كائناً في المهد ای رضيعا نو في المهد حال دی له ضمير څخه د فاعل د يكلم

**پوه سه**: چي د آيت معنا دا نه ده چي عيسی چي په زانګو کې وی نو به خبري کوي بلكې معنا یې داده چي په حال د غایت صغر چي حال د رضاع دی دی به د خلګو سره خبري کوي

**وَكَهْلًا**

يعني په وخت کي د كهولت

**پوه سه**: چي كهل هغه چاته وايي چي تر د برش كاله تېر سوی وي تر څلوېښت او سپین زیر توب ته نژدې سوی وي

**پوښتنه**: خبري د كهولت په وخت کي خو عادي خبري دي نو د عطف د كهلاً پر في المهد باندي څه فائده به وي؟

**ځواب**: مقصود په عطف کي دادی چي خبري د عيسی په وخت کي د رضاع او د كهولة به پر نهج واحد وي، يعني په وخت کي د رضاع به كلام الانبياء والحكماء او د خبرو دده به فرق نه وي كما سائر الاطفال بلكې بې تفاوت خبري به کوي كما سيأتي في القرآن من كلامه وقت الرضاع كيف كان كلامه في ذالک الوقت ككلام الانبياء عليهم السلام وقت النبوة وهذا من المعجزات الباهرة لعيسی عليه السلام قبل النبوة. مجاهد وايي چي مريمې ويله چي عيسی چي په حمل کي و او زه ودی به سره يوازې سولو ده به ماته خبري کولې مابه ده ته و چي زه به په بو كار اخته سوم او یا به بل چا خبری را سره کولې عيسی به زما په نس کي تسبيح ويله او مابه هم اورېدلې

**فائده**: په دې کي اشاره ودې ته ده عيسی قبل تر سن الكهولة نه مري وان سنه لايتجاوز سن الكهولة وسن الكهولة ياتي عليه بعد نزوله من السماء فانه رفع الى السماء قبل سن الكهولة. روح البيان وايي چي په يوه روايت کي



Scanned by CamScanner

راغلي دي چې د عیسی علیه السلام عمر چې د برش (۳۰) کاله و دی نبي کړه سو وبني اسرائيلو ته، او په رسالت کي يې د برش مياشتي تېري کړې بيا اسمانو ته پورته کړه سو، او په بعض رواياتو کي راغلي دي چې عيسی علیه السلام پر د برش کاله نبي سو، او درې کاله او څو مياشتي د نبوت دوره پر مځکه تېره کړه او بيا اسمانو ته پورته کړه سو چې درو د برش (۳۳) کاله او څو مياشتي و. نو که سن د کهولت د د برش کاله څخه شروع کېږي تر څلوېښتو کالو پوري، نو عيسی به اول دوره کي کهولت پر مځکه د خلګو سره خبري کړي دي. او پر قول د هغه چا چې وايي سن د کهولت د څلوېښتو کالو شروع کېږي، نو عيسی پر مځکه د کهل په سن کي خبري نه دي کړي، بلکې آسمانو ته خوان پورته کړه سوی دی او د کهولت خبري به پس له نزوله د اسمانو څخه د خلګو سره وکړي فانه حينئذ يكلم الناس ويدعوهم الى الله تعالى ويقتل الدجال انتهى مع زيادة وتوضيح

**فائده**: کهل په منځ کي د شباب او شيخ دی.

**پوه سه**: چې روح المعاني د اهل لغت په نقل عمر د انسان چې نر وي داسي څېرلی دی، ابن آدم چې په رحم کي د مور وي جنين يې بولي، او چې له موره پيدا سو بيا يې وليد بولي، او تر هغو چې تی روي رضيع يې بولي، او چې له تي څخه پرېږ سو د هر څو مياشتو چې وي نو يې فطيم بولي، او وروسته چې پر کونه څکېږي او ګاهي په يو شي پوري ولاړ سي نو يې دارج بولي، او چې پنځه لوېشتي سي په لوېشتو د لوی سړي نو يې خماسي بولي، او بيا چې بعض غابښونه يې راشنه سوه نو يې ثغرية بولي، او چې لس کاله ته نژدې سي او يا يو څه تر بالا سي نو يې مترعرع بولي، او ناشي يې هم بولي، او بيا چې بلوغ ته نژدې او يا بلوغ ته ورسېږي بيا يافع او يا مراهق بولي، او چې بالغ سي او قوي سي نو يې خرور بولي، او مشترک نوم يې په دغو احوالو کي غلام دی، نو بيا چې يې برېتونه راسي او پر بارخوګانو يې لړلړ وېښتان پيدا سوه نو باقل وجه يې بولي، او بيا چې يې ډېره سره ګلوه سوه بيا يې فتى

او شارخ بولي، او بیا چې غایت ته د ځوانۍ ورسېږي نو بيې مجتمع بولي، او بیا په منځ کې د ږیرې او خلوېښت یې شاب بولي. او بیا چې تر خلوېښت واوړي نو یې کهل بولي، تر شپېتو کلو پورې، او وروسته چې سپین ږیري یې په ږیره او سر کې پیدا سوه نو یې اشمط بولي. وروسته بیا شاخ بولي او وروسته یې کبر بولي او وروسته یې هرم بولي او وروسته یې دلف بولي، او وروسته یې اخرف بولي الی وقت الموت.

**درویش وایي:** چې دغه ترتیب د استنانو د نر و چې بیان سو په اعتبار د اعلی نرانو لکن تغیر د وختو ددغو نومانو په اعتبار د قوت د بدن او ضعف د بدن پورې ه اړه لري مثلا یو سړی کېدای سي پر کم سن بلوغ ته ورسېږي په اعتبار د قوت دبنیه، او بل سړی په سبب د ضعف البنیة ډېر وخت وروسته وبلوغ ته ورسېږي. او داغه په سبب د صحت د بدن او په سبب د امراضو فرق یکښې راځي کما هو المشاهد في الرجال نو په دې سره سوال نه وارد ېږي چې کوسج مطلق خو ږېږي ږیره او برېتونه یې نه راځي، او داغه رنګه یو سړی خرف ته ورسېږي په اعتبار د بعض عوارضو او بل سړی په سبب د قوت المزاج وصحة البنیة د خرف په وخت کې هم خرف ته ورسېږي، تجربه شاهده ده چې علماء کرام که څه ډېر کلان سنه هم وګرځي لکن د خرف دوره نه پر راځي او عقل او دماغ یې سالم وي خبرې یې پر ځای وي او په هر شي یې سر خلاصېږي. لکن هم العلماء الذین یعملون بما علمون ویتقون الله ولا یعصون ویذکرون الله ذکرا کثیراً الی غیر ذالک من الاعمال الصالحات بلکې د تعجب خبره خو دا ده چې بعض علماء صالحین د بل سړي د خرف په خت کې په وخت کې تصانیف کوي، وذالک فضل الله یوتیه من یشاء والله ذوا الفضل العظیم. روح المعاني دا چې تکلیم د عیسی عليه السلام په زمانه کې د کهولة وروسته تر نزول دده دی له اسمانو څخه او دی وایي چې عیسی عليه السلام چې اسمان ته پورته کړه سوی دی عمر یې درو دېرش کاله و، او دی به په اخیر الزمان کې ومځکې ته راځي او په مځکه کې به ژوندی وي څلورویشت کاله کما رواه ابن جریر بسند صحیح من عن کعب

الاحبار نو عمر دده به په وخت کې د موت اوه څلوېښت کاله وي وهو منتهى سن الكهولة، وقيل غير ذالك والله عنده علم الغيب.

**پوښتنه**: عیسیٰ علیه السلام چې اسمانو ته پورته کړه سو تر دې اوسه پورې خو په زرو کلونه تېر سوي دي نو په دغو کلو کې دی په کوم سن کې دی؟

**ځواب**: کلونه د عیسیٰ علیه السلام په اسمان تر هره وخته چې وي د شباب ژوند دی څه وخت چې مځکې ته نازلېږي د کهولت سن بې شروع کېږي، الى ان يموت في اخير سنوات الكهولة.

ګرانو د تفسير د درويش مطالعه کونکو! درويش هرچه ميگويد ديده ميگويد فلا اعتراض للحاسد وغيره لان على الناقل تصحيح النقل لا تصحيح المنقول كما هو الدائر على الالسنة.

وَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٤٦﴾

**پوه سه**: چې دا عبارت یا معطوف دی او على يكلم الناس والتقدير كائناً من الصالحين، يعني لار نه لري وده ته نقصان العقل او فساد في الدين وذالک شان الانبياء كلهم صلى الله تعالى على نبينا وعليهم اجمعين.

**درویش وايي**: چې ددې مقام و تحریر ته زه د کوچني اختر په شپه قريب الصبح سنه ۱۴۲۶ هـ ورسيدم اللهم اغفرلي ولوالدي ببركة هذا الوقت الشريف، تر دې اوسه د صحت عمر باقي دی ددې بعد کامل خواهان يم. وما ذالک على الله بعزيز.

قَالَتْ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ وَلَدٌ وَّلَمْ يَمْسَسْنِيْ بَشَرٌ ۚ

مریمې وویل ای ربه زما څرنګه زما څخه ولد زېږي او حال دا دی چې زه نه یم مسه کړې هیڅ نر.

**پوه سه**: چې دا کنايه له جماع څخه ده.

**پوه سه**: چې قالت آه جمله مستئفه د جواب د سوال ده چې مریم ته چې خدای ﷻ وویل ان الله يبشرک آه نو دې په جواب کې څه وویل

**فائده**: استفهام ددې لپاره د تعجب دی او یا استبعاد نظر وعادت ته چې



Scanned by CamScanner

ولد خو بېله مسه عادت نه دی، او یا استفهام ددې لپاره دی چې زما ولد به متزوج د لارې وي او که څرنګه.

**فائده**: انی دلته په معنا د کیف دی او په معنی د من این هم کېدای سي که لحاظ د تزوج ور سره وکړه سي فتامل.

قَالَ كَذٰلِكِ اللّٰهُ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ اِذَا قَضٰىٓ اَمْرًا فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴿۴۷﴾

یعني خدای ﷻ ورته وویل په ذریعه د جبرائیل ﷺ یعني لکه چې خدای ﷻ قادر دی پر خلق د اشیاؤ چې ولد دی بالتدریج وباسباب عادیة ومواد لکه دلته نطفه داغه رنګه خدای ﷻ قادر دی چې خلق د اشیاؤ دي دفعةً ببله اسبابو عادیه وکړي، او پیدا کوي خدای ﷻ هغه شیان چې دده ورته اراده سي، او چې خدای ﷻ اراده وکړي و پیدا کولو ته د یو شي، نو هغه شي ته وړوایي چې موجود سه او هغه شی موجود سي، نو "کان" تامه دی، نو خدای ﷻ دغسي خلق عجیب هم کولای سي چې ولادت د ولد دی ببله پلاره.

**پوه سه**: چې د قضاء معنا اراده الهیه ده چې قطعي وي په وجود پوري د شي مربوط سي.

**پوه سه**: چې اکثره مفسرین رح پر دې دي چې جمله د "فانما یقول له کن فیکون" یو تمثیل دی د تاثیر د قدرت الهي په خپل مراد کې نو دا یې مثال وګرځاوه د امر د یو فرمان بردار سړي للمطیع في حصول المامور من غیر امتناع وتوقف و افتقار الی مزاولة عمل فالممثل الشيئ المکون بسرعة من غیر عمل وآلة والممثل به امر الآمر المطاع في المامور به للمطیع علی الفور.

او روح المعاني والا وایي چې "کن فیکون" حقیقةً هم کېدای سي لکن د کن فیکون څخه کلام لفظي نه دی مراد بلکه تعلق د کلام نفسي دی بالشئ الحادث علی اي کیفیة کان الخلق والله اعلم بالصواب.

**درویش وایي**: چې روح المعاني ولي وایي چې کلام لفظي نه دی مراد لان الخطاب اللفظي الی المعدوم لا یعقل لعدم الفهم في المعدوم وهذا هو الباعث

على حمل جمهور المفسرين قوله تعالى كن فيكون، على التمثيل كما مر عنقريب، واما تعلق الكلام النفسي الذي هو قائم بذاته تعالى وصفة من صفاته جل شانه فيجوز التعلق بالمعدوم كالعلم والقدرة والارادة، وهذا تحقيق انيق فاحفظه هداك الى فهم دقائق القرآن المجيد.

## وَيُعَلِّمُهُ الْكِتٰبَ

خدای ﷻ ورده ته یعني عیسی علیه السلام ته ور وښيووی کتاب

**پوهه**: چي بعض مفسرين رحمهم الله وايي چي مراد له کتاب څخه خط او کتابت دی، او عيسى احسن الناس و خطاً وكتابةً في زمانه، او بعض مفسرين رح وايي چي مراد له کتابت څخه تولو کتب منزله دي من الله تعالى على رسله يعني يعلم عيسى علوم الكتب السماوية، او تخصيص د تورات او انجيل چي عنقريب راځي ددې سببه دی چي عيسى باید اهتمام په دغو دوو کتابو سره وکړي يعني په فروع کي د دين. واما اصول الدين يعني الاعتقاديات فمتحدة في جميع الكتب السماوية كالتوحيد وصفات الله المجيد والايمان بيوم القيامة والجنة والنار وامثالهما.

**فائده**: نافع، عاصم او يعقوب رحمهم الله "يعلمه" په يا د غيبت وايي او عطف يې بولي پر "يخلق" او يا "يبشرك" او باقي قاريان يې په نون د متکلم وايي عطف يې بولي پر هغو دوو جملو، لکن پر طريقه د التفات له غيبت څخه چي د معطوف عليه چي په ضمير کي و و تکلم ته لپاره د خوشحاله کبدو د زړه د مريم وازاحة خوف اللوم عليها من الناس كما سيأتي لما علمت مريم انها تلد الغلام من غير اب.

## وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ﴿٤٨﴾

او خدای ﷻ به ورده ته ورووښيي حکمت يعني الفقه في الدين او تورات وانجيل.

**فائده**: راويان د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت کوي چي مريم عليها السلام پخپله غرفه کي وه او پر ده يې خړولې وه چي يو سړی چي سپين کالي يې اغوستي وه په غرفه ور

نوتي وهو جبرئيل تمثل لها بشراً سوياً، مريم چي دا سړی وليدی ورته وه يې
ويل اعوذ بالرحمن منک ان کنت تقياً، قال اني رسول ربک لاهب لک غلاماً
ذکياً ثم نفخ في جيب درعها فوصلت النفخة الی الرحم فحملت بعيسی.

**فائده:** وهب بن منبه وايي چي څه وخت چي پر مريم باندي علامات د حمل
ښکاره سو، نو ددې يو قريب و چي يوسف نجار يې باله چون پر دې يې علامات
د حمل وليدل گاهي به يې دا خيال سو چي راسه مريم متهمه کړه په زنا سره. او
بيا چي به يې ددې صلاح او عبادت ته وکتل پر اتهمام باندي يې هم دلاوري نه
سوه کولای، نو اوله خبره چي ده مريمي ته وکړه دا وه چي زما په زړه کي يو شی
راگرځېدلی دی او زما اراده وه چي پټ په زړه کي يې وساتم او تا ته نه ووايم لکن
پر پټولو مي زړه صبر نه کوي ځکه چي وايم سينه به مي وچوي، نو د زړه سره مي دا
فيصله وکړه چي ستا سره خبري وکړم گوندي د خبرو له لاري زما دغه قلبي
مشکل حل سي، نو مريم ورته وويل چي د زړه بې درېغه خبري راسره وکړه. نو
يوسف ورته وويل چي راته ووايه چي کوم نبات بېله تخمه شين کېږي، مريم ورته
وويل نعم، اول چي خدای هر نبات پيدا کاوه نو تخم يې څه شی و، وروسته له
هغه نبات څخه خدای د نورو هم نوع نباتاتو تخمونه پيدا کړه. بيا يوسف ورته
وويل چي راته ووايه چي درخته د هري نوع چي وي بېله نهاله او يا بېله لښتي
پيدا کېدای سي، مريم ورته وويل نعم! د هر نوع اوله درخته د کوم نهال يا لښتي
څخه پيدا سوه، وروسته نوري درختي د هري نوع د هغې له نهاله يا لښتي څخه
پيدا کېږي. يوسف ورته وويل ته راته ووايه چي ولد بېله اب يعني پلاره پيدا
کېدای سي؟ مريم ورته وويل نعم! ته نه يې خبر چي آدم بېله پلاره او موره پيدا
سو، او حواء هم بېله نره او ښځي پيدا سوه. يوسف وايي چي وروسته تر دغه
سوال او جواب ما ته يقين سو چي دغه حمل چي ددې په رحم کي دی دا يو شی دی
چي خدای مريم ته عزت په هغه سره ورکوي يعني چي عيسی و.

**درويش وايي:** چي يهوديان لعنهم الله تعالی يوسف هغه سړی بولي چي مريم
زناء ورسره کړې ده، او يهوديان لعنهم الله عيسی ابن الزانية بولي معاذ الله.



Scanned by CamScanner

**درویش وایي:** چي دا و سر گذشت د ام عیسیؑ او دده د مور مریمؓ

فاحفظه.

**درویش وایي:** چي د تعجب خبره داده چي د نړۍ نصاری یعقوبیه، نسطوریه، ملکانیه وعیسیؑ ته دري قسمه عقیده لري بعض وایي چي عیسی ابن الله دی، او بعض وایي چي آله مع الله. او بعض وایي چي عیسی ثالث ثلثه دی لکه چي د وړاندي په مناظره کي د نصاری وو د نجران د علیه السلام سره چي تفصیل یې په دې تفسیر کي ذکر سو، وان کذبوا في ذالک بل هو عبدالله ورسوله. او یهودیان د دنیا و دغه ستر نبي ته دغسي بد نسبت کوي لکه موږ چي یې آنفاً ذکر وکړی، او بیا هم نصاری د ټولې دنیا د یهودیانو د حکومت دونده طرفداره دي چي د هر نوع کومک د اسرائیلو د حکومت سره کوي.

**پوښتنه:** ددې څخه داسي بریښي چي د نصاری وو د خپل ټپي په اهانت هیڅ فکر نه خرابېږي لکه چي دوئ د خپل نبي عیسی په نبوت سره نه وي قائله ددې سبب څه دی؟

**ځواب:** چونکه یهودیان د اسلامي حکومت په وخت کي پر بیت المقدس چي دوهمه قبله د اسلام ده مسلمانان پر قابض وه او په عین حال کي یهودیانو او نصاری وو په بیت المقدس کي خانونه شریک بلل، نو د اسلامي حکومت په دوران کي بعض یهودیانو په بیت المقدس کي د ذلت ژوند تر اسلامي بیرغ لاندي تېراوه، او ډېر یهودیان امریکا او غربي ممالکو ته پناه گزین سوه، نو نصاری وو چي فکر وکړی چي د بیت المقدس پر شاوخوا ډېر عنیتلي حکومتونه د مسلمانانو پراته دي لکه فلسطین، اردن، مصر، سعودي عرب، شام، عراق نو د موقع سره په استفاده یهودیان د بیت المقدس یې وهڅوله چي تاسي د خپل اسرائیلي حکومت مستقله پروپاگنډه پر لاره واچوئ او دنیا والو ته نعرې کړئ موږ خپل مستقل حکومت لکه پخوا چي و بیرته غواړو، او د اسلام تر بیرغ لاندي موږ بالا ژوند نه سو تېرولای، او امریکایانو او غربي ممالکو وعده ورسره وکړه چي موږ مالي او د صلاح جدي کومک درسره کوو، خو دا

پالیسي یهودیانو د بیت المقدس خپله کړه او امریکایانو او انګرېزیانو د دوی په ممالکو کې مهاجر یهود باعثه کړه چي ولاړ سي بیت المقدس ته چي هورې ستاسي اسرائیلي حکومت په حال کي د جوړېدلو دی. خو خبره د اطرافو او اکنافو څخه په کډو یهودیانو لاس پوري کړي او په بیت المقدس کي یې د اسرائیلي حکومت مستقل اعلان وکړی، او له مسلمانانو څخه یې بغاوت شروع کړی، اولین تر ټولو امریکایانو د اسرائیلو حکومت په رسمیت وپېژندی او خپل سفیر یې ور واستاوه وهکذا نورو غربي ممالکو د نصاری وو اسرائیلي حکومت په رسمیت قبول کړی، سمدلاسه د امریکا له خوا د صلاح کاروانونه او د مالي مرستو ډکي طیارې ورته را رواني وې او امریکا چي خپل دوستان په عربي ممالکو کي درلوده لکه شرق اردن او د مصر یې هم وهڅول چي د اسرائیلو حکومت دي په رسمیت وپېژني، او دا دولتونه په دې نه پوهېدل چي آخیر الامر به دغه اسرائیلي حکومت د ټوله عربي ممالکو لپاره سر درد وګرځي او هم هغه وسوه، وروسته امریکایانو او انګرېزیانو اسرائیلي حکمت وهڅوی چي پر یو ضعیف حکومت چي د فلسطین و حمله یې وکړه او اسرائیلي حکومت هم هغسي وکړه او په لږه موده کي یې فلسطین قبضه کړی، او فلسطینیانو یوی خوا او بلي خوا ته د هجرت کډي بار کړې او بعض هورې په فلسطین کي پاته سوه، او ډېر فلسطینیان وهمسایه ملک لبنان ته ولاړه او پر ضد د اسرائیلي حکومت او د قبله ثاني د اسلامي دین د خلاصون لپاره یې جد جهد شروع او د جهاد اعلان یې وکړی، امریکایان او نصاری وېرېدل چي همسایه اسلامي ملکونه د فلسطین د مسلمانانو مرسته ونه کړي، نو اسرائیلو ته یې وویل چي پر مصر چونکه یو طاقتور حکومت دی حمله پر وکړی صرف بعض صحراوي د مصر تر قبضې لاندي راولئ بیا به منوږ صلح در وکړو او مصر به د جنګ څخه متقاعد کړو، اسرائیلو هم هغسي وکړه او ډېري صحراوي او نا آباده ځمکي یې د مصر ونیولې، مصریانو چي رسمي جنګ ته د اسرائیلو ځانونه آماده کړه امریکایانو د ثالث بالخیر په بهانه ځانونه منځ ته واچول او یهودیانو ته یې وویل

چې د مصر تولې مقبوضه مځکې ور ايله کړې او مصر ته يې وويل چې ستا غرض خو خپلې مقبوضه مځکې دي هغه به موږ له اسرائيلو څخه در ازادې کړو ته هم خپل فوجونه تر شا کړه او جنګ مه کوه. خير خو مصر دا صلحه ومنله او اسرائيلو هم مقبوضه مځکې د مصر پرېښولې او خپل فوجونه يې خندي را وه ايستله. بيا امريکايانو يهوديان وهڅول چې د جولان لوړ غرونه چې د شام ملکيت وه او کوم فوج وغيره نه وو پکښې حمله پر وکړئ او دا غرونه له شام څخه ونسئ چې په اينده کې به دا لوړ غرونه لوی سنګر وي، د شام لپاره خو اسرائيلي حکومت هغسې وکړه او د جولان لوړ غرونه يې په اسانۍ سره قبضه کړه تر اوسه هم د دوی په قبضه کې دي.

**درويش وايي:** چې په اوسنۍ زمانه کې اسرائيلي حکومت په ټوله نړۍ کې يو طاقتور حکومت او د ايتم بم د پيش رفته صلاح لوی مرکز دی.

**غرض دا دی:** چې امريکايانو بالخصوص او نصاری وو بالعموم اسرائيلي حکومت د عربي ممالکو لپاره بالخصوص او د نږدې ممالکو اسلاميه وو لپاره بالعموم خپل لپاره يو مضبوط سنګر جوړ کړی، نو درويش وايي چې دا ټوله تمهيد و لپاره د جواب د هغه سوال چې د دې سبب څه دی، نو حاصل د جواب دادی چې نصاری وو د اسلام او قرآن پر ضد د فعاليت لپاره د خپل نبي يعنې عيسی ؑ سپکاوی چې يهوديان يې کوي چې تاسې واوربدی پس پشت واچاوه او د يهوديانو سره يې د محبت لاس اوږد کړی او بيعت د دوستۍ يې ورسره وکړی.

**درويش وايي:** چې دا وه تاريخ چه د پاليسۍ د نصاری وو اللهم انج المسلمين في جميع الارض من مکائد اليهود والنصاری والمشرکين، په اخير کې درويش وايي

کارونــه د پـر کـاريګر نسته خدايـه څـه وکړمـه زه
ملايـان د پـر عامـل يـې نسـت خدايـه څـه وکړمـه زه
تېـز رفتـاره خادمـا د قـرآن د پـر دي خدايـه څـه وکړمـه زه
د سست رفتارۍ د دې خدمت علاج به څه وي خدايه څه وکړمه



زه

## وَرَسُوْلًا اِلٰى بَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ

او عیسی ﷺ به رسول وي له جانبه څخه د خدای ﷻ وبني اسرائیلو ته

**پوه سه**: چي رسولاً منصوب دی په فعل محذوف سره چي هغه عطف دی پر "یعلمه" آه باندي، او تنوین د رسولاً لپاره د تعظیم دی، والتقدیر ونجعله رسولاً عظیم قدر الی بني اسرائیل.

## اَنِّىْ قَدْ جِئْتُكُمْ بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ

زه رسول یم په دې سره یعني په دې معجزه سره له جانبه څخه د ربکم یعني د خدای ستاسي.

**پوه سه**: چي د "اني" سره حرف جر محذوف دی ای باني، او حرف جر بیي متعلق په رسولاً پوري دی ای رسولاً باني آه، او تنوین د آیة لپاره د تعظیم دی ای بآیة عظیمة چي دستي پسي را روان دی، او یا اني معطوف دی پر احوالو سابقه باندي بتضمنه معنی النطق ای ناطقاً باني کذا في روح البیان.

**سوال**: عیسی ﷺ ولي آیة مفرد وواېه او سره ددې چي دا خو آیات متعدده وه؟

**ځواب**: دا ټوله آیات په سبب د دلالت پر صدق دده لکه آیت واحده وه.

## اَنِّىْٓ اَخْلُقُ لَكُمْ مِّنَ الطِّيْنِ كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ فَاَنْفُخُ فِيْهِ فَيَكُوْنُ طَيْرًاۢ بِاِذْنِ اللّٰهِ

**پوه سه**: چي نافع "اني" په کسره د همزه وایي، نو جمله مستانفه یې بولي، او نور قاریان یې په فتح د همزه وایي، نو منصوب دی بدل دی د "اني" سابق څخه، او یا مرفوع دی په تقدیر د مبتداء ای هي اني.

**ترجمه**: هغه آیت دادی چي زه تاسي ته صورت د یوه مرغه له خټو څخه درته جوړوم او بیا پر پوه کوم، نو هغه د خټو مرغه به بیا والوځي په اذن او اراده د خدای ﷻ

**پوه سه**: چي عیسی ﷺ داسي وویل "باذن الله" اشاره یې ودې ته وکړه چي ددغه خټو د مرغه حیوة د خدای ﷻ کار دی زما له خوا نه دی لان الله هو الذي خلق الصوت والحیوة فهو یخلق الحیوة في ذالک الجسم المصور من الطین، وانما الاحیاء من المعجزات.



Scanned by CamScanner

**پوه سه:** چې عیسی ﷺ چې دعوه د نبوت وکړه، نو بني اسرائیلو ورته ووییل چې موږ ته له ختېو څخه شوپرک جوړ کړه او بیا پر پوه کړه چې طیران وکړي او موږ یې هم په سترګو ووینو، نو عیسی ﷺ همدغسې وکړه. وهب بن منبه ؒ وايي چې شوپرک په هواء سو تر هغو چې خلګو ورته کتل په طیران کې او له سترګو د خلګو چې غائب سو سقط میتاً لاجل التمییز بین خلق الله وفعل الخلق.

**پوه سه:** چې دوئ ولي طلب د خفاش وکړی باعث دا و چې خفاش اعجب د مرغانو دی او اتم د مرغانو دی خلقاً واعضاءً. اول دا چې تولو مرغان چې الوخي په بڼکو او وزرو الوخي او شوپرک پر صرف غوښو پرواز کوي، او دوهم دا چې تولو مرغان د هګیو په ذریعه پیدا کېږي او شوپرک لکه ښځي د حیواناتو د رحم په ذریعه لنګېږي، او دریم دا چې شوپرک غولانځه لري او خپل بچي ته تی ورکوي او په شیدو د تي یې لویوي، او شوپرک د خدای جل شانه په قدرت خارق للعادت شی دی نه د ورځي په رڼا کي شی ویني او نه د شپې په تاریکه کي شی ویني بلکه په شبانه روز کي دوه ساعت دی په سترګو شی ویني بعد غروب الشمس د شفق ابیض تر لوېدو پوري، او وروسته تر سپیدو بیا چې ښه رڼا کېږي. او څلورم دا چې خاندي لکه انسان چې خاندي، او پنځم دا چې غاښونه لري او په غاښو شی خوري، شپږم دا چې حیض ورځي لکه د انسانانو ښځو ته چې ورځي.

**فائده:** چونکه عیسی ﷺ په نفخ د جبرئیل ﷺ په رحم کي د مور پیدا سو، نو خدای ﷻ نفخ د عیسی ﷺ سبب د حیوة د شوپرک وګرځول وهذا معجزة باهرة له ﷺ.

## وَأُبْرِئُ الْأَكْمَهَ

او زه جوړوم مور زاده ړوند یعني په قدرت د خدای ﷻ کما سیأتي.

**درویش وایي:** چې دغه تفسیر د اکمه ډېر په زړه پوري دی، ولي چې د مور زاده ړانده جوړېده د تولو اطباؤ له طاقت څخه وتلی شی دی الی یوم القیامة وهو قول ابن عباس ؓ، او حسن بصري او سدي ؒ وايي چې اکمه مطلق ړانده ته وايي که څه هم عارضي وي، او عکرمه ؒ وايي اکمه اعمش ته وايي یعني ضعیف

البصر چي تر سترګو يې اوښکي ډېرې بهېږي.

**درويش وايي:** چي ددې جوړېده د طاقت بشري څخه خارج نه دی. او مجاهد رحمه الله وايي چي اکمه هغه سړي ته وايي چي د ورځي ويني او د شپې نه ويني ولايخفى ان تداوي هذا الشخص ليس بخارج عن طوق الاطباء وان كان على سبيل الندرة.

وَالْأَبْرَصَ

او پيس هم په قدرت د خدای ﷻ جوړولای سم، او جوړ والی د پيس هم له قدرت څخه د طبيبانو قديماً وحديثاً خارج دی.

**پوه سه:** چي عيسى عليه السلام ودغو دوو مريضانو بلکي شلانو ته وغيرهم ته په دغه دعاء دم کاوه اللهم انت اله من في السماء واله من في الارض لا اله فيها غيرک وانت جبار من في السموات وجبار من الارض لاجبار فيها غيرک وانت ملک من في السماء وملک من الارض لاملک فيها غيرک قدرتک في الارض کقدرتک في السماء، سلطانک في الارض کسلطانک في السماء اسئلک باسمک الکريم ووجهک المنير وملک القديم ان تشفى هذا المريض انک على کل شئ قدير.

قال وهب رحمه الله هذا الدعاء مجرب للفزع والجنون وامثال ذالک يقرء على المريض ويکتب ويسقى مائة يبرء ان شاء الله تعالى.

**پوه سه:** چي عادت الهي په دې سره جاري دی چي په يو زمانه کي چي يو کار و اوج ته د ترقي رسېدلی وي ونبي ته د هغې زمانې خدای ﷻ معجزه د جنس في الظاهر د هغه کار ورکوي او په هغه معجزه سره يې پر دوئ غالبه ګرځوي مثلاً په زمانه کي د موسى عليه السلام د سحر او جادو عروج و، يعنې چي ساحرانو به يو شی په نظر کي د خلګو خلاف د خپل حقيقت ورو ستی مثلاً لکړه يا رسی به يې د خلګو په نظر کي مار عظيم وربنکاره کړی، نو موسى عليه السلام ته خدای ﷻ د لکړې مار کېده چي په ظاهره کي له جنس څخه د ساحرانو د کار وه معجزه ورکړه او په هغه لکړه يې دی غالب وګرځاوه پر اويا زره ساحرانو د فرعون او هغو ټولو ايمان

راوړی والقصة قد مرت بالتفصیل، او په زمانه کې د عیسی ﷺ ډاکټرۍ او طبابت واوج ته د عروج رسېدلي وه، نو خدای ﷻ وعیسی ﷺ ابراء الاکمه وشفاء الابرص واحیاء الموتی معجزه ورکړه چې له قسم څخه د طبابت وه چې اطباء ټوله عاجزه ورته پاته سوه، حتی چې وهب بن منبه ﷺ وایي چې په بعضې ورځو کې به عیسی ﷺ ته پنځوس زره مریضان د مختلفو مریضیو جمع کېدل او ټولو ته به دعاء د عیسی ﷺ شفاء ورکول حتی چې لږ زمانه نبوت د عیسی ﷺ خپل عروج ته ورسېدی، حتی چې جالینوس چې د هغې زمانې تر ټولو لوی حاذق طبیب و د عیسی ﷺ دغه کارنامې یو سړی ورته ذکر کړې جالینوس ورته وویل چې دا مذکوره کارنامې له محیط څخه د طبابت وتلي کارونه دي. نو عیسی ﷺ که دغه کارونه کولای سوای نو لکه چې وای نبي دي.

**درویش وایي:** چې عیسی ﷺ به هر مریض ته دعاء کوله په شرط د ایمان راوړلو به یې ورته کوله او هم دا سبب دی چې د عیسی ﷺ زمانه د مکث په مخکه کې که څه هم ډېره محدوده زمانه وه کمامر لکن بیا هم امت یې په دغه محدوده زمانه کې ښخي ډېر سو لمامر آنفاً چې په یوه ورځ کې به پنځوس زره مریضان هم ګاهي ګاهي ورته جمع کېدل.

**درویش وایي:** چې په عربو کې فخر او کامیابي د دوئ په فصاحت او بلاغت او په ژباړي والي وه حتی چې یو شاعر چې یوه قصیده یعنې غزل به جوړه کړه نو پر دېوال د کعبې شریفې به یې وځړول لپاره د مقابلې د نورو شاعرانو، حتی چې په جاهلیت کې اول سړی چې د کعبې پر دېوال یې خپل غزل وځړول د فخر لپاره امرء القیس الکندي او دی له ابناء الملوک څخه و، وروسته تر امرء القیس الکندي یو ځوان شاعر چې د طر العبد البکري په نامه یادېدی خپله قصیده وځړول، وروسته تر هغه زهیر بن ابی سلمي خپل قصیده وځړول، وروسته تر هغه بیا لبید بن ربیعة خپل قصیده وځړول وروسته تر هغه بیا عمر بن کلثوم خپله قصده وځړول، وروسته تر هغه بیا عنترة بن شداد خپله قصیده وځړول، وروسته تر هغه بیا حارث بن حلزه خپله قصیده وځړول.

**درویش وایي:** چي دا اوه قصیدې تولو بلغاوٌ د عربو په اتفاق منلي دي یعنې په زمانه کي د جاهلیت چي دا اوس هم د غه اوه قصیدې د کتابت په شکل کي چي معلقات سبع یې بولي موجودي دي او د علم ادب عربي ماهران یې وطالبانو ته په درس وایي لکن له جهته څخه د غایت اشکال د لغاتو ددې قصیدو د هر ملا وهغو ته لار د درس نسته.

**درویش وایي:** چي دا و احوال د عربو د جاهلیت چي فخر یې په فصاحت او بلاغت او ژباړې یو پر بل کاوه، نو څرنګه چي آنحضرت ﷺ نبي سو او د قرآن نزول شروع سو، او کفارو د مکې به ویل د قرآن مجید په باب کي چي دا یعني قرآن قول د شاعر دی، او علیه السلام یې شاعر باله، نو خدای ﷻ په رد کي ددوی دا قول په قرآن مجید کي علان وکړی "وان کنتم في ریب مما نزلنا علی عبدنا فاتوا بسورة الی اخیر الآیة" او په بل ځای کي یې بیا داسې ورته وویل "قل لئن اجتمت الجن والانس علی ان یاتون بمثل هذا القرآن لا یاتون بمثله الخ او وروسته یې یو لنډ سورت د قرآن مبارک وخړول سو، نو فصحاوٌ د عدنان او بلغاوٌ د قحطان د ایتان د مثل له هغه څخه عاجزه پاته سوه لکن دا یې هم نه ویل چي عنز زموږ په سبب ددې دی چي دا کلام الهي دی او محمد ﷺ برحق دی د خپل کبر او ضدیت له کبله، بلکې سبب د عجز یې دا بیان کړی انهم سحروا تسحیراً یعني په موږ سحر وکړه سو یعني علیه الصلوة والسلام یې په سحر سره مهتم کړی قاتلهم الله انی یوفکون.

**درویش وایي:** چي ددې قصې پوره بیان او بعض سوالونه او جوابونه د سورت بقرې په اوائلو کي ددې تفسیر مطالعه کړئ هداکم الله.

## وَاُحۡیِ الۡمَوۡتٰی بِاِذۡنِ اللّٰهِ

او زه ژوندي کوم مړي په اراده د خدای ﷻ.

**پوښتنه:** چي دمخه هم د عیسی ؑ په خبرو کي د بني اسرائیلو سره باذن الله عبارت عیسی ؑ ووایه نو بیا تکرار ته د هغه عبارت څه ضرورت و؟



Scanned by CamScanner

**ځواب**: دا عبارت چې یې مکرر کړی لپاره د دفع د دعوی د الوهیت وځان ته، ولې چې احیاء الموتی له جنسه د افعالو د عبادو نه ده بلکې خاصه مختصه د خدای ﷻ ده. بخلاف ابرء الاکمه والابرص فانهما من جنس افعال العباد وکانتا ههنا معجزة، قال البغوي رحمه الله بروایة ابن عباس رضي الله عنه چې عیسی علیه السلام څلور نفره ژوندي کړي دي یو عازر، بل ابن العجوز، بل ابنة العاشر او بل سام بن نوح علیه السلام. د عازر د ژوندي کولو موضوع داسې و چې عازر د عیسی علیه السلام په زړه پوري دوست و، نو دی چې مریض سو او مرض یې سخت سو، نو د عازر خور و عیسی علیه السلام ته سړی را واستوی چې ستا دوست عازر په حال کې د ژکندن دی، او د عیسی علیه السلام او د عازر تر منځ د درو ورځو سفر مسافت و، نو عیسی علیه السلام او دده ملګري په ډېره چټکۍ سره خانونه را ورسول لکن دوئ چې راتله او رارسېدله عازر درې ورځي دمخه مړ سوی و، او خور یې عازر دفن کړی و، نو عیسی علیه السلام یې خور ته ووېل چې درځه ما یې قبر ته ورولـه، نو خور یې د عیسی علیه السلام او ملګري دده سره روانه سوه نو دوئ یې قبر ته د عازر ورووستل نو عیسی علیه السلام وخدای ﷻ ته خواست د ژوندي کولو د عازر وکړی، نو عازر له قبره را ووتی او څړیې د بدن څخه ځنې ښخېدله، او عیسی علیه السلام خدای ﷻ ته دعاء د صحت او د بقاء دده وکړه نو عازر هم جوړ سو او هم ژوندی و حتی عیال یې هم وسوه.

**تنبیه**: د عازر مرګ تر اجل موعود مطلق دمخه و نو ځکه په دعاء د عیسی علیه السلام ژوندی سو معجزةً له.

او د سپین سري د زوی د ژوندي کېدلو قصه داسې وه، چې د عجوز زوی خلګو مړ پر جنازه اخستی و او مور یې پسې ژړل، نو د عیسی علیه السلام یې پر مور زړه وسو او رغ یې پر وکړی چې قم باذن الله نو دا مړی پر جنازه را کښېنستی او را کښته سو له جنازې څخه مور یې کالي ورته راوړل هغه واغوستل او هغه جنازه مړي پخپله پر اوږو ورسره واخستل مخ د کور پر خوا، نو کور ته ورغلی او ژوندی پاته سو حتی چې عیال یې هم وسو.

او د ابنت العاشر قصه داسې وه چې پلار ددغې پېغلې له خلګو څخه مالیه

تولوله یعنې په اجازه د عیسی ، نو دا بنت العاشر چي یوه ورځ د مخه مړه وه
او پلار یې ډېر په خفه و، نو عیسی خدای ته خواست وکړی او هغه
ژوندۍ سوه وبقیت حتی ولدلها ولد.

او هر چه ژوند و د سام بن نوح ژوند یې په داسي حال کي منځ ته راغلی
چي یهودیانو عیسی ته وویل چي ته فقط تازه مړي ژوندي کوې، ته که نبي
یې نو قدیم مړي ژوندي کړه یعنې سام بن نوح ، نو عیسی ورته وویل
ماته قبر را وښایاست نو قبر ته ورغلی او په اسم اعظم سره یې خدای ته
خواست د احیاء د هغه وکړی، نو هغه له قبر څخه را ووتی او نیم سر یې سپین و
او په هغه زمانه کي وښتیان نه سپینېدل دده سر چي سپین و له بېري د
قیامت، نو عیسی ته یې وویل قد قامت القیامة؟ قال لا ولکن دعوتک باسم
الله الاعظم ثم قال عیسی مُت یعنې مړ سه سام ورته وویل بشرط ان
یعیذني الله من سکرات الموت فدعاء الله ففعل فمات. راویان وایي چي له
وخت څخه د موت د سام تر دغه وخته پوري د ژوند دده تر څلور زره کاله بالا تې
سوي وه او سام وحاضرینو ته دا وښا تر مرگ د مخه وکړه، صدقوه یعنې عیسی
فانه نبي بالحق فآمن به بعضهم وقال الآخرون هذا سحر مبین.

وَأُنَبِّئُكُم بِمَا تَأْكُلُونَ وَمَا تَدَّخِرُونَ فِي بُيُوتِكُمْ

او زه تاسي خبروم په هغه طعام چي تاسي یې خورئ او په هغه شي چي ذخیره
کوئ یې تاسي په کورو کي خپل.

**پوه سه:** چي دا علم بالغیب نه دی بلکې دا علم په اعلام یا الهام د خدای
دی، نو عیسی به بعضې خلگو ته وویل چي ماښام دي فلانی طعام وخوړی او
نن بیا فلانی شی خوري. او فلانی طعام دي د ماښام آتیه لپاره ذخیره کړی دی،
او سدي وایي چي عیسی به په مدرسه کي ومتعلمانو هلکانو ته ویل چي
ستاسي پلرو برابيي فلانی کار وکړی چي هلکان به نه وه په خبر، او یل هلک ته به
یې ویل چي کور ته ولاړ سه چي ستا په کور کي فلانی شي وخوړل سو او تاته یې
فلانی خوراک ایښی دی، او دا هلکانو به ورته ویل چي تاته چا دا خبرونه در کړه.

نو عیسیٰ ﷺ به ورته ووبیل چي هغه چا دا خبر راکړی چي زه یې رسول بالحق را استولی یم، په دې هلکانو کي به بعضو ایمان پر نبوت دده راوړی، باره یهودیانو خپل هلکان له مدرسې څخه منع کړه او داسي یې ورته ووبیل چي تاسي ددغه سحر گر سره هیڅ ملاقات مه کوئ، نو یهودیانو خپل هلکان په یو سرای کي سره جمع کړي وه، نو عیسیٰ ﷺ په طلب د هغو هلکانو هغه سرای ته ورغلی چي هلکان پکښي جمع کړل سوي وه یعني په ښوونه د جبرئیل ﷺ نو خلکو ته یې ووبیل چي ستاسي هلکان چېري دي؟ هغو ورته ووبیل چي هلک دلته نسته. عیسیٰ ﷺ ورته ووبیل چي په دې بند سرای کي څوک دي هغو ورته ووبیل چي په دې بند سرای کي سرکوزان دي، نو عیسیٰ ﷺ ورته ووبیل کذالک یکونون، خلکو چي دروازه ور خلاصه کړه ټوله سرکوزان وه، نو دا خبره په بني اسرائیلو کي مشهوره سوه، نو بني اسرائیلو یې قصد د مرگ وکړی، مور مریم ﷺ وبېرېدل چي بني اسرائیل مي زوی عیسیٰ ﷺ را وژني، نو یو خر یې درلودی پر هغه سره سپاره سوه او مصر ته وتښتېدله، دا و د مظهري ﷫ او سدي ﷫ بیان، او قتاده ﷫ وایي چي دا آیت یعني "وانبئکم الآیة" په هغه مائده یعني دسترخوان کي نازل سوی دی چي له اسمان څخه پر نصاری وو یعني پر اتباعو د عیسیٰ ﷺ هر چېري چي به وه نازل دی لکه من او سلوی د موسیٰ ﷺ پر یهودیانو نازلېدله هغه وخت دوئ په تیه کي وه کما مر في هذا التفسیر، او اتباع د عیسیٰ ﷺ خدای ﷻ په دې امر کړي وه چي په دې مائده کي به خیانت نه کوئ یعني یو د بل حق به نه خورئ او د بلي ورځي لپاره به ذخیر هم نه کوئ، نو دوئ هم خیانت شروع کړی او هم یې ذخیره جمع کول، او عیسیٰ ﷺ به دوئ ته د هري ورځي خیانت وربنووی چي نن مو دمره خیانت په مائده کي وکړی او دومره ذخیره اندوزي مو وکړه، او دوئ یې په سختئ سره له دې کاره منع کوله خو ددوئ سره خپل هغه د لوړي ورځ ورسره وه او دا کار یې نه پرېښوی نو خدای ﷻ دوئ سرکوزان وگرځول.

**یوه سه:** چي ټوله اتباع د عیسیٰ ﷺ دغسي نه وه بلکي بعض کسانو دا کار کاوه، نو هغه ډله سرکوزان سوله وبس.



Scanned by CamScanner

## إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٤٩﴾

په تحقیق سره په دغو خارقه د عادت الهیه دلیل دی یعنی پر صدق د عیسی علیه السلام په دعوه کې د نبوت تاسي لره که چیرې تاسي اراده او خواهش لرئ د ایمان یعنې پر انبیاء علیهم السلام د خدا ﷻ عموماً او پر عیسی علیه السلام خصوصاً نو ایمان راوړئ پر عیسی.

**سوال:** امور خارقة للعادة خو په تیرو آیتو کې ډیر ذکر سوه او ذالک خو اشاره ویوه شي ته وي؟

**ځواب:** امور خارقه ووته اشاره په تاویل د ما ذکر ده او ما ذکر خو مفرد دی ومثل هذا کثیر في القرآن والسنة العرب والکتب العربیة. او په دغه جواب سره هغه سوال هم دفعه سوه چې مذکوره في الآیات السابقة خو ډیر دلائل وه پر صدق د عیسی علیه السلام نو ولي لآیة مفرد راوړی ووجه الدفع ظاهر.

## وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ

او زه تصدیق کونکی یم د هغه کتاب چې زما تر مخه نازل سوی دی یعنې تورات او د انبیاء علیهم السلام دا شان دی چې د ټولو کتب سماویه تصدیق کوي او یو د بل سره انبیاء علیهم السلام په عقیده د تصدیق ګوري.

**فائده:** مصدقاً بعض مفسرین عطف بولي پر رسولاً چې دمخه تیر سو، او بعض مفسران وایي چې مصدقاً مفعول به د فعل محذوف دی چې قد جئتکم دلالت پر وکړی یعنې وجئتکم مصدقاً.

## وَلِأُحِلَّ لَكُم بَعْضَ الَّذِي حُرِّمَ عَلَيْكُمْ

**بوه سه:** چې حرف جر متعلق دی په قد جئتکم پورې یعنې زه راغلی یم د خدای ﷻ په حکم چې تاسي یعنې بني اسرائیلو ته حلال وګرځوم بعض هغه شیان چې په تورات کي پر تاسي حرام ګرځول سوي وه، لکه د بعضې حیواناتو غوښې او وازګي د ټولو حیواناتو یعنې حرمت به یې منسوخ سي او په حل به بدل سي

**پوښتنه:** دمخه وویل سوه چې زه مصدقاً د تورات یم نو بیا څرنګه بعض

احکام د تورات له منځه ځخه وړي؟

**ځواب**: نسخ خو منافي د تصديق نه دی لکه د قرآن بعض حکمونه په نورو حکمو سره نسخ کېږي، او سره ددې قرآن يصدق بعضه بعضاً.

وَجِئْتُكُم بِآيَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿۵۰﴾

**يوه سه**: چې دا آيت تکرير د سابق دی للتاکيد، او يا مراد له آيت څخه آيات الانجيل دي فهو تاسيس والله اعلم بمراده، نو خدای ﷻ څخه وېرېږئ يعنې له عذاب څخه د خدای په ورځ د قيامت، او زما اطاعت وکړئ په دين کې د انجيل چې پر ما نازل سوی دی.

إِنَّ اللَّهَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ ۗ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴿۵۱﴾

او دغه يعنې بېره د خدای ﷻ او اطاعت زما لاره ده سمه چې ودې لاري ته شاهدي د استقامت موجوده ده.

**يوه سه**: چې اصحاب السنن الاربعة يعنې سنن ابي داؤد، سنن نسائي، سنن ابن ماجه او سنن ترمذي، او علاوه پر هغو احمد او بخاري په تاريخ کې روايت کړی دی چې يوه ورځ يو سړي له عليه السلام څخه پوښتنه وکړه په دې الفاظو سره "مرني في الاسلام لا اسئل احداً بعدک" ماته امر وکړه په اسلام په داسې شي چې زه بيا سوال ونه کړم له هيڅ چا څخه وروسته تر تا، نو عليه الصلوة والسلام په جواب کې داسې يو جامع عبارت د ټولو اوامرو او د منهياتو ورته ووايه "قل آمنت بالله ثم استقم" ووايه چې ما ايمان راوړی دی پر خدای ﷻ او بيا پر هغه ايمان کلک ودرېږه.

**يوه سه**: چې صراط مستقيم چې موږ يې په هر لمانځه کې متعدد وارونه خدای ﷻ ته خواست کوو په سورت فاتحه کې، هغه دغه لار بولي چې سړی بېله عذابه په ورځ د قيامت وجنت دار الابرار ته ورسوي، او دا هغه لار ده چې پر هغه ټوله انبياء کرام عليهم السلام متفق دي.

**فائده**: ان الله ربي وربکم" اشاره ده وتصحيح ته د قوت نظريه يعنې المعتقدات، او فاعبدوه اشاره ده وه استکمال ته د جنبه عمليه لان العادة

شامل للاوامر والمنهيات كلها يعني اداء الاوامر والاجتناب عن المنهيات، وروسته خدای ﷻ تاکید ددې لاري وکړی بقوله هذا صراط مستقيم. قال رسول الله ﷺ لايكون احدكم كالعبد السوء ان خاف عمل ولا كالاجير السوء ان لم يعط لم يعمل" ددې معنا داده چي عبد اديب د خدای ﷻ هغه څوک دی چي على الدوام پر دوازه د طاعت الهي ولاړ وي من حيث انه مولاه ولا ينظر الى شئ سواه لا الى الجنة ولا الى النار.

**درویش وایي:** چي دا تجرد شان د عالي همة بندگانو د خدای ﷻ دی اللهم اجعلنا منهم، مولانا جلال الدين الرومي وايي

سالها باید که اندر افتاب لعل یابد رنگ ورخشان وتاب

**فَلَمَّآ أَحَسَّ عِيسَىٰ مِنْهُمُ ٱلْكُفْرَ قَالَ مَنْ أَنصَارِىٓ إِلَى ٱللَّهِ**

او هغه وخت چي د عيسى علم راغلی، علم يقيني لا شبهة فيه لكه د محسوساتو علم چي پر ضرورياتو او بدهياتو دی له یهودیانو څخه پر کفر ددوی نو بي وویل چي څوک دی زما کومک کونکی په تبليغ كي د دين مبین عیسوی

**پوه سه:** چي لما ظرف زمان دی متضمن معنا لره د شرط دی. او جواب يي من انصاري الى الله، او كلمه د "فا" لپاره د اظهار له تحقق څخه د جميع ماقاله الملائكة وخروجه من القوة الى الفعل كانه قيل فحملته امه فكان كيت وكيت وقال ذيت وذيت،

**فائده:** د الى الله په معنا او تعلق کي اختلاف دی، روح البيان او روح المعاني وايي چي الى متعلق دی په محذوف پوري چي هغه حال دی له ياء څخه د متكلم، والتقدير من انصاري متوجهاً الى الله وملتجئاً اليه.

**پوه سه:** چي عيسى ﷺ دا خبره هلته وکړه چي اصرار د یهودیانو يي پر کفر وليدی او په دې پوه سو چي د یهودیانو لیدل زما د معجزاتو نه زیاتوي مگر اصرار پر کفر، او په عين حال کي یهودیان زما د قتل بند وبست کوي، او مظهري په معنا او تعلق کي د الى الله اخيري توجيه د روح البيان کړې ده، نور يي بيا نور توجيهات قياسه کړي دي، گاهي وايي چي الى په معنى د مع ده



Scanned by CamScanner

قیاساً علی قوله تعالی ولا تاکلوا اموالهم ای الیتامی الی اموالکم ای مع اموالکم. نو معنا د آیت داده من انصاري مع الله. او ګاهي وايي چې الی په معنا د في ده. والمعنی من انصاري في الله ای في سبيل الله. او ګاهي وايي الی په معنا د لام جاره ده، والمعنی من انصاري لله يعني لپاره د خدای ﷻ او په اخير کې يې ددې توجيهات ويلي دي چې نو الی پر دې توجيهاتو ظرف لغو دی.

**درويش وايي** چې پر توجيه د روح البيان کلمه د "الی" ظرف مستقر ده. زه وايم چې دومره فراخي او مجازات په تفسير کې د قرآن عزيز لائق نه دي والله اعلم بمراده في کلامه المجيد.

**قَالَ الْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنصَارُ اللَّهِ آمَنَّا بِاللَّهِ وَاشْهَدْ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ ﴿٥٢﴾**

وويل په جواب کې د عيسى ﷺ حوارينو چې موږ کومکيان يو د خدای ﷻ يعني انصار دينه ونبيه موږ ايمان راوړی دی يعني پر خدای ﷻ او پر رسول د خدای ﷻ چې عيسى ﷺ دی او ته شاهد اوسه په دې سره چې مسلمانان يو، يعني په ورځ د قيامت چې رسولان شاهدي اداء کوي د خپلو امتيانو لپاره په ايمان او اسلام سره ولعلهم علموا هذه الشهادة من عيسى ﷺ، حواري هغه سړي ته وايي چې مخلص تام وي مشتق دی له حور څخه وهو البياض الخالص.

**فائده**: په قاموس کې وايي چې د حواري يوه معنا مطلق کومکي ده، او بله معنا يې ناصر الانبياء ده، او دوبي ته چې د خلګو کالي په مزدوري له خيرو څخه ورپاکوي هم وايي، او حميم يعني دوست مخلص ته هم وايي.

**يوه سه**: چې اصحاب د عيسى ﷺ د څه سببه د حوارينو په نامه نامزد سوه؟ بعض مفسران وايي لخلوص نيتهم في الدين يعني له نفاق او رياء څخه خالي وه، او څوک وايي چې دوئ ناصران د عيسى ﷺ وه په ترويج کې د دين دده، او حسن بصري او سفيان ثوري وايي چې دوئ ملوک وه چې کومک خندي وغوښتی عيسى ﷺ پر يهودو باندې، او دوی عادةً سپين کالي اغوستل، او ابن جرير له ارطات څخه روايت کړی دی چې دوئ دوبيان وه چې د خلګو کالي به يې ور پاکوله کمامر، او ضحاک وايي چې سموا به لصفاء قلوبهم من الذنوب.

او عبدالله بن المبارک رحمه الله وایي چي په دې یې حوارین بلل چي اثار او انوار د عبادت به ددوئ په مخانو کي بریښیدل، او کلبي اوعکرمه وایي چي دوی دولس (۱۲) کسه وه چي په اعلی درجه کي مخلصین د عیسی وه، او روح بن قاسم وایي چي ما له قتاده رحمه الله څخه سوال وکړی د حوارینو د معنا فقال هم الذین یصلحون للخلافة، للخلافة، او بعض وایي چي د حوارینو معنا وزراء ده، او مجاهد او سدي وایي چي دوئ د ماهیانو ښکار کونکي وه. د مظهري د عبارت پښتو ژباړه.

**درویش وایي:** چي روح البیان ډېر په زړه پوري تفسیر د حوارینو کړی دی، حیث قال یقال فلان حواري برگزیده من است، او دی وایي چي دولس کسه وه چي بعض یې ملوک وه او بعض یې صیادی السمک وه، او بعض یې دوبیان وه، او بعض یې رنگرېزان وه، لکن دی په اخیر کي وایي چي دوئ چي حوارین مسمی سوه په دې سبب چي دوئ انصار د عیسی علیه السلام وه او مخلصان یې وه او صادق المحبة وه، د روح البیان مطلب دادی چي په قرآن مبارک کي تسمیه د دوئ په حوارینو سره د بعض مذکوره معاني لغویه په سبب نه ده لعدم المدح في تلک المعاني بلکې په معنا مذکوره سره یې په قرآن کي حواریون وبلل لکونه اسم مدح لهم.

**درویش وایي:** چي ددې تائید هغه حدیث نبوي کوي چي علیه الصلوة والسلام د یوه کار مهم لپاره درې واره خلگو ته دعوت ورکړی نو قبول د دعوت هره پلا زبیر رضی الله عنه وکړی، نو علیه الصلوة والسلام وویل "لکل نبي حواریاً وحواري الزبیر" بخاري مسلم.

رَبَّنَآ اٰمَنَّا بِمَآ اَنۡزَلۡتَ وَاتَّبَعۡنَا الرَّسُوۡلَ فَاكۡتُبۡنَا مَعَ الشّٰهِدِيۡنَ ﴿۵۳﴾

ای زموږ خدایه ایمان موږ راوړی دی په هغه کتابو ټولو سره چي تا نازل کړي دي عموماً وخصوصاً بالانجیل، او موږ متابعت کوو د رسول چي عیسی دی، یعني په ټوله ما امرتنا به ونهاناعنه، نو تفریعاً علی ما سبق دوئ دا دعا وکړه نو موږ نوشته کړي په جمله د شاهدانو یعني په وحدانیت سره ستا او پر نبوت د

انبياء عليهم السلام او ابن عباس ﷺ وايي چي مراد له شاهدين څخه محمد ﷺ امت دده دي لانهم يشهدون للرسل بالبلاغ يعنې هغه ورځ چي امتيان د انبياء عليهم السلام منکره سي له تبليغ څخه ددوئ کماجاء في الحديث الطويل للبخاري ومسلم وغيرهما. او عطاء ﷺ وايي چي له شاهدين څخه ټوله انبياء مراد دي لان کل نبي شاهد لامته انکروا او لم ينکروا

**پوه سه**: چي مع الشاهدين حال دی له مفعول څخه د "فاکتبنا" ای کائنين بالشاهدة مع الشاهدين. او چونکه خدای پاک په بل ځای کي د قرآن ويلي دي "کلا ان کتاب الابرار لفي عليين" او عليون په اسمانو کي د يو کتاب نوم دی په هغه کي له انبياؤ څخه علاوه د ټولو ابرارو نومان ثبت دي او هغه کتاب د ملائکه وو مقربينو سره دی نو چي د سړي نوم په هغه مبارک کي نوشته وي، نو نوم د هغه سړي په ملاء الاعلی کي مشهور او مشهود وي.

وَمَكَرُوا وَمَكَرَ اللَّهُ ۖ وَاللَّهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ ﴿٥٤﴾

او دغو يهوديانو چي عيسی ﷺ له دوئ څخه احساس د کفر وکړی چم يې وکړی وقتل ته د عيسی او خدای پاک ودوئ ته مکروه کړی او خدای خير او قوي د ماکرينو دی

**درويش وايي**: چي دا صرف لفظي ترجمه د آيت ده، بيان د مراد به وروسته موږ ذکر کړو.

**پوه سه**: چي مکر او خديعة چم ته وايي، او مکر خو وبندګانو ته هم حرام دی، نو نسبت يې وخدای ﷻ ځرنګه وسو؟ ددې سوال په جواب کي بعض مفسرين وايي چي معنا د مکر الله جازاهم الله علی مکرهم يعنې جزاء ته مکر يې مکروه ووايه فهو من قبيل قوله تعالی وجزاء سيئة سيئة قاله الزجاج ﷫. او بعض مفسران ﷭ وايي چي له جهته څخه د ازدواج د مکروا يې لفظ د مکر منسوب کړی وخدای ﷻ ته کما في قوله تعالی صبغة الله ومن احسن من الله صبغة"

**درويش وايي**: چي د مکر د يهوديانو مختلفي قصې مفسرين بيانوي، مظهري وايي چي کلبي ﷫ د ابو صالح هغه له ابن عباس ﷺ څخه له لنډه توګه داسي وايي چي عيسی ﷺ يوه ورځ روان وچي يو جماعت د يهوديانو په مخه ورغلی، نو چي

دغه جماعت د یهودو دی ولیدی داسي یې ووېل جاء الساحر بن الساحرة، نو ده او مور دواړو ته یې دغه ښکنځل وکړه، نو عیسی علیه السلام پر دوی لعنت ووایه او ښېرا یې ورته وکړه نو دغه ټوله سرکوزان سوه، نو یهوداء چي د ټولو یهودیانو رئیس و وبېرېدی چي بیا ښېرا ونه کړي چي نور یهود به هم سرکوزان سي، نو یې اتفاق پر دې وکړی چي عیسی علیه السلام به حتماً وژنو. نو په ډېر تلوار و عیسی علیه السلام ته را روان سوه چي قتل یې کړي نو جبرائیل راغلی او عیسی یې په یوه خونه خندي دننه کړی چي هغې خوني روښن دان درلودی، نو د یهودیانو دا خیال سو چي عیسی پخپله په دې خونه ننوتی، نو یهوداء رئیس الیهود یو سړی چي نوم یې طیطیانوس و امر کړی چي په خونه پسي ور ننوزه او عیسی قتل کړه. او جبرائیل علیه السلام عیسی علیه السلام تر هغه دریچه د بام خندي پورته کړی آسمان ته، او سبهه د عیسی علیه السلام یې پر هغه سړي واچول یعني د هغه سړي صورت د عیسی وگرځېدی، نو هغه سړی چي را ووتی ددوی په نظر عیسی ورغلی پاره یې مړ کړی.

**درویش وایي:** چي تر دې ځایه پوري د مظهري رحمه الله بیان و، او روح البیان تر دې ځایه ورسره موافق و تقریباً، وروسته یې دا زیاته کړې ده چي عیسی علیه السلام چي جبرائیل واسمانو ته پورته کړی، نو هوري خدای جل جلاله لکه د ملائکو وزر ورکړه او نور په لباس یې ملبوسه کړی او له ده څخه یې د خوراک او څښاک شهوت قطع کړی لکه له ملکو څخه وطار مع الملائکة حول العرش، روح البیان وایي فکان انسیاً ملکیاً سماویاً وارضیاً، وروسته هغه سړی چي یهوداء ور واستوی چي ورسه عیسی قتل کړه او خدای جل جلاله د عیسی علیه السلام صورت او شبهه ورکړې وه نو هغه سړی چي را ووتی چي دی ووایي چي عیسی په خونه کي نه و، نو هغه سړی یې په سبب د شبهه د عیسی قتل او په دار یې کړی چي وروسته یې هغه مصلوب وکتی له مخه څخه نیولې تر نامه پوري بدن د عیسی و، او تر نامه لاندي بدن یې ددوی د استول سوي سړي و، نو حیران سوه او بل په دې حیران سوه چي که دا مصلوب عیسی وي نو هغه زمونږ سړی څه سو او که دا هغه زمونږ سړی وي نو عیسی څه سو، ولهذا قال الله تعالی وما قتلوه وماصلبوه ولکن شبه لهم، دوی مصلوب به



Scanned by CamScanner

دار کړی د عیسی مور مریم او یوه بله ښځه ورسره وه چې هغه د مځه لیونۍ. وه او په دعاء د عیسی ﷺ له جنونه جوړه سوې وه راغلې نو دواړو ژړل د مریمې او د هغې ښځې په سبب د شبهه د عیسی پر مصلوب باندې دا خیال و چې عیسی په دار خړیږي نو یې خکه ژړل. نو خدای پاک عیسی ﷺ ته وویل چې بېرته ورسه او مور او هغه بله ښځه چې ژاړي خبري یې کړه. نو عیسی ﷺ چې راغلی نو مور او هغه بلې ښځې ته یې وویل علی من تبکیان؟ پر چا ژاړئ. مور او هغه بلې ښځې ورته وویل چې پر تا ژاړو عیسی ﷺ ورته وویل چې زه یې نه یم په دار کړی زه خدای ﷻ اسمانو ته پورته کړم. دا یوه اشتباه وه د یهودیانو چې خپل سړی یې په دار کړی. وروسته تر اوو ورځو خدای پاک وعیسی ﷺ ته امر ورکړی چې ته مجدلانیة چې د یو ځای نوم دی او په دې ځای کې یو غر دی پر هغه ورکښته سه. ولې مجدلانیه پر تا دومره ژړلي دي چې هیڅ چا په تا پسې دومره نه دي ژړلي. او بیا یې حواریین سره جمع کړل نو په اطرافو کې د مځکې یې سره متفرق کړل چې خلګ وخدای ﷻ ته راوبولي. نو خدای ﷻ پر مجدلانیه پر هغه غره عیسی ﷺ راکښته کړی نو چې دی پر راکښته سو. نو غر خالص نور وګرځېدی. نو حواریین یوه سوه چې عیسی ﷺ بېرته راکښته سو. نو ټوله حواریین ورته راجمع سوه. نو عیسی ﷺ هر یو لـه حواریښو پر یو طرف د دعوت الی الله لپاره مقرر کړه او عیسی ﷺ بېرته اسمانو ته ولاړی. چې سهار سو هر حواري د هغو خلګو ژبه چې دی پر مقرر و زده به وه په قدرت د خدای ﷻ فذالک المذکور کله معنی قوله تعالی ومکروا ومکر الله والله خیر الماکرین.

**درویش وایې:** چې تر دې ځایه پوري د روح البیان بیان پای ته ورسېدی والله اعلم بالصواب. پر بنده تصحیح د نقل لازمه ده او په صحت د منقول خدای ﷻ علم لري

**درویش وایي:** چې حوالې د هر تفسیر زه کوم د حاسدانو خوله لـه خانه کاږم لکن کاشکې دوئ خوله د حسد پټه نیولې وای لکن دوئ خو وایي چې عبید الله خو صرف ناقل دی. زه ورته وایم چې نعم لکن ته دومره مهرباني وکړه عربي عبارتونه دونه فصیح ژباړې ته په پښتو په وطني ژبه را واړوه ومن الله التوفیق.

**درویش وایي:** چي روح المعاني یو ډېر لوی تفسیر کړی دی، او دی وایي چي عیسی ﷺ په یوه ورځ کي حواریین سره راجمع کړه، او دوی ته یې وصیت وکړی، او بیا ده دوی ته وویل چي یو له تاسي څخه به کافر سی دمخه د چرګ تر اذان او ما به پر یهودو خرڅ کړي په یو څو درهمه، یعني یهودو ته به مي وربښیي، نو حواریین ووتل او سره متفرق سوه، او حیران په دې کي وه چي کوم یو حواري به وي چي دا کار وکړي او یهودیان په طلب کي د عیسی ﷺ وه، نو یو له حواریینو څخه چي نوم یې نه دی ذکر سوی یهودیانو ته ورغلی چي ماته څو روپۍ راکوئ چي زه عیسی در وښیم؟ هغو ورته وویل د ډېرش (۳۰) درهمه درکوو، نو هغه روپۍ له یهودیانو څخه واخستلې او هغه خوني ته ورغلی او ده وویل چي عیسی څو په دغه خونه کي پټ سو چي اوس ستاسو کمه وتلی دی، نو هغه حواري چي په خونه ور ننوتی خدای ﷻ شبهه د عیسی ﷺ پر هغه واچول او جبرائیل ﷺ راغلی او عیسی ﷺ یې د بام له خوا څخه آسمان ته پورته کړی. هغه سړی چي را ووتی چي دوی ته ووایي چي عیسی په خونه کي نه و، یهودیانو په سبب د شبهه د عیسی هغه ټینګ کړی چي په دار کاوه یې هغه ناري کړې چي زه خو هغه سړی یم چي دلالت د عیسی ﷺ وتاسي ته وکړم، نو خلګو یعنې یهودیانو دده خبرې ونه منلې او قتل یې کړی

**درویش وایي:** چي وروسته روح المعاني د روح البیان خبري راوړي دي چي عیسی ﷺ بېرته راکښته کړه سو او باقي حواریین یې سره جمع کړه او یوې خوا او بلې خو ته یې د دعوت لپاره مقرر کړه، الخ. او بیا روح المعاني یو بل روایت داسي راوړی دی چي څه وخت چي یهودیانو اراده د قتل د عیسی ﷺ وکړی، نو دی او حواریین په یوه خونه کي سره جمع سوه، نو ابلیس وجماعت ته د یهودو وویل چي عیسی او حواریین یې په دغه خونه کي دي، نو څلور زره یهود سره جمع سوله او هغه خونه یې تر محاصرې لاندي ونیوله، نو عیسی ﷺ و وحواریین ته وویل چي کوم یو به ستاسي څخه تیار سي چي زما شبهه پر ولوېږي، او یهود یې زما په ګمان قتل کړي، او زه آسمان ته ولاړ سم او هغه



Scanned by CamScanner

سړی به زما سره په جنت کې ملګری وی، نو یوه حواری دا خبره قبوله کړه، نو عیسی ﷺ د وړیو قمیص په واغوستی او لکړه یې په لاس کې ورکړه، لکه د عیسی ﷺ چې به هم داغسې لباس او لکړه وه. او نوره شبهه صورې د عیسی ﷺ پر وه او له دروازې څخه د خونې پر یهودو را ووتی یهودو ناری کړې چې هغه دی عیسی را ووتی، نو هغه دده د قتل په موضوع اخته سوه، نو بیو واریې قتل کړی او بیا یې په دار وځړاوه. خبر وروسته یانه نصاری درې ډلې سوه یوې ډلې وویل چې عیسی خو خدای و او له موږ څخه اسمانو ته ولاړی، او بلې ډلې وویل چې عیسی خو ابن الله و خدای خپل زوی له موږ څخه اسمانو ته بوتللی، او بلې ډلې وویل چې عیسی عبدالله او رسول د خدای و ماشاء الله زموږ سره و، نو بیا خدای ﷻ اسمانو ته پورته کړی وهذا الفریق کانوا علی الحق في دين عيسى، وروسته هغه دوو کافرو ډلو پر مسلمانه ډله باندې برید وکړی نو هغه مسلمانه ډله یې تقریباً ټوله په شهادت ورسول، نو دین اسلام د عیسی ﷺ مخ پر زوال و، او د یهودیانو هغه ناری جاري وې چې عیسی نبي نه و بلکې ساحر و تر هغو پروې چې خدای ﷻ محمد ﷺ مبعوث کړی او قرآن منزل پر ده شاهدي ورکړه یعنې پر نبوت د عیسی او د مریمې پاک دامنې یې بیان کړه لکه چې په دمخه آیتو کې مفصل ذکر تېر سو. او بیان د عیسی ﷺ به هم راسي په وروسته آیتو کې.

**درویش وایي**: چې له ابن اسحق ﷺ څخه روایت دی چې یهودیانو وروسته تر رفع د عیسی حواريینو ته ډېر عذابونه ورکول او په ډېر تکلیف یې اخته کړي وه فبلغ ذالک ملک الروم او د یهودیانو ملک د هغه تر حکم لاندې و، او د ملک الروم نوم داوُد بن نوز و، نو ملک الروم ته تفصیلي احوال د تعذیب د حواريینو یو سړی داسې بیان کړه چې یو سړی د بني اسرائیلو چې ستا تر امر هم لاندې و او نوم د هغه سړي عیسی و دعوی د نبوت یې وکړه او بني اسرائیلو ته یې معجزهٔ احیاء الموتی او ابراء الاکمه والابرص ورښکاره کړه وفعل کذا وکذا، نو هغه رسول چې بني اسرائیلو یې اراده د قتل درلوده واسمانو ته خدای



Scanned by CamScanner

پاک پورته کړی او د هغه نمائیندګان د دعوت الی الله چي په نامه د حواریون
یادېدل هم دا اوس د بني اسرائیلو له خوا څخه تر سختو عذابو لاندي دي،
ملک الروم وویل چي که زه دمخه خبر وای مابه بني اسرائیل ددغه مدعي
النبوة له قتل څخه جدا منع کړی وای بیاملک الروم وملک الیهود ته امر وکړی
چي دغه حواریون دلته را واستوه، نو ملک الیهود مجبور سو حواریون یې روم
ته واستول، نو ملک الروم د عیسی علیه السلام په باب کي تفصیلي حالات وپوښتله نو
حوارینو هم په ذره ذره د عیسی علیه السلام احوال ورته بیان کړه، نو ملک الروم ایمان
راوړی پر عیسی علیه السلام، او د حواریونو سره یې بیعت د اسلام وکړی، وروسته
ملک الروم پر بني اسرائیلو حمله وکړه فقتل منهم خلقاً کثیراً ومن ثم ظهر اصل
النصرانية في الروم، وروسته تر نام برده ملک الروم یعني چي دی مړ سو د
رومیانو بل بادشاه په نامه د طیطوس د بادشاهي پر تخت کښېنستی او د بني
اسرائیلو سره یې غزاء شروع کړه، او پر بیت المقدس یې حمله وکړه چي د رفع
د عیسی علیه السلام او ددغې حملې تر منځ څلوېښت کاله تېر سوي وه، نو ډېر
یهودیان یې په قتل ورسول او ښځي او کوچنیان یې په سبئ ونیول او په بیت
المقدس کي یې یوه ډېره پر بله پرته نه پرېښول، نو بني النضیر او بني قریضه
چي د یهودیانو دوه قوم وه مخ پر لوري د حجاز فراره سول، وهذا تمام القصة
التي نقلها صاحب روح المعاني في الجزء الثالث ص ۱۷۸.

## إِذْ قَالَ اللَّهُ يَٰعِيسَىٰٓ إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ

**پوه سه.** چي "اذ" ظرف دی د ومکر الله فالمعنی چي دغه مکرالله په دغه
معنا چي ذکر سوه هغه وخت وه چي خدای پاک وویل وعیسی ته چي تازه قبض
کوم له دنیا څخه یعني بېله مرګه او زه تا پورته کوم وخان ته یعني وخای ته د
عزت زما او وخای ته د ملکو زما، او روح البیان عامل د "اذ" مقدر بولي یعني
اذکر وقت قوله تعالی، او هغه معنا د متوفیک داسي کړې ده، چي زه پایه د
تکمیل د اجل رسوم یعني بېله دې چي کافران تا مړ کړي او زه تا ځندوم تر اجل
مکتوب پوري یعني بیا به لکه نور انسان د غسي مري عند انتهاء اجلک لا

قتلاً بايدي الكفار، لکه چي يهودانو مرام د قتل ستا پر مخ بيايي، او زه پورته کوم اوس تا ومحل ته د کرامت.

**سوال:** دا پورته کول وخای ته د کرامت نو ولي رفع وخدای ﷻ ته وبلل سول؟

**خواب:** دایه رفع وخدای ﷻ ته تعظیماً وبلل، لکه په دې قول د ابراهیم ؑ چې د عراق ترک او شام ته يې سفر شروع کړی نو داسي وويل. انی ذاهب الی ربی تعظيما لذالک السفر، او دغه رنګه حاجيان زوار الله بولي يعني زيارت کونکي د خدای ﷻ تعظيماً لزيارة بيت الحرام، او يا معتکفانو ته جيران الله وايي يعني همسايه ګان د خدای ﷻ تعظيماً للاعتکاف.

**درويش وايي:** چي د مذکوره آيت ببخي د پري ترجمې کړل سوي دي. او تر ټولو صحيح ترجمه هغه ده چي امام قرطبي رحمه الله په خپل تفسير کي کړې ده چي عيسى ؑ خدی پاک اسمانو ته پورته کړی بيله خوبه لکه په بعض رواياتو ضعيف السند کي چي د انس ؓ څخه مروي دي او په يو وار وفات سره وهذا هي الرواية الصحيحة عن ابن عباس ؓ واختاره المحقق الطبري، او بعض مفسرين ؒ چي آيت محمول پر خپل ظاهري دی يعني له وفات څخه مرګ مراد دی، ولي چي ابن جرير له ابن وهب څخه روايت کړی دی چي عيسى بن مريم خدای ﷻ درې ساعته په ورځ کي مر کړی او بيا يې ژوندی کړی او اسمانوته يې پورته کړی، او حاکم ابو عبدالله بيا داسي روايت کړی چي عيسى ؑ اوه ساعته خدای مړی کړی بيا يې اسمانو ته پورته کړی او دغه رنګه دی وايي چي د مريم چي عيسى ؑ په نس کېدی دا د دیارلسو (۱۳) کالو وه، او عيسى چي اسمانو ته پورته کېدی عمر يې درو دېش (۳۳) کاله و، او مور مريم يې وروسته تر رفع دده شپږ (۶) کاله ژوندۍ وه. ابن اسحاق صاحب المغازي وايي چي روايات د موت د عيسى قبل الرفع مروي دي له نصاری وو څخه. او څوک چي نسبت و ابن عباس ؓ ته کوي هغه روايت ضعيف دي، قاله الآلوسي رحمه الله

**درويش وايي:** چي علامه بغداد خاتمة المحققين مرجع اهل العراق ومفتيهم ابی الفضل شهاب الدين السيد محمود الآلوسي البغدادي المتوفي

سنه ۱۲۷۰ هـ ق او نن صبا سنه ۱۴۲۶ هـ ق ده، ددې آیت په متعلق اته (۸)
معناوي ذکر کړي دي چې بعض له هغو معنا وو مظهرۍ په نقل له بغوي
څخه هم ذکر کړي دي. لکن په اخیر کې علامه بغدادي وایي ولا یخلو
اکثر الاوجه عن بعد انتهی، او بیا علامه بغداد د نصاری قولونه او خرافات
باره کې د عیسی په دوه مخه کې راوړي دي او تول یې رد کړي

**درویش وایي**: چې که زما د تفسیر میدان تنگ نه وای نو ما به د هغو تولو
به پښتو وطني ژبه ترجمه کړې وای بیت

تاطبع شریفت نه پذیرد ملامتی　　　　این به که اینجا بدعا مختصر کنیم

**فائده**: عیسی په اخیر د زماني له اسمانو څخه راکښته کیږي، ابو
هریرة د نبي کریم څخه داسي روایت کړی دی ژباړه پښتو "زما دې په هغه
خدای قسم وي چې زما روح د هغه په قدرت کې دی چې هر آئینه قریب دی
چې ابن مریم به په تاسي کې راکښته کیږي، حاکم به وي، عادل به وي، او
صلیب د نصاری وو به ماتوي یعنې چې نصاری یې اوس عبادت او تعظیم
کوي. او سرکوزان به وژني یعنې چې نصاری یې هم دا اوس غوښې خوري او
جزیه به نه قبلوي یعنې دده حکم یا اسلام دی او یا قتل

**پوه سه**: چې د جزیې حکم چې اوس په اسلام کې سته دده په راکښته کیدو
سره پای ته رسیږي فلا یلزم نسخ لبعض احکام الاسلام من جانب عیسی، او
علیه الصلوة والسلام وایي چې مالونه به ډیر سي حتی چې هیڅ څوک به مال له
چا څخه نه قبلوي یعنې نه په زکواة کې او نه په صدقه کې

**درویش وایي**: چې یا په سبب ددې چې مخکه به خپلې خزانې راښکاره
کړي نو هر سړی به په هغو خزانو مالداره وي، نو د بل زکواة او صدقه څه کوي
او یا په سبب د تیقن د قرب القیامة. علیه السلام وویل چې یوه سجده به خیر
وي تر دنیا ومافیها، ثم قال ابو هریره اقرئوا ان شئتم وان من اهل الکتاب الا
لیؤمنن به قبل موته. یعنې دا قول د قرآن تصدیق دی د قول د علیه السلام چې
تاسي واوریدی، وفي روایت اخری کیف انتم اذا نزل ابن مریم فیکم وامامکم

منکم یعني المهدي عليه السلام الی ههنا الحدیث" متفق علیه للبخاري ومسلم. وفي روایة لمسلم ولیترکن القلاص فلا یسعی علیها او بري به ښول سي حامله اوښانې څوک به سعي نه پر کوي یعني مع انها اعز اموال العرب. ولیذهبن الشحناء والتباغض والتحاسد" او ولاړ به سي یعنې د خلګو له زړونو څخه پټ بغض او ښکاره، او یو له بله سره حسد کول. ولې دا افعال ټول مبني پر حب د دنیا وه او په وخت کې د نزول د عیسی عليه السلام خلګو ته قیام القیامة نصب العین سي، نو د زړونو څخه به حب د دنیا ووزي ومایتفرع علی حب الدنیا من التباغض وغیره، ولیدعون الی المال فلا یقبله لمامر في الحدیث المتفق علیه وفي روایة اخری ویهلک في زمانه ای عیسی الملل کلها الا الاسلام ویهلک الدجال، او هلاک به کړه سي دجال کذاب یعني د عیسی پر لاس. نو څلویښت کاله به عیسی عليه السلام ژوندی وي او بیا به په اجل موعود سره مړ سي، او د جنازې لمونځ به مسلمانان ورکړي هذه روایة البغوي رحمه الله، او ابن جوزي رحمه الله په کتاب الوفاء کې له عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه داسې روایت کړی دی ینزل عیسی بن مریم فیتزوج وولد له ویمکث (۴۵) سنین ثم یموت فیدفن معي في قبري

**درویش وایي:** چي په هغه حجره کې د عائشې رضي الله عنها چي د علیه الصلوة والسلام قبر انور پکښې دی او د ابوبکر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه قبرونه هم پکښې موجود دي، نږدې وقبر ته د علیه الصلوة والسلام د یوه قبر ځای سته په هغه ځای کي به عیسی عليه السلام دفن کېږي او هم دغه ده معنی د حدیث نبوي "فیدفن معي في قبري" او دا معنا نه ده چي قبر نبوي به لخېږي او عیسی عليه السلام به پکښې دفن کېږي کما هو ظاهر الحدیث والله اعلم بمراده صلى الله عليه وسلم. وانما قلت ذالک لان بنش قبر النبي صلى الله عليه وسلم خلاف الادب کما لایخفی. قال علیه السلام فاقوم انا وعیسی من قبر واحد بین ابوبکر وعمر. وعن جابر رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لاتزال طائفة من امتي یقاتلون علی الحق ظاهرین الی یوم القیامة. ای قرب یوم القیامة فینزل عیسی بن مریم فیقول امیرهم، امیر المؤمنین وهو المهدي عليه السلام تعال صل لنا فقال لا ان بعضکم علی بعض امراء تکرمة الله هذه الامة رواه مسلم



Scanned by CamScanner

**درویش وايي:** چي پوره شرح ددې حدیث په شرح کې د امام نووي على المسلم او په كشف الملهم على المسلم وغيرهما کې دي مطالعه کړل سي.

**پوښتنه:** اصل مقر او ځای د عیسی ﷺ په اسمانو کې په کوم اسمان کې دی

**ځواب:** په حديث متفق عليه کې د معراج راغلي دي چي د عيسى ﷺ اصل مقر په دوهم اسمان کې دی که څه هم عيسى ﷺ د ملکو سره په اسمانو کې هر ځای ته تر عرش پوري تلاسی سي كمامر من قبل.

## وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا وَجَاعِلُ الَّذِينَ اتَّبَعُوكَ فَوْقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ

او زه تا پاکوم له هغو کسانو څخه چي کافران دي اى من سوء جوارهم في الارض. او زه ګرځوم هغه کسان چي ستا متابعت کوي يعني هغه کسان چي تا عبدالله ورسوله بولي فوق پر هغو کسانو چي کفر کوي او ستا متابعت نه کوي من اليهود والمشركين وغيرهم او فوقيت ددوئ به پر کافرانو جاري وي تر ورځي پوري د قیامت، په دلائلو سره او په توره سره والمعنى في غالب الاحوال

**پوه سه:** چي متابعين د عيسى ﷺ حواريون دي، او هغه کسان له بني اسرائيلو څخه د عيسى ﷺ وه، نه هغه کسان چي عيسى يې خدای بالله او یا يې ابن الله بالله او يا يې ثالث ثلثه بالله لانهم من جملة الذين كفروا دي، او بله دله چي متبعين د عيسى ﷺ دي مسلمانان د امت محمديه ﷺ دي، يعني بعد لبعث النبي ﷺ، ولي چي ددې امت مسلمانانو تصديق د عيسى ﷺ د نبوت وکړی او متابعت دده يې وکړی په توحيد کې او په حقيقت کې د ټولو انبياء عليهم السلام او په ټولو عقائدو دينيه وو کې، لکه ورځ د قيامت او حساب وكتاب، والجنة والنار وغيرهما من العقائد المشتركة بين الانبياء عليهم السلام، البتة په بعض فروع دينيه وو کې بې فرق وي.

**فائده:** بعض جاهل نصارى د اوسني زماني يعني وروسته تر مبعث د نبي ﷺ په دې آيت سره دليل وايي، او وايي چي زموږ موفقيت ستاسي په کتاب



Scanned by CamScanner

سره ثابت دی، نو مونږ پر تاسي هم فوق یو؟

**جواب:** هو! قرآن مبارک خو ستاسي موفقیت پر الذین کفروا باندي ثابت کړی دی. او وروسته تر مبعث د نبي ﷺ چي تاسي ایمان پر نبوت دده رانه وړی نو تاسي هم له جمله څخه د الذین کفروا یاست، یو خو ستاسي دین منسوخ سو په قرآن سره نو تابعان د دین منسوخ خو کافران دي، او بل ستاسي او د یهودانو نو څه فرق دی په کفر کي، او بل دادی چي په وصیت د عیسی علیه السلام سره او په انجیل شریف سره هم کافران یاست ولي چي ستاسي په کتاب انجیل کي دا آیت سته چي عربي ترجمه یې داده کما جاء في القرآن الکریم "ومبشراً برسول یاتي من بعدي اسمه احمد ط" او بعض مفسرین رح وایي چي مراد له الذین کفروا څخه یوازي یهودیان دي یعني تاسي نصاری که پر حق یاست او که پر باطل پر یهودانو به فوق یاست تر ورځي د قیامت، وهي کذالک الی الیوم حیث لم یسمع الی الآن مع مرور الوف سنین غلبة الیهود علی النصاری، وذهب ملک الیهود ودولتهم فلم یبق لهم ملک ودولة.

**پوښتنه:** اوس بني اسرائیل په بیت المقدس او اطرافو کي نوی قوي حکومت او دولت لري؟

**ځواب:** دا دولت او حکومت ددوی حقیقةً د امریکا د نصاری وو او د برطانیې د نصاری وو دی دوی یهودیان صرف آله کار د نصاری وو دي کما لایخفی، نو پر دې تفسیر اتباع په معنا ادعا او محبت دی نه په معنی د اتباع في الدین فتامل

**درویش وایي:** چي صاحب د روح المعاني او قرطبي دواړه تفسیرونه ددې آیت راوړي دي، یعني یا غلبه پر ټولو کافرانو او یا غلبه خاص پر یهودیانو باندي، دا و بیان تفصیلي ددې آیة ۃ ی.

ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ

**پوښتنه:** چي مراد په ضمیر سره د مخاطب عیسی علیه السلام ومن تبعه ومن کفر به دی تغلیباً للمخاطبین علی الغائبین قاله المظهري رحمه الله.



Scanned by CamScanner

فَأَحْكُمُ بَيْنَكُمْ فِيمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٥٥﴾

او زه حکم او فیصله کوم په موضوع کې چې ستاسې په هغه کې اختلاف کاوه یعنې من امور الدین. او ددې حکم او فیصله خدای ﷻ په دې آیتو کې وکړه

فَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا فَأُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٥٦﴾

نو هغه کسان چې کفر یې کړی وي زه به عذاب ورکړم دوی ته عذاب سخت په دنیا او په آخرت کې او نه به دوی لره هیڅ څوک د کومک کونکو څخه وي

وَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَيُوَفِّيهِمْ أُجُورَهُمْ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ ﴿٥٧﴾

او هرچه هغه کسان دي چې ایمان یې راوړی او عمل د صالحاتو یې کړی وي نو پوره به ورکړي خدای ﷻ ودوی ته مزدوري یعنې ثوابونه په جنت کې د قرآن کریم

**فائده**: په "یوفیهم" التفات دی له تکلم څخه وغیبت ته

**درویش وایي**: چې اهل تاریخ وایي چې عیسی ﷺ وروسته تر غلبې د اسکند پر سرزمین د بابل پنځه شپېته (۶۵) کاله زوکړی دی، او رفع دده له بیت المقدس څخه د شب قدر په شپه د روژې د میاشتې چې عمر دده درو دېرش (۳۳) کاله و انجام پذیر سوی ده، او مور یې وروسته تر رفع دده شپږ (۶) کاله ژوندی وه.

ذَٰلِكَ نَتْلُوهُ عَلَيْكَ مِنَ الْآيَاتِ وَالذِّكْرِ الْحَكِيمِ ﴿٥٨﴾

او دغه یعنې قصه د عیسی ﷺ او دده د مور مریم او قصه د حواریینو وسائر ماسبق مورږ یې تلاوت کوو پر تاباندې، یعنې په واسطه د جبرائیل له آیاتو څخه د قرآن کریم او ذکر محکم چې هم قرآن دی چې له حکمت څخه ورسره دی، او الکتب ممنوع دی له باطل څخه او له منسوخ کېدو څخه الی



Scanned by CamScanner

القيامة لان النبي ﷺ اخير الانبياء، والقرآن الكريم اخير المنزلة من عند الله العزيز الناسخ الجميع الكتب

**بوه سه:** چې ذالک په تاويل د مذکور مبتداء ده او "نتلوه" يې خبر دی، او من الآيات" حال دی له ضمير منصوب څخه په "نتلوه" کې ای حال کونه كائنا من الآيات، او بعض مفسرين رح وايي چې مراد له آياتو هغه معجزات دي چې پر صدق د نبي کریم ﷺ دلالت کوي في دعوى النبوة.

**درويش وايي:** چې پخپله دغه قصې چې مطابق د تاريخ او د کتب سره د يهودو او نصارى وو دي معجزه د عليه السلام ده لانه نبي امي.

## إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ

اى شانه الغريب من الخلق بغير الاب.

## عِندَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ

لکه حال غريب د آدم ﷺ ثم بين وجه الشبه بين عيسى وآدم بقوله

## خَلَقَهُ مِن تُرَابٍ

اى صورة من تراب، چې د ټولې مځکې له مخه څخه عزرائيل په حکم د خدای ﷻ ټولې کړې وې او بيا يې دغه خاورې په اوبو خشتې کړې وې، او بيا له څخو څخه ملکو په بنوونه د خدای ﷻ صورت انساني جوړ کړی و. يعني مشتمل پر ټولو اعضاؤ انسانيه وو باندې والضمير في خلقه راجع الى آدم

## ثُمَّ قَالَ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴿٥٩﴾

بيا خدای ﷻ وهغه قالب بشري ته وويل چې وگرځه ژوندی انسان نو هغه ژوندی بشر وگرځېدی.

**درويش وايي:** چې تفصيل د كن فيكون دمخه تېر سو.

**پوښتنه:** د آدم ﷺ موجوديت خو تر نزول د قرآن كريم په زرو کلونه دمخه و نو د يکون په صيغه د مضارع به څرنگه معنا وي؟

**جواب:** مفسرين رح او نحات ورداسې تعبير ته حکايت د حالت ماضيه وايي.

يعنې يو امر غريب كه څه هم ماضي وي حاضر يې فرض وي ليتعجب منه الناس، ومثل هذا كثير في القرآن الكريم ولسان العرب كما لايخفى

**پوه سه:** چې تشبيه د حال د عيسى عليه السلام په حال پورې د آدم عليه السلام تشبيه د غريب او نادر په حال پورې د هغه چې هغه تر حال د عيسى ډېر غريب و يعنې حالُ د آدم عليه السلام ، ولې چې د عيسى عليه السلام په حال كې خو صرف غرابتْ دا و چې بيله اب پيدا سو، نور خو مور يې درلوده او حمل د مور هم موجود و او رضاع او فطام هم موجود و، او د آدم عليه السلام په حال كې خونه اب و او نه ام، او نه حمل و او نه رضاع الى غير ذالک فيكون هذا التشبيه تشبيه للخارق للعادة وهو خلق عيسى من غير اب بالاخرق للعادة وهو خلق آدم نو د يهودانو شبه چې عيسى څرنگه بيله اب پيدا سو په ښه توگه دفع سي.

**درويش وايي:** كه څه هم دا قصه د مخه تېره سوې ده لكن اعاده يې له فائدې څخه خالي نه ده كما سنبين الفائدة في الاعادة په صحيح روايت كې راغلي دي چې وفد د نجران چې نصارى وه د بحث لپاره مدينې منورې ته راغلي وه او تعداد يې څورلس كسه وه له اشرافو څخه د نصارى وو وه چې په دې څورلس كسه كې يو يې امير و چې نوم يې اهيب و او بل يې وزير صاحب الراى ددوئ چې نوم يې عبدالمسيح و، او بل نوم يې اسقف و يعنې مجتهد د دين عيسى چې روميانو يې لوى تعظيم كاوه او بادشاه د روم دده پر نامه ډېر كنائس يعنې عبادت خانې د نصارى وو جوړې كړې وې او ډېر اموال او نقود به يې سالانه ده ته وركوله چې نوم يې ابو حارثه بن علقمه و. نو مسجد نبوي ته په داسې حال كې داخل سوه چې عليه الصلوة والسلام د مازديگر لمونځ كړى و، او ددوئ د لمانځه هم وخت و، نو چونكه نصارى چې هر ځاى وي د مشرق وخواته لمونځ كوي يعنې مخالف له قبلې څخه د مسجد نبوي صلى الله عليه وسلم نو اصحاب كرامو رضي الله عنهم وغوښتل چې دوئ منع كړي له لمانځه څخه د مشرق وخواته. نو عليه الصلوة والسلام ورته ووېل دعوهم يعنې پرېږدئ يې پرېږدئ چې مشرق ته لمونځ وكړي.

**پوښتنه:** ولې عليه السلام ودوئ ته اجازه وركړه چې وخلاف ته د مسجد

نبوي د قبلې دوئ لمونځونه وکړي؟

**ځواب:** ددې لپاره يې اجازه ورکړه چې لار د مناظرې او د دوئ د الزام په مناظره کې په مخاصمه في امر القبلة بدل نه سي.

**بوه سه:** چې دمخه تر راتلو ددوئ خدای پاک اول آيتونه د آل عمران د سورت لپاره د مناظرې د دوئ نازل کړي وه، او درويش چې وويل چې دا قصه آه هغه په اول کې د آل عمران تېره سوې ده. نو وروسته تر لمانځه ابو حارثه او يو بل د هغو درو کسانو څخه عليه الصلوة والسلام ته پېش سوه فقال لهما رسول الله ﷺ اسلما، دوئ ورته وويل اسلمنا قبلک. عليه الصلوة والسلام ورته وويل چې درواغ واياست. تاسي د اسلام څخه منع کوي درې شيان، يو عبادت دی د صليب او بل خوراک دی د سرکوزي د غوښو، او بل دا چې عيسیٰ ﷺ د خدای ﷻ زوی دی، دوئ ورته وويل چې ته زمونږ نبي عيسیٰ ته بد وايې. نبي کريم ﷺ ورته وويل ما څه بد ستاسي صاحب عيسیٰ ته ويلي دي، دوئ وويل چې تا وايه چې عيسیٰ عبد دی. عليه السلام ورته وويل هو! زه وايم چې عيسیٰ عبدالله ورسوله وکلمة القاها الی العذراء البتول مريم، دوئ ته درد ورغلی او عليه الصلوة والسلام ته يې وويل هل رئيت انساناً من غير اب. او چې ته دا منې چې عيسیٰ ﷺ لره څو پلار نه و په انسانانو کې وجب ان يکون هو الله او ابن الله. نو عليه السلام ورته وويل چې آدم ﷺ لره څو نه پلار و او نه مور لکه چې دا تاسي هم منئ چې آدم خلق من تراب. او دا نه ده لازمه چې آدم دي د خدای ﷻ زوی وي لکه تاسي چې يې هم منئ چې آدم ابن الله نه دی فکذا حال عيسیٰ ﷺ والله جلت قدرته خوارق للعادة وحال آدم اخرق للعادة من حال عيسیٰ.

په دې آيت کې اشاره او دلالت صريحه دی چې قياس حجت شرعي دی لان الله سبحانه تعالی قاس حکم عيسی من غير اب علی خلق آدم من تراب. ففي هذه الآية رد علی الفرق المعلومة الحال المنکرين للقياس کاهل ظواهر الحديث، والوهابية والسلفية وغيرهم.

**فائده سنيه:** ځونده ډېر دی جهل د نصاری و لعنهم الله حيث قالوا الرسول

الله وقت المناظرة هل رئيت انساناً قط من غير اب، او دوئ په خپلو خاوو کي فکر نه وهي چي دوئ ته څوک ووايي چي هل روا انسانا يلد شاة. او هل روا شاة تلد انساناً، سره ددې چي جنس د انسان او شات خو سره يو دی وهو الحيوان والاختلاف في النوع، نو دوئ څرنګه حکم کوي چي عيسی چي هم جسم دی او هم حادث مخلوق دی چي هم دودی خوري او هم بیدېږي او هم مري يو وخت په خاورو کي ښخېږي چي عيسی زوی د خدای دی چي هم احد دی او هم قديم لذاته دی الذي ليس کمثله شئ لم يلد ولم يولد ولم يکن له کفواً احد، هذا ماقاله المظهري وغيره من المفسرين رحمهم الله تعالی

## اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُنْ مِّنَ الْمُمْتَرِيْنَ

**پوه سه**: چي الحق يا خبر د محذوف مبتداء دی ای هو الحق، او يا فاعل د فعل محذوف دی ای جائک الحق، ويجوز انيکون مبتداء و من ربک خبره من ربک معناه الحق المذکور من جانب ربک، او پر اول دوه تقديره من ربک متعلق دی په جاء المذکور پوري او يا حال دی له ضمير څخه د في الحق، هذا ماقاله المظهري، نو ته مه ګرځه اې مخاطبه منکر له شک کونکو څخه په باره کي د عيسی لکه يهوديانو چي شک کاوه حتی چي پر مور د عيسی يې بهتان د زناء وايه، او نصاری وو بيا په دروغو سره ابن الله بالله يعني يهوديانو تفريط کاوه په عيسی کي او نصاری وو افراط کاوه، او د اسلام دين متوسط بين الافراط والتفريط دی يعني هو عبدالله ورسوله بالحق

او صاحب د روح البيان وايي چي خطاب د لاتکن وعليه السلام ته دی

**سوال**: عليه الصلوة والسلام خو معصوم دی له شک څخه فيماقاله تعالی، نو د نهي فائده به څه وي؟

**خواب**: مقصود د نهي څخه دا دی دم علی يقينک وعلی ما انت عليه من الاطمنان الی ماقاله الحق قال امام ابو منصور الماتريدي العصمة لاتزيل المحنة ولا ترفع النهي، انتهی، والعلامة الغبدادي ايضاً جعل الخطاب



Scanned by CamScanner

الى النبيﷺ والله اعلم بمراده في كتابه.

## فَمَنْ حَاجَّكَ فِيهِ

نو پسله الزامه د نصارى وو کمامر که څوک ستا سره صرف مجادله کوي يعني ناحقه بحث د رسره کوي نو مراد له "محاجة" څخه مجادله صرفه ده، او کلمه د من شرطي ده او جواب يې "فقل" دى.

## مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ

وروسته تر دې چې تا ته علم يقيني در کړه سو چې عيسىؑ عبد الله ورسوله دى، ددې قيد فائده داده چې مسلمان ته په کار دى چې د چا سره مباهله نه وکړي، مگر نه پسله کمال د يقين پر خپله راى باندې. نو عليه الصلوة والسلام که ځان پر حق يقيناً نه بللاى او نصارى پر باطل نو د مباهلې غوښتنه يې له نصارى وو څخه نه کوله.

## فَقُلْ تَعَالَوْا

نه ووايه اې محمدﷺ يعني نصارى وو ته د نجران

**بوه سه:** چې معنا لغوي د "تعالوا" بلنه د سړي ده ولوړ ځاى ته لانه مشتق من العلو، بيا توسع پکښې وسوه مراد خندې مجرد طلب د راتگ دى که څه هم مکان مرتفع نه وي، لکن دلته طلب د مجيء بالاقدام هم نه دى لان اهل نجران كانوا حاضرين عند النبيﷺ بلکې مراد خندې اقبال بالراى والعزيمة دى يعني په ټينگ قصد راسئ، او تعالوا په اصل کې د تفاعل له باب دى.

## نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ وَنِسَاءَنَا وَنِسَاءَكُمْ وَأَنْفُسَنَا وَأَنْفُسَكُمْ

**بوه سه:** چې ندع مجزوم دى په حذف د واو جواب د تعالوا. والمعنى موږ او تاسې به را وبولو، موږ خپل زامن او تاسې خپل زامن، او موږ خپلې ښځې او تاسې خپلې ښځې. او موږ خپل ځانونه او تاسې خپل ځانونه.

**بوه سه:** چې رابلل د خپل ځان عبارت د له حضور څخه دى، يعني موږ به هم حاضر يو او تاسې به هم حاضر ياست. والحاصل چې د هرې ډلې سره به



Scanned by CamScanner

هغه دپر ګران وده نه من الابناء والنساء ملګري وي، ددې لپاره چې عذاب د مباهلې چې پر کاذب نازليږي تولو ته به شامل سي.

**پوښتنه**: د څه حکمت لپاره يې ابناء او نساء تر انفس دمخه کړه؟

**ځواب**: ددې سببه چې سړی خان له خطره سره مخامخ کوي لپاره د زامنو او ښځو، نو ګويا مقصود بالذات ابناء او نساء دي او انفس تبع د هغوی ده. او بل جواب داڅی چې اصل خو داده چې داعي او مدعو به سره غير وي نو دلته د داعي چې عليه الصلوة والسلام دی او نصاری د نجران دي له ابناء او نساء څخه تغاير بالذات لري، او داعي د خپل نفس سره خو تغاير اعتباري لري فقدم الحقيقي على الاعتباري، روح المعاني مظهري، روح البيان، بيضاوي.

ثُمَّ نَبْتَهِلْ فَنَجْعَلْ لَّعْنَتَ اللّٰهِ عَلَى الْكٰذِبِيْنَ ﴿٦١﴾

او بيا به خدای ﷻ خواست او عجز وکړو چې خدايه ستا لعنت او عذاب نازل کړې پر هغه چاچې کاذب وي په مونږ دوو ډول کې يعنې عليه السلام ومن معه والنصارى ومن معهم.

**پوه سه**: چې فنجعل عطف تفسيري د نبتهل، او عطف بالفاء يې وکړی ولې چې نزول د لعنت او عذاب سمدستي په ابتهال پسې راځي تراخي نه لري

**درويش وايي**: چې مسلم او ترمذي روايت کړی دی له سعد بن ابي وقاص ﷺ چې څه وخت چې آيت د مباهلې نازل سو، نو عليه الصلوة والسلام علي او فاطمه، حسن او حسين ﷺ راوغوښتل فقال اللهم هؤلاء اهل بيتي، او به بل روايت کې راغلي دي چې عليه الصلوة والسلام ودوی ته وويل چې زه دعاء کوم تاسي امين واياست.

**درويش وايي**: چې اصحاب الآحاديث الصحيحة او ارباب التفاسير المعتبرة قصه د مباهلې ددې آيت داسي بيان کړې ده، چې څه وخت چې آيت د مباهلې نازل سو او عليه الصلوة والسلام نصارى د نجران را وغوښتله، او دا آيت يې ورته ووايه او ورته وه يې ويل چې راځئ چې مباهله وکړو، دوی ورته وويل چې مونږ به مشوره سره وکړو صبا بيا حال درته وايو، نو ددوی مشران بو

خای په خلوت کې سره کښېنستل. او عاقب ته صاحب رای د دوی د وی ورته وویل چې ستا څه رایه ده یا عبدالمسیح؟ هغه ورته وویل والله لقد عرفتم یا معشر النصاری ان محمداً مرسل. او وه یې ویل مالا عن قوم نبیاً قط فعاش کبیرهم ونبت صغیرهم فان فعلتم ذالک لتهلکن، نو که تاسې غواړئ چې موږ پر دین عیسوي هر رنګه چې موږ عیسی بولو پاته سو، نو ددغه سړي سره یعنې د علیه الصلوة والسلام سره د صلح او جزیې لاره غوره کړئ او خپلو کورو ته بیغمه ولاړ سئ، نو صبا چې نصاری د نجران راغله او علیه الصلوة والسلام حضرت حسینؓ په غېږ کې را اخستی و او حسنؓ تر لاس نیولی و، او فاطمهؓ په علیه الصلوة والسلام پسې وه او علي ؓ د فاطمېؓ تر شا روان و وهو یقول اذا دعوت الله فامنوا، نو اسقف د نصاری وو یعنې ابو حارثه پېټ وخپلو ملګرو ته پخپله ژبه داسې وویل چې زه وینم داسې مخان که چېرې که چېرې خدای ﷻ ته خواست وکړي چې دا غر له منځه یوسې خدای ﷻ به یې خواست ومني فلا تبتهلوا تهلکوا ولا تبقی علی وجه الارض نصراني الی یوم القیامة، نو باره وفد د نجران ورته وویل یا اباالقاسم زموږ رایه او اتفاق پر دې سو چې موږ ستا سره تلاعن او ابتهال نه کوو او تا پرېږدو پر خپل دین او موږ به پر خپل دین ثابت یو، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل که مباهله نه کوئ نو ایمان راوړئ لکم ما للمسلمین وعلیکم ماعلیهم. دوی له اسلام څخه منع وکړه، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل که اسلام نه قبلوئ نو زه ستاسې سره جنګ کوم دوی ورته وویل چې موږ د عربو د جنګ طاقت نه لرو، لکن ستا سره صلح کوو پر دې باندې چې ته به زموږ سره غزاء نه کوې او نه به موږ بېروې او موږ به پر خپل دین پرېږدې، او موږ به تا ته دوه زره جوړه کالي درکوو، زر جوړه به د صفرې په میاشتې کې او زر جوړه د رجب په میاشتې کې، نو علیه الصلوة والسلام صلح ورسره وکړه پر دغه دوه زره جوړه کالو باندې. نو بیا علیه السلام ورته وویل چې زما دې په هغه خدای ﷻ قسم وي چې زما روح د هغه په قدرت کې دی چې عذاب ډېر نیژدې سوی و واهل نجران ته او که دوی مباهله

او تلاعن کړی وایي دوئ به مسخه سوي وای سر کوزان او بیزوګان او دي شبلي د مدینې به پر دوئ اور اخستی وایی، او خدای ﷻ به بیخ کندن کړی وایی د ټوله نجران او اهل نجران حتی مرغان د نجران پر درختو پاندي، او علیه الصلوة والسلام زیاته کړه چي کال به نه وایی تیر سوی پر نصاری وو پاندي حتی چي ټوله به هلاک سوي وایی، هذا ما رواه ابو نعیم في الدلائل بطریق عدیدة عن ابن عباس رض.

**فائده**: درویش وایي چي روافض قبحهم الله په دغه آیت سره دلیل وایي پر نفي د خلافت د ابو بکر او عمر او عثمان رض او دوئ وایي چي خلیفه اول بعد رسول الله ﷺ امام علي رض دی، او دوئ ظالمان وایي چي مراد له ابنائنا څخه الحسن او الحسین رض دي، او مراد له نساء څخه فاطمة الزهراء رض ده او د انفسنا څخه علي رض دی، نو دوئ وایي چي خدای ﷻ په دې آیت کي علي رض خود محمد ﷺ وبولی، او دوئ ظالمان وایي چي علي رض برابر دی د علیه الصلوة والسلام سره په فضائلو کي او دوئ وایي چي علیه الصلوة والسلام اولی بالتصرف في الناس من انفسهم، قال الله تعالی النبي اولی بالمؤمنین من انفسهم' نو دوئ وایي علي رض چي خدای ﷻ نفس محمد ﷺ په دغه آیت کي وباله ددوئ په زعم فاسده سره، نو علي رض هم اولی الناس من انفسهم فهو الخلیفة الاول وبالحق بعد رسول الله ﷺ.

**درویش وایي**: چي ددوئ فاسد دلیل چي په ونیا یې وهښتیان د مسلمان پر بدن جګ درېږي، والجواب من جانب اهل السنة والجماعة اول دادی چي په آیت کي خو نفس په صیغه د جمع راغلی دی، نو څرنګه یوازي علي رض څخه مراد کېدای سي، بلکي مراد له انفس څخه د علیه السلام او د من تبعه فیشمل الخلفاء الاربعة وغیرهم رض، او دا دوئ څرنګه وایي چي نفس د علیه الصلوة والسلام او د علي رض سره یو شی دی بل یشهد ببطلان نفس الشخصین الثقلان، او بل جواب دادی چي مراد په آیت کي له ابناء څخه الحسنین بشمول ابیهما علي رض ولي چي په عرف کي د عربو او د عجمو زوم د سري زوی د هغه



Scanned by CamScanner

بلل کبري، وهذه الارادة بطريق عموم المجاز، وهو الواقع في العربية شائعاً لم ينكره احد من المعاندين المشركين، او بل جواب دادی چي مراد له انفسنا څخه دي من يتصل به عليه الصلوة والسلام نسباً ودیناً فح لا يلزم المساوات بين النبيﷺ وعلي كرم الله وجهه اصلاً. او بل جواب دادی چي مساوات د علي‎ؓ د نبيﷺ په ټولو صفاتو کي خو باطل دي زموږ او د دوئ په اتفاق سره لان من صفاته عليه الصلوة والسلام النبوة والكلام مع الله في ليلة المعراج، وكونه خاتم النبيين وسيد المرسلين الى غير ذالک من صفاتهﷺ، او روافض دا صفات په عليؓ کي نه وايي، او که مراد مساوات وي په بعض صفاتو کي مثلاً في كونهما من بني هاشم والتراحم على اليتامى والمساكين وغير ذالک نهو لايفيد نفاذ حكم عليؓ على الناس كنفاذ حكم النبيﷺ على الناس حتى يكون عليؓ هو الخليفة الاول مسلطاً على الناس كالنبيﷺ كما هو مرام الروافض خذلهم الله.

**بوه سه**: چي علامه بغدادؒ په روح المعاني کي وايي چي اطلاق د ابن پر ابن البنت چي حسنينؓ دي هم مجاز دی في العرف العام كاطلاق الابن على الختن فهما على حد سواء في المجازية فلاحاجة الى عموم المجاز كما قلنا سابقاً. البته په دي آيت کي دليل واضح دی پر فضليت د آل الرسولﷺ ولايشک فيها مؤمن.

**سوال**: طبرسي او نور له علماؤ څخه د روافضو وايي چي مراد له انفسنا څخه نفس شريفه د عليه الصلوة والسلام نه دی صحيح ولي ندع په صيغه د متكلم راغلی دی والشخص لايدع نفسه، نو دا معلومه سوه چي مراد له انفسنا څخه عليؓ دی، مفتي عراق ددي په جواب کي وايي چي دا يو خلاف اللغة العربية خبره ده، ولي چي قديماً وحديثاً دا شائع او ذائع خبره ده دعته نفسه الى كذا ودعوت نفسي الى فعل كذا، وطوعت له نفسه وشاورت نفسي الى غير ذالک من الاستعمالات الواقعة في عبارات البلغاء فيكون حاصل ندعوا نفسنا نحضر انفسنا الى المباهلة وای محذور في ذالک ثم قال سلمنا فالمراد

بانفسنا هو علي﷜ لكن لانسلم ان المراد من النفس ذات الشخص اى علي﷜
اذ قد جاء لفظ النفس بمعنى القريب والشريک في الدين والملة فارادة علي﷜
من هذا لسبب يعني چونكه علي﷜ لره اتصال و د نبي عليه الصلوة والسلام
سره په نسب كي او په مصاهرت كي او اتحاد دين او ملت كي، نو خكه
خداى﷯ د علي﷜ تعبير په نفس النبي ﷺ سره وكړى ولايلزم من ذالک
مساوات علي﷜ لرسول الله ﷺ في نفاذ امر علي على جميع الامة بعد النبيﷺ
كنفاذ امر النبي ﷺ على جميع امة وهذا معنى الخلافة بعد النبي ﷺ فانهدم
منار استدلال الروافض بهذه الآية.

**درويش وايي:** چي سيد محمود آلوسي المتوفي سنه ۱۲۷۰ هـ كي و.
روافضو ته يو ډېر په زړه پورې جواب داسي وركړى دى چي د انفسنا كه علي﷜
مراد سي آيا داسي مراد دى چي علي به مدت حيات امير المؤمنين وي كه دا
مراد وي، نو بايد امير المؤمنين علي﷜ په زمانه كي د حيوة د رسول الله ﷺ هم
امير المؤمنين وي، نو دا غلطه خبره ده او تاسي هم نه ياست په قائله. او كه
مراد دا وي چي حضرت علي﷜ به په يو وخت كي امير المؤمنين وي فمرحبا
بالوفاق ولي اهل السنة والجماعة هم وايي چي علي﷜ به يو وخت امير
المؤمنين وي يعني وخت خلافة بعد الخلفاء الثلثة﷢.

**درويش وايي:** چي په دې جواب سره قد سقط جدران بيت الروافض على
سقوفهم.

**تنبيه:** پر بطلان د مذهب د روافضو په عقائدو او په تفاسيرو معتبره وو كي
ببخي ډېر جوابونه او دلائل سته وفي ماذكرنا كفايةٌ لمن رزق فهماً.

إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ الْقَصَصُ الْحَقُّ

په تحقيق سره دغه قصې د عيسى او مريم حق قصې دي مطابق لما في
التواريخ، تواريخ النصارى.

**پوه سه:** چي "هو" يا ضمير فصل په منځ كي د اسم ان او د خبر د هغه چي
القصص دى لپاره د تاكيد د اسناد بعد التاكيد بان، او يا هو مبتداء ده او



Scanned by CamScanner

قصص یې خبر دی او جمله خبر د ان ده. والمقصود ان قصة مريم وعيسى على هذا الطريق الذي بينه القرآن الكريم هو الحق المطابق للواقع دون مافي بعض تواريخ النصارى من الخرافات كما سمعت من خرافاتهم في هذا التفسير.

**فائده:** په منع کې د وفد نجران له مباهله څخه دلیل قوي دی پر نبوت د علیه الصلوة والسلام ولي که د وفد نجران په عقیده که علیه الصلوة والسلام نبي نه وایی نو دوی ولي امتناع کوله له مباهله څخه چې یو اسان کار و، او دروند بار د جزئی پر غاړه اخستی نو ددوی ایمان و چې ضرر د مباهله ومونږ ته بلکې وتولو نصارى وو ته راجع کبري كما اقروا بذالک فيما بينهم كمامر تفصيله عنقريب لکن د دنیا جاه او جلال او متاع ومال مانع د ایمان ددوی وګرځي فاشتروا بالايمان ثمناً قليلاً

وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ إِلَّا اللَّهُ ۚ وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿۶۲﴾

**پوه سه:** چې "من" لپاره د استغراق د نفي دی رداً على النصارى في قولهم تثليث الآلهة والمعنى، او هیڅ نسته معبود بالحق مګر الله ﷻ او په تحقیق خدای غالب دی هرڅه چې اراده یې سي مانع یې څوک نه سي کیدای. او په تولو مصنوعاتو او افعالو کې حکمت لري.

فَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِالْمُفْسِدِينَ ﴿۶۳﴾

او که دوی اعراض وکړي له دلائلو څخه د توحید د خدای ﷻ نو په تحقیق خدای خبر دی په مفسدینو کسانو یعنې په ورځ د قیامت به مجازات ورکړي.

**پوه سه:** چې اصل د کلام دا و فان تولوا فان الله يعذبهم، لکن يعذبهم یې حذف کړی او علیم بالمفسدین یې د هغه په ځای کې راوړی اقامةً للعلة مقام المعلول وجه العلية والمعلولية داده چې خدای پاک علم لري په افساد دوی په اطرافو کې د عالم په اشاعت د کفر او معاصي وو او نور خلګ د ایمان راوړو څخه منع کول. او پخپله هم په کفران د منعم حقیقي او په عصیان د هغه خدای او په مخالفت د رسول الله خدای اخته دي. دا ټوله سبب دی بلکې اسباب دي د عذاب ورکولو د خدای ﷻ ودوی ته مظهري ودرویش.

**فائده**: في المباهلة درویش وایي چي مباهلې لره د انبیاء علیهم السلام يو لوی تاثیر سته چي سبب د تاثیر یې صاحب د روح المعاني او صاحب د روح البیان په تفصیل بیان کړی دی چي عربي الفاظ یې د مطالعه کونکو سره ددې تفسیر مناسب نه دی او هغه عربي عبارت یې په پښتو ژباړه کي نه سي پیاده کېدای من اراد ذالک فلیرجع الی التفسیرین المذکورین.

**دورېش وایي**: چي دعاء بالخیر او بدرا لره د اولیاء الله هم په حکم د خدای ﷻ لوی تاثیر سته. په روایت کي راغلیدي چي شاعر بسطامي چي لوی ازاري شاعر و یوه ورځ یې شیخ کمال الدین الخجندي رحمه الله چي یو لوی ولي له اولیاؤ څخه د خدای ﷻ و په مجلس کي یې د شعراء ولیدی نو ازاري شاعر وویل، از کجایي از کجایي ای لوند. فقال الشیخ في جوابه از خجندم از خجندم ازخجند، لکن شیخ مذکور دده له بې ادبۍ څخه ډېر متاثر سو، او شیخ دا محمول پر حال د سکر دده کړه، نو شیخ وویل چي غالبه داده چي خوان سکران دی، بسطامي شاعر واورېدل، وقال بالبداهة

سیه چشمیت مردم کش خراب غمزه اویم
از ان درعین هشیاری سخن مستانه میگویم

وروسته بسطامي شاعر په هجو د شیخ خوله پوري کړه او وه یې ویل

ای ملحد خجندی ریش بزرگ داری
کزغایت بزرگی د ریش میتوان گفت

نو شیخ چي دا شعر د بسطامي واورېدی ډېر متالم سو، نو بدرا یې ورته وکړه فمات في ذالک المجلس.

**وصیت**: هوښیار سړي لره پکار دی و صلحاؤ ته د امت محمدي دي ازار نه رسوي، ولي نتیجه د ازار وده ته راجع کېږي، قال الله تعالی "ولا یحیق المکرا لیسی الاباهله" بیت

نای کند ناله بدین قول است — از نفس پیر بترس ای جوان

**درویش وایي**: چي محقق برسوي المتوفي "۱۱۳۷ هـ" د جلد دوهم ص ۴۶ کي وايي عقوق الاستاذین لاتوبه له قاله المشائخ



Scanned by CamScanner

**درویش وایي:** چې مـا پـه شرح پښتو کې د کنز الدقائق پـه بـاب کې د حقوق الاستاذین یو فصل پـه عنوان د فصل فهم ایښـی دی، پـه حوالـه د تفاسیر کثیره او پـه نقل لـه کتابو څخه د فقهاؤ رحمهم الله او ډیر مفصل بحث مې پـه هغـه کې کړی دی او د ډیرو سختو الفاظو د بعض تفاسیرو مې تاویل او نـرم والی بیـان کړی دی لکن تلامذة الیوم کثیر منهم لایخلون عن عقوق الاستاذین بل اکثر منهم د استاذانو شدید غیبت کوي، بلکې بعض شاگردان پر استاذانو بهتان وایي فامرهم الی الله ان شاء غفرلهم وان شاء عذبهم من شاء التفصیل فلیطاع شرح الکنز

# قُلْ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ

ووایه اې محمد ﷺ واهل کتابو ته چې مراد څخه یهود او نصاری دواړه دي

**درویش وایي:** چې امام مظهري رحمه الله یو بې خایه شان نزول بیـان کړی دی، دی وایي چې دا آیت نازل دی پـه یهودو کې چې دوئ ویلـه ابراهیم یهودي و او موږ پر دین د ابراهیم یو، او پـه نصاری وو کې چې دوئ ویلـه ابراهیم نصراني و او موږ پر دین د ابراهیم یو الخ

**درویش وایي:** چې دا شان نزول د هغه آیت سره ډیر مناسب دی "قل یا اهل الکتـاب لم تحاجون فـي ابراهیم الآیة" او صاحب د روح المعـاني وایي چې دا آیت پـه وفد کې د نجران نـازل سوی دی، قالـه السـدي والحسـن ومحمد بن جعفر، او لـه قتاده او ربیع او د ابن جریح څخه روایت دی چې دا آیت پـه یهودو کې د مدینې نازل سوی دی، او ابو علي الجبایي وایي چې پـه دواړو کې نازل دی، وعلیه اتفاق اکثر المفسرین رح، قال البیضاوي رحمه الله یعم اهل الکتابین، او مظهري وایـي الخطاب یعم اهـل الکتـابین، او روح البیـان وایـي ای الیهـود والنصاری والیـه ذهب الامام الرازي والقرطبي

**درویش وایي:** ولله در صاحب روح البیـان، دوئ وایـي چې علیـه الصلـوة والسلام ډیر حریص و پر ایمان د یهودو او د نصاری وو، ولې چې دا دوئ لوی دلیل وې د کفارو د عصر نبوي ﷺ، نو خدای ﷻ دی امر کړی چې د احتجاج او دلائلو لـه لارې څخه احتجاج عدول وکړه او داسې لارې ته چې عقل سلیم والا دا

ووايي چي خبري د محمد ﷺ مبني پر انصاف دي او پر ترک د جدال دي لاميل فيه الى جانب، او له تعصب څخه خالي خبري دي او دا يو داسي خبري دي چي پر اصل مرکز ولاړي دي او دا خبري نسبت يې موږ او مسلمانانو ته برابر دی کمرکز الکرة والدائرة. انتهی ببعض الزيادة والتوضيح.

## تَعَالَوْا إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ

راسئ ويوږ خبري ته چي هغه کلمه برابره ده زموږ او ستاسي تر منځ.

**پوه سه:** چي "سواء" مصدر دی دلته په معنا د مستوية.

**سوال:** کلمه خو لفظ موئث و نو سواء يې ولې موئث نه راوړی؟

**ځواب:** مصدر نه تثنيه کېږي او نه جمع کېږي او نه موئث کېږي کما تقرر في النحو، او موږ تاويل په "مستوية" وکړی ليصح توصيف الکلمة به، او ممکنه ده چي سواء پر خپل معنا مصدري پاته سي او توصيف د کلمة په سواء سره دي مبالغةً وي نحو زيد عدل.

**پوه سه:** چي "بيننا وبينکم" ظرف د سواء دي، والمعنی التسوية انه لايختلف فيها القرآن والانجيل والتوراة.

**فائده:** پوه سه چي د کلمة معنا په لغت کي جمله مفيده ته وايي، نحو کلمة الله هي العليا ای لا اله الا، او قصيدې ته هم وايي، نحو کلمة لبيد ای قصيدته او په منطقو کي فعل ته وايي او په نحو کي لفظ وضع لمنی آه وهما عرفان متحدثان.

**درويش وايي:** چي آلوسي رحمه الله مع علو کعبه في اللغة العربية والاطلاقات العرفية فسر کلمة هٰ بالکلام ونسبه الى الزجاج. ثم قال واطلاقها على ذالک في کلامهم من باب المجاز المرسل وقيل انه من باب الاستعارة آه ولعل لکلام وجه لست اجعله فتامل في ذالک.

## أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا اللَّهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا

چي هغه کلمه داده چي موږ به عبادت نه کوو مگر دخدای ﷻ يعني شريک في العبادة د خدای سره نه گرځوو هيڅ شی نه انسان او نه بت او نه ملکه او نه شيطان



Scanned by CamScanner

**پوه سه:** چي ان لا نعبد" په محل کي د رفع دی ای هو او يا بدل له کلمة څخه دی، نو محل يې د جر دی، او بعض مفسرين وايي چي منصوب په نزع د حرف جر دی ای بان لانعبد او مونږ به شريک نه گرځوو په وجوب الوجود کي هيڅ شی لکه يهود چي وايي عزير ابن الله او يا نصاری وايي چي عيسی ابن الله دی، او يا ثالث ثلثة دی، نو خدای ﷻ چونکه واجب الوجود دی زوی يې هم بايد واجب والوجود وي فهذا اشتراک منهم في الوجوب.

**وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِّنْ دُونِ اللهِ**

او نه به گرځوي بعض د انسانانو نور بعض رب خپل يعني اطاعت به نه کوي البعض لبعض من دون اذن الله کما امرنا الله باطاعة الرسول ﷺ حيث قال اطيعوا الله واطيعوا الرسول الآية" وقال في موضع آخر ومن يطيع الرسول فقد اطاع الله.

**پوه سه:** چي ترمذي له عدي بن حاتم رضی الله عنه څخه داسي يو روايت راوړی دی چي ده وعليه الصلوة والسلام ته وويل ماكنا نعبدهم يا رسول الله ﷺ؟ نو عليه السلام ورته وويل اليس كانوا يحلون لكم ويحرمون فتاخذون بقولهم قال نعم قا هو ذاک" قال الترمذي حديث حسن.

**پوه سه:** چي اطاعت د علماؤ او د اولياؤ او يا د مسلمان امير چي موافق د شرع شريفې سره وي هغه په اجازت د خدای ﷻ دی، نو هغه هم طاعت الله دی قال الله تعالى اطيعوا الله واطيعوا لرسول واولى الامر منكم" او كه ښوونه او امر د علماؤ او يا د اولياؤ او يا د سلطانانو خلاف الشرع و نو د هغه اطاعت كول په اتخاذ بعضنا بعضاً كي داخل دی. د امير المؤمنين علي رضی الله عنه څخه روايت دی لاطاعة لاحد في معصية الله وانما الطاعة في المعروف رواه الشيخان

**فَإِنْ تَوَلَّوْا فَقُولُوا اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ ﴿٦٤﴾**

او كه اعراض وكړي اهل كتاب يعني اليهود والنصارى د دغه كلمه حقه عادله المستقيمة المستوية المتفق عليها الكتب المنزلة والرسل المبعوثين،



Scanned by CamScanner

نو ته او مؤمنان وویاست ودوی ته اې اهل کتابو تاسي شاهدان اوسئ پر دې چې موږ یعنې علیه الصلوة والسلام او امت ایمان لرو پر ټولو کتب سماویه او پر ټولو انبیاء کرامو یعنې نه تاسي، ولې یهودیان فقط تورات او موسی علیه السلام مني، او نصاری فقط عیسی علیه السلام او انجیل مني فنحن اوسع همة و ایمانا منکم.

**فائده:** ابن عباس رضي الله عنه له ابو سفیان بن حرب څخه داسې روایت کړی دی چې هرقل چې ملک الروم و، ابو سفیان بن حرب ته یې سړی ورواستاوه چې دی او اقریش وشام ته د تجارت لپاره تللی و او دا هغه وخت و چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د ابو سفیان او د کفارو سره د قریشو صلح کړې وه چې موږ به په خپل منځ کې جنګ نه سره کوو، نو ابو سفیان وایي چې زه او زما ملګري ایلیا ته ورغلو چې هرقل په ایلیا کې و نو هرقل موږ خپل مجلس ته وروغوښتلو چې په مجلس کې د هرقل ټوله ملکي او نظامي غټ غټ افسران حاضر وه، او بیا هرقل د علیه الصلوة والسلام هغه مکتوب چې لپاره ددعوت د هرقل و اسلام ته په لاس د دحیة بن خلیفة ورکړی و او هغه خط دحیة و والي ته د بصرې له طرفه څخه د هرقل ورکړی و او هغه والي و هرقل ته استولی و، نو ابو سفیان وایي چې مکتوب د نبي صلی الله علیه وسلم په دې ډول و "بسم الله الرحمن الرحیم من محمد بن عبدالله، عبدالله ورسوله الی هرقل عظیم الروم سلام علی من اتبع الهدی، اما بعد فاني ادعوک بدعایة الاسلام اسلم تسلم یؤتیک الله اجرک مرتین. فان تولیت فان علیک اثم الاریسین، ویا اهل الکتاب تعالوا الی کلمة سواء بیننا وبینکم، ان لا نعبد الا الله ولانشرک به شیئاً ولایتخذ بعضنا بعضاً ارباباً من دون الله فان تولوا فقولوا اشهدوا بانا مسلمون.

**درویش وایي:** چې دا حدیث په بخاري او مسلم کې ډېر طویل دی چې د بخاري تقریباً یو نیم مخ یې ښانسته کړی دی لکن د موضع د حاجت تر دې ځایه مختصر کړه سو.

**فائده:** مظهري رحمه الله وایي چې علیه الصلوة والسلام چې دا آیت وفد ته د نجران ووایه، او بیا یې دغه آیت په مکتوب شریف کې خپل و هرقل ته نوشته



Scanned by CamScanner

کړی، او هرقل او وفد د نجران یې داسې ردونه ویل چې دا کلمه زموږ په کتابو کې نشته. دلیل قاطع دی پر نبوت د علیه الصلوة والسلام او پر دې باندې چې دا کلمه مجمع علیها ده بین الکتب المنزلة والرسل. نو دا خبره واضح سوه چې یهودیان چې وایي عزیر ابن الله دی. او نصاری وایي عیسی ابن الله دی دا مبني دی پر افکار فاسده وو د دوئ او پر تقلید د آباء او اجداد. وبدون الاستناد الی الکتب الالهية، نو که په کتب کې ددوئ یو شی وایی نو دوئ به هغه وعلیه الصلوة والسلام ته پیش کړی وایی. اما دوئ صرف عقلي دلیل پیش کړی یعني قولهم هر رئیت انساناً من غیر اب.

**پوه سه:** چې قاضي بیضاوي رحمه الله وایي چې په دې قصه کې د عیسی علیه السلام باید سړی فکر وکړي چې خدای جل جلاله په لاز ښوونه کې د نصاری وو درجه پر درجه دلیلونه ویلي دي، اول دا چې خدای پاک احوال د عیسی علیه السلام بیان کړه چې د مریم په رحم کې و او بیا مریم لنګه سوه لکه نوري ښځې چې لنګېږي او عیسی پیدا سو او عیسی علیه السلام د غذا محتاج و د مور له شیدو څخه او وروسته تر فطام بیا غذا ته د ډوډۍ محتاجه وچې دا ټوله احوال منافي دي له الوهیت سره د عیسی، نو څرنګه یې نصاری اله بولي او یا یې ابن الله بولي. او یا یې ثالث ثلثه بولي، وروسته بیا خدای پاک هغه د دوئ وشبهې ته چې دوئ علیه الصلوة والسلام ته وویل چې رئیت انساناً یولد من غیر اب په داسې الطف وجه ور زائل کړه فقال الله تعالی ان مثل عیسی کمثل آدم الآیة. یعني عیسی که څه هم پلار نه درلودی مور خو یې درلوده، او د آدم خو نه مور وه نه پلار بلکې له خاورو څخه خدای پاک پیدا کړی چې دا موضوع نصاری هم مني. نو بیا ولې دوئ وایي چې رئیت انساناً آه.

بیا خدای جل جلاله ددوئ ټینګ والی پر خپل عقیده په باره کې د عیسی علیه السلام ولیدی بیا یې نو دوئ دعوت کړه ومباهله ته په ډېر الطف وجه د اعجاز القرآن، بیا چې خدای جل جلاله ددوئ انکار له مباهله څخه او راضي کېدل ددوئ په ورکولو د جزیه کمامر کل ذالک في بیان حال نصاری النجران، او چونکه د نصاری

انکار في الجملة نرم سو بقبول الجزیة بیرته خدای ﷺ په ارشاد ددوئ شروع وکړه په ډیره اساني سره او په عین حال کي وددوئ ته لوی الزام هم و نو دوئ ته یې دعوت ورکړی و داسي شي ته ای التوحید چي پر هغه باندي عیسی علیه السلام او انجیل او ټوله انبیاء علیهم السلام او ټوله کتب الهیه متفق دي بقوله تعالی "تعالوا الی کلمة الآیة" وروسته تر هغه چي دې ارشاد هم فائده ونه کړه، نو مناظره او ارشاد خدای ﷺ قطع کړی او علیه الصلوة والسلام او مسلمانانو ته یې وویل "اشهد بانا مسلمون"

**درویش وایي:** چي دا وه د بیضاوي د مختصر بیان ژباړه په پښتو کي، نو حاسدان باید سر په ګریبان د فکر کي ننباسي او له حسد څخه توبه وکاږي لکن هیهات.

**فائده:** هغه مکتوب چي علیه الصلوة والسلا و هرقل ته استولی و او وړاندي یې یوه حصه تېره سوه په یوه بله برخه کي د هغه حدیث داسي راغلي دي چي هر قل له ابو سفیان څخه په باره کي د رسول الله ﷺ ډېري پوښتني وکړې کما في صحیح البخاري نو هرقل وویل لو کنت عنده لقبلت قدمیه، دا له دې سببه چي هرقل ته صدق د نبي ﷺ معلوم سو من سواله عن ابی سفیان وجواباته من علاماته في الکتب القدیمة ولکن خاف من ذهاب الریاسة، وروسته هرقل په جواب کي د مکتوب د علیه الصلوة والسلام داسي نوشته کړه انا نشهد انک نبي ولکنا لانستطیع الی نترک الدین القدیم الذي اصطفاه الله لعیسی علیه السلام، نو آنحضرت ﷺ دده مکتوب ته تعجب وکړی او وه یې ویل لقد ثبت ملکهم الی یوم القیامة ابداً.

**درویش وایي:** چي په دې قول د علیه الصلوة والسلام معجزه باهره ده، ولي چي د نصاری وو له لاسه یکلخته سلطنت نه دی وتلی بلکي په ډېره کره د مځکي کي اوس هم قوي ریاستونه لري، سنه ۱۴۲۶ هجري قمري.

**دربش وایي:** چي مثل د مکتوب د هرقل یو مکتوب د فارس بادشاه یعني خسرو پرویز کجکلا ته نوشته کړی و خسرو چي مکتوب د علیه الصلوة والسلام ووایه مکتوب یې ټوک ټوک کړی نو علیه الصلوة والسلام ته چي دا

حال ورسپدی داسې یې وویل اللهم مزقهم کل ممزق او دا یې زیاته کړه چې قد خرق الله ملکهم ابداً.

**درویش وایي:** چې قصه د زوال د ملک د کسرئ او بیا عدم سلطنت د مجوسیانو فارسیانو الی یومنا هذا بل الی یوم القیامة چونکه ډېره اوږده قصه ده او په یو مناسب ځای کې به ددې تفسیر به راسي ان شاء الله تعالی هم معجزه ظاهره د علیه الصلوة والسلام ده کما لایخفی.

**پوه سه:** چې یوه ورځ په مجلس کې د نوشیروان درې کسان د پوهانو سره جمع سوه، نو ددوئ بحث ودې ځای ته را ورسېدی چې سخت ترین د سختئ د ژوند څه شی دی نو حکیم رومي وویل هو الشیخوخة مع الفقر، او هندي پوهاند وویل هو المرض وعلة البدن مع کثرة الغموم، او بزرجمهر چې د نوشیروان وزیر و هغه وویل هو قرب الاجل وسوء العمل، وروسته هغه نورو دوو حکیمانو په قول سره د بزر جمهر فتوی ورکړه ازقنا الله وایاکم حلاوة الطاعات الی یوم الممات وایدنا الله ﷻ بالعصمة عن سوء الاعمال الی وقت مجئ هاذم اللذات آمین، والی قول هؤلاء الحکماء قد اشار العارف الجامي:

پیش کسری زخرمند حکیمان میرفت
سخن از سخت ترین موج درین لجه غم
آن یکی گفت که بیماری و اندوه دراز
وآن دیگر گفت که ناداری وپیرستی بهم
سو یمین گفت که قرب اجل و سوء عمل
عاقبت رفت بترجیح سوم حکم حکم

يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ لِمَ تُحَآجُّونَ فِىٓ إِبْرَٰهِيمَ وَمَآ أُنزِلَتِ ٱلتَّوْرَىٰةُ وَٱلْإِنجِيلُ إِلَّا مِنۢ بَعْدِهِۦٓ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٦٥﴾

پوه سه: چې ددې آیت شان نزول ابن اسحاق رحمه الله له ابن عباس رضی الله عنه څخه داسې بیان کړی دی، او مظهري دغه شان نزول دلته هم بیان کړی دی، او په دمخه آیت کې یې هم دغه شان نزول راوړی دی لکه درویش چې دمخه هم اشاره ورته وکړه



Scanned by CamScanner

چي مناسب ځای ددې شان نزول وروسته يعنې دا اوسنی آيت دی، ابن عباس رضي الله عنه وايي چي نصاری د نجران چي مدينې منورې ته راغله د عليه الصلوة والسلام سره د بحث په باره کي د عيسی عليه السلام کمامر تفصيله، نو احبار د يهوديانو يعني ملايان ددوئ هم مجلس ته ورغله، نو ملايانو د يهوديانو وويل چي ابراهيم يهودي و او موږ پر دين د هغه يو، او نصاری وو د نجران وويل ماکان ابراهيم الا نصرانياً ونحن علی دينه، نو خدای پاک په رد کي د دواړو ډلو دا آيت نازل کړی، ترجمه: اې اهل کتابو خطاب دی ويهوديانو او نصاری وو دواړو ته. ولي تاسي خصومت او بحث کوئ د ابراهيم په دين کي، او نه دی نازل سوی تورات چي له نزول څخه د تورات يهودي دين منځ ته راغلی دی، او انجيل چي د نصرانيت دين د هغه له نزول څخه وروسته پيدا سوی دی، مگر نه وروسته تر ابراهيم عليه السلام يعنې ډېره زمانه وروسته چي د تاريخ په پاڼو کي وايي چي په منځ کي د ابراهيم او د موسی زر کاله تېر سوي وه، او په منځ کي د موسی او عيسی چي اخير نبي و د اسرائيلو هم زر کاله فاصله وه، آيا تاسي دواړې ډلي عقل نه لرئ چي ابراهيم ته يا د يهوديت نسبت کوئ يا د نصرانيت.

**فائده:** اصل د "لم" لما و او ما استفهاميه ده او استفهام لپار د تعجب او انکار دی او سبب د حذف د الف د ما په دخول د حرف جر سره فرق دی په منځ کي د ما موصوله او استفهامي. کذا قال البحر البغدادي رحمه الله.

**پوښتنه:** يهوديان دعوه د محبت د موسی عليه السلام او د تورات کوي. آيا دا دعوه ددوئ حقيقت لري او که صرف د خولې خبري دي؟

**ځواب:** دوئ په حقيقت کي يعنې علماء د دوئ محبت د موسی او د تورات نه لري والا لقبلوا وصية موسی والتوراة لکه عبد الله بن سلام رضي الله عنه چي ددوئ يو ستر حق بين عالم و د موسی او د تورات وصيت يې قبول کړی او پر عليه السلام يې ايمان راوړی حيث ورد في التوراة بلفظه ينابی: مقريخ الی وتسماعون الخ بلکې دوئ په حقيقت کي حب المال والجاه والجلال والرياسة کوي کما حکی الله تعالی عنهم اشتروا بآياتي ثمناً قليلاً.

**پوښتنه**: نصارٰی هم دعوی د محبت د عیسٰی ﷺ او د انجیل کوي آیا دا حقیقت لري؟

**ځواب**: لا! ولي که دوئ رشیتا محبان د عیسٰی او د انجیل وای لآمنوا بمحمد ﷺ لانه تعالی حکی عن قول عیسی والانجیل ومبشراً نبي یاتي من بعدي اسمه احمد، بلکې ددوئ محبت اصلاً هم د جاه او جلال سره دی لکه مونږ چې دمخه حال د لوی اسقف د نصارٰی وو ابو حارثه بن علقمه بیان کړی چې ځېل ورور کرز ته یې ووایه چې شاهان د روم زموږ ډېر عزت کوي الی اخیر او د نصارٰی د نجران د پنځو مشرو ځخه هم صراحةً حب الجاه والجلال معلوم سو کمامر تفصیله.

**درویش وایي**: چې مناسبت د حقیقت محبت دا بټونه درته وړاندې کوم چې په هامش کي د مکتوبات شریف دفتر اول ص ۱۶ کي نوشته دي

روزی اعرابی نجدی بآواز خوش ودل کش این ابیات میسر آید.

| | |
|---|---|
| کل صبح و کل اشراقی | تبکی عیني بدمع مشتاقي |
| قد لثعت حیة الهوی کبدي | فلا طبیب لها و لا راقي |
| الا الحبیب الذي شغفت به | فعنده رقیتي و تریاقي |

چون آنحضرت ﷺ این ابیات بشنیدند محظوظ گشته وبتکرار آیات مذکوره امر فرموده.

**درویش وایي**: چې دا قصه که څه هم په کتابو کي د احادیثو شریفه وو نه ده راغلې لکن امام ربانی مجدد الف ثاني قدس سره په ځېل مکتوب کي داسې اشاره ورته کړې ده فلا طبیب لها ولاراقي، او هامش والا پوره قصه بیان کړې ده. او ټوله بېتونه یې راوړي دي، نو ځکه درویش بناءً علی حسن الظن بالمجدد قدس سره دا موضوع دلته درج کړه. والعلم عندالله.

**تنبیه**: حضرت المجدد الالف الثاني هغه مقبول شخصیت دی بین العرب والعجم او صاحب د شریعت او طریقت او حقیقت دی او عالم بالعلوم کلها من التفاسیر القرآنیة والآحادیث النبویة والفقه بل جمیع العلوم العربیة بل جمیع



Scanned by CamScanner

المعقولات والمنقولات او صاحب الفصاحة والبلاغة دی في اللسان العربية واللغة الدرية. وكتابه المكتوبات الشريف ايضاً كتاب مقبول في جميع الدول الإسلامية لكن قل من يفهم مقاصد ذالک الکتاب ومارېه، البته غير مقلدين چي په نامه د اصحابو د ظواهر الحديث يادېږي او سلفيان وغيرهم من الفرق المعلومة الحال و مجدد عليه الرحمة او وكتاب ته د مكتوبات په كرو سترگو بلا نور ورته گوري، او خفت انگيز وېناوي ددوی تر خوله وزي وهذا لايضر بكماله وكمال كتابه لمر خو هغه روښان لمر دی نو چي خفاش نه وي نو لمر ته څه تاوان دی.

**حکمت**: خدای ﷻ د دروغو د انکار او دښمنۍ دروازه پر خان نه ده تړلې حتی دښمنان د خدای ﷻ قديماً وحديثاً تر هر چا ډېر دي او هم دا دروازه يې پر مقربينو بندگانو خپل چي انبياء كرام على نبينا وعليهم السلام دي هم نه ده تړلې حتی چي قرآن مبارک ددې شاهد دی. ثم الصحابة ﷺ كلاً او بعضاً تر دښمنی د خلگو لاندي دی، ثم التابعين رحمهم الله ثم وثم الى يومنا هذا ثم اولياء الله تعالى من اولهم الى اخيرهم تر فشار د دښمنانو د خوا قرار لري. والى الله المشتكى من صنيع هؤلاء الاعداء.

**پوښتنه**: د عقائدو په كتابو كي وايي چي تحقيق مذهب په باره كي د ايمان دادی چي ايمان يوازي تصديق قلبي دی، او اقرار په شرط لپاره د اجراء د احكامو د اسلام دی، او مشهوره مذهب دادی چي ايمان اقرار او تصديق دواړه دي، لكن اقرار ركن غير لازم دی ومآل المذهبين واحد في الحقيقة. نو پوښتنه داده چي د يهوديانو د ملايان خو پر نبوت د عليه الصلوة والسلام تصديق و كما حكى الله تعالى عنهم يعرفونه كما يعرفون ابنائهم. او داغه رنگه د نصارى وو د نجران خو هم پر رسالت د عليه السلام تصديق كامل و كما يظهر من قصصهم السابقة في هذا التفسير. آيا دغه د يهوديانو د ملايانو تصديق او د نصارى وو د ملايانو تصديق به ودوی ته فائده ونه كړي په ورځ د آخرت او كه څرنگه؟

**ځواب**: يا نه يې كوي ولي چي ايمان له "امن" څخه ماخوذ دی يعني خدای



Scanned by CamScanner

او رسول دده له تكذيب څخه بېغمه كوي يعني اختياري شي دي، او په ملايانو كي د يهوديانو او د نصارى وو دا شي نه و، البته په دوئ كي معرفت اضطراري و، هغه معرفت د نجات لپاره كافي نه دي ولاجل هذا قال الله تعالى في حق علماء اليهود يعرفونه كما يعرفون ابنائهم والفرق دقيق فتامل فيه.

هَٰٓأَنتُمْ هَٰٓؤُلَآءِ حَٰجَجْتُمْ فِيمَا لَكُم بِهِۦ عِلْمٌ فَلِمَ تُحَآجُّونَ فِيمَا لَيْسَ لَكُم بِهِۦ عِلْمٌ ۚ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٦٦﴾

**پوه سه:** چي كلمه د "ها" حرف تنبيه ده، او "انتم" مبتداء ده او "هؤلاء" يې خبر دى او "حاججتم" جمله مستانفه ده چي تنبيه ده پر كمال غفلت د دوئ، وترجمة الجملة الاولى تاسي دغسي بې عقلان خلگ ياست چي ستاسي د بې عقلى بيان دادى چي تاسي خصومت كوئ په هغه شي كي چي تاسي پر هغه شي علم لرئ من التوارة والانجيل ومن نبوة محمد ﷺ نو تاسي ولي خصومت كوئ په هغه شي كي چي تاسي پر هغه علم نه لرئ من دين ابراهيم، ولي د دين د ابراهيم ذكر نه په تورات كي سته او نه په انجيل كي، او خداى خبر دى په هر شي خصوصاً په دين د ابراهيم او تاسي نه ياست خبر، والمفعول محذوف، او د خداى پاك معلومات په باره كي د ابراهيم او دده دين دادى.

مَا كَانَ إِبْرَٰهِيمُ يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا وَلَٰكِن كَانَ حَنِيفًا مُّسْلِمًا وَمَا كَانَ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴿٦٧﴾

نه و ابراهيم يهودي المذهب او نه نصراني المذهب، لكن ابراهيم حنيفاً و يعني مائل و له مذاهبو باطله وو څخه او د عقائدو زاغه وو څخه لكه تاسي يهود چي په هغو باطلو عقائدو كي مبتلاء ياست چي عزير ابن الله، او يا دا چي لن يدخل الجنة الا من هوداً، او يا نصارى چي مبتلاء دي چي عيسى ابن الله دى، او يا دا چي لن يدخل الجنة الا من كان نصارى، او بعض مفسرين وايي چي د حنيف معنا داده چي مائل په لمانځه كي وكعبې ته وي، او د مسلم معنا داده چي متابعت يې كاوه د هغو شيانو چي خداى به امر كړى و، او

متابعت د خواهشاتو نفسیه وو یې نه کاوه لکه تاسي یهود او نصاری چې لپاره د حب الریاسة او جمع المال والمنال کوي، او د نبي امي چې علیه الصلوة والسلام دی متابعت نه کوي او ایمان نه پر راوړي مع انکم تجدونه مکتوبا في التوارة والانجیل، او په عین حال کي تاسي مشرکان هم یاست، ولي چې عزیر ابن الله بولی او عیسی ابن الله بولی، نو داسي څرنګه دا دعوی کوئ چې موږ پر دین د ابراهیم یو، او نه و ابراهیم له مشرکانو څخه یعني که څخه هم مشرکان د مکې وایي چې موږ پر دین د ابراهیم یو، او بعض مفسران وایي چې وماکان من المشرکین تعریض دی پر یهودو او نصاری باندي یعني تاسي خو مشرکین یاست کما مر آنفاً سبب شرکهم بعزیر وعیسی؏

إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِإِبْرَٰهِيمَ لَلَّذِينَ اتَّبَعُوهُ وَهَٰذَا النَّبِيُّ وَالَّذِينَ آمَنُوا ۗ وَاللَّهُ وَلِيُّ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٦٨﴾

په تحقیق سره اقرب او نژدې د خلګو و ابراهیم ته مشتق من الولي بمعنی القرب، هر آینه هغه کسان دي چې دده متابعت به یې کاوه یعني د دین دده په هغه زمانه یا وروسته تر زمانې دده بالاخلاص والاحسان، او بل دغه نبي دی یعني محمد ﷺ، او هغه کسان دي چې یې پر دغه نبي ایمان راوړی وي، ولي چې مؤمنان په اکثرو شرائع وو کې د ابراهیم سره شریکان دي کالتوحید في اصول الدین او اضحیه، او ختنه، او صلوة الی الکعبة، والحج والعمرة، او خدای ﷻ قریب او دوست دی د مؤمنانو.

**فائده سنیه:** وقصة عجیبة ومعجزة باهرة، بغوي رح وایي چې کلبي رح د ابي صالح رح او هغه د ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چې حضرت جعفر بن ابي طالب سره د نورو ملګرو اصحابو رضي الله عنهم د علیه الصلوة والسلام چې حبشې ته یې هجرت کړی و، او بیا علیه الصلوة والسلام ومدینې ته هجرت وکړی او واقعه د بدر پېښه سوه یعني چې اویا سرکرده د قریشو د مکې پکښې ووژل سول، نو قریشو په دار الندوة یعني چې ددوی د قومي مشورې سرای و سره جمع سول چې موږ باید خپل کسات د مړو د هغو مسلمانانو څخه واخلو چې په حبشه کي



Scanned by CamScanner

ژوند کوي، یعنې جعفر او ملګري اصحاب د نبي، نو اخیر دوئ فیصله پر دې وکړه چي یو قومي پنډ به سره جمع کړو او په هغو روپو به هدایا را نیسو او نجاشي ته به یې ور واستوو او دا پیغام به ورواستوو چي ستا په مملکت کي چي کوم مسلمانان دي موږ ته یې په لاس راکړه. او ددې کار لپاره یې دوه سنځیده کسان مقرر کړه چي د یوه نوم عمرو بن العاص او د بل نوم عمارة بن ابي معیط و. او تحفې او هدایا یې د نجاشي لپاره په لاس ورکړې. نو دا دوه کسان په کښتۍ کي سپاره سوه مخ د حبشې پر خوا او حبشې ته ورسېدل او د نجاشي په دربار کي یې اجازه واخستل ځرنګه چي دوئ نجاشي ولیدی نو سجده یې ورته وکړه، او دوئ ورته وویل چي زموږ قوم یعنې قریش ستا خیر خواه دي، او ستا د سلامتیا محبان دي، او دوئ یعنې قوم زموږ ددې لپاره تاته راواستولو چي تا وبېږه وله دغو کسانو ځخه چي چي له مکې ځخه ستا وملک ته راغلي دي، وي دغه کسان د دوئ په خوله قوم یعنې خپلوان د یوه کذاب سړي دي چي په موږ کي پیدا سو او دعوه د نبوت یې وکړه. او دده متابعت نه دی کړی مګر زموږ د قوم بې عقلانو، نو موږ پر دوئ مځکه د مکې تنګه کړه او دوئ مو و یوې شېلې ته وشړل چي د مکې د ښار د باندي واقع ده نه څوک دوئ ته ورتلای سي او نه څوک له دوئ ځخه د هغې شېلې ځخه را وتلای سي او دوئ په شعب کي د لوږي او د تندي ډېر پکښېي مړه سوه.

**درویش وایي:** چي دا خبره یې درواغ په ګډ کړه. خیر چي سختي پر ډېره سوه نو یې خپل د اکا زوی سره د څو کسو ستا مملکت ته راواستول چي پر تا باندي ستا د نصرانیت دین فاسد کړي او یا دوئ شاهي ستا د لاسه وباسي او رعایت درته باغي کړي. نو له دې کسانو ځخه ته وبېږېږه او موږ ته یې په لاس راکړه، موږ دي خندي خلاصوو او موږ یې دستې وژنو او تا ددې فتنې ځخه خلاصوو، دوئ ورته وویل چي علامه ددوئ داده چي ستا سره محبت نه لري دوئ چي ستا دربار ته راسي تاته سجده نه کوي او تاته داسي سلام نه اچوي لکه نور کسان بغضاً لدینک وسنتک. نو نجاشي په جعفر او ملګرو پسي

عسکر واستول، نو جعفر چي دروازې ته د دربار د نجاشي راغلی نو نعره یې وکړه او وه یې ویل یستاذن علیک حزب الله، نو نجاشي وعسکرو ته وویل چي دغه صائح ته ووایه چي ته بیا هغه نعره وکړه جعفر رضي الله عنه بیا خپله نعره تکرار کړه، نو نجاشي وویل فلیدخلوا باذن الله وذمته نو عمرو بن العاص وخپل ملګري ته وکتل او وه یې ویل الا تسمع کیف یرطنون یعني خبري کوي د حزب الله په نامه او نجاشي ودوئ ته څه نه وویل نو دوئ دوه ډېر غمجن سوه یعني چي نجاشي زموږ وخبري ته هیڅ اهمیت ورنه کړی، نو عمرو بن العاص بیا واری پیدا کړی او نجاشي ته یې وویل چي ته نه وینې دا داسي متکبر خلګ دي تاته یې سجده ونه کړه، نو نجاشي ودوئ ته وویل مامنعکم ان تسجدوني، او تاسي وماته هغه تحیه ونه کړه چي د افاقو څخه چي ماته خلګ راسي ماته هغه تحیه کوي وغرضه السجدة، جعفر رضي الله عنه ورته وویل چي موږ هغه چاته سجده کوو چي ته یې پیدا کړی یې او تاته یې سلطنت درکړی دی یعني الله ﷻ، جعفر ورته زیاته کړه چي موږ دا تحیه یعني سجده هغه وخت کوله چي موږ د بتانو عبادت کاوه. نو بیا په موږ خدای ﷻ نبي صادق راواستوی وامرنا بالتحیة التي رضیها الله چي السلام علیکم چي هغه تحیه د اهل الجنة ده، نو نجاشي پوه سو چي دا خبره خو یې حق وکړه وانه في التوراة والانجیل، بیا نجاشي ورته وویل چي کوم سړی و په تاسي کي چي دا نعره یې وکړه یستاذن علیک حزب الله، جعفر رضي الله عنه ورته وویل زه وم، نجاشي ورته وویل چي خبري نوري وکړه جعفر رضي الله عنه ورته وویل چي یو بادشاه یې له بادشاهانو څخه د مځکي او ستا په دربار کي ډېري خبري مناسبي نه دي او نه ظلم، جعفر رضي الله عنه ورته وویل زموږ خبره به پر داغه خای بس کړو، ته ددغو دوو کسانو یعني په طور د هشت تاته راغلي له مکي څخه یعني عمرو بن العاص او عمارة بن ابي محیط نو یو له دوئ دي خبري وکړي او هغه بل دي پټه خوله کښېني، نو زموږ او دده خبري به ته واورې، فقال عمرو بن العاص وجعفر ته چي ته خبره وکړه نو جعفر رضي الله عنه ونجاشي ته وویل چي ددې دوو کسو څخه پوښتنه وکړه چي موږ مریان یو او که حر، نو عمرو ورته وویل احرار

یاست او کرام خلگ یاست، قال النجاشي نجودتم من العبودیة، بیا جعفر ﷺ نجاشي ته وویل چي ته له دوئ څخه پوښتنه وکړه چي موږ ددوئ ویني ناحقه توی کړي دي چي دوئ زموږ قصاص واخلي، عمرو ورته وویل لا ولاقطرة، جعفر ﷺ ونجاشي ته وویل چي له دوئ څخه پوښتنه وکړه چي موږ یعني د حبشي مهاجرو د خلګو مالونه ناحقه اخستي دي فعلینا قضائه، نجاشي ورته وویل که یې قنطار در څخه اخستي وي یعني ډیر مال زه یې درکوم، عمرو بن العاص وویل لا ولا قراطاً یعني سدس الدرهم یې زموږ نه دی اخستی، نو نجاشي ورته وویل چي تاسي له دوئ څخه څه شی غواړئ عمرو بن العاص ورته وویل چي موږ او دوئ پر یوه دین و چي زموږ د اباء او اجداد دین و یعني بت پرستي، نو دوئ هغه دین پریښوی او متابعت د بل دین یې شروع کړی، یعني التوحید الذي بعث الله محمداً ﷺ به، نو موږ مکي والو را استه ولي یو چي ته موږ ته دوئ په لاس راکړه، نو نجاشي جعفر ﷺ ته وویل چي هغه دین چي تاسي پر هغه واست او تاسي یې متابعت کاوه هغه څرنګه دین و او رشتیا به راته وایې اوسنی دین څرنګه دین دی، نو جعفر ﷺ ورته وویل چي زموږ پخوانی دین د شیطان دین و و موږ خدای ﷻ ته شریکان په عبادت کي نیول او د ډبرو عبادت به مو کاوه او هر چه اوسنی دین دی هغه دین د اسلام دی موږ ته له جانبه څخه د خدای ﷻ پر رسول باندي یعني محمداً ﷺ او موږ ته کتاب راغلی دی لکه کتاب د ابن مریم یعني انجیل موافقاً له، یعني في اصول الدین، ثم قال له النجاشي تکلمت بامر عظیم، نو نجاشي ناقوس چي نصاری یې په وخت کي د ضرورت وهي وه یې واهه نو دده په دربار کي چي وه هر قسیس او راهب یعني هر عالم او صوفي د دین عیسوي ورته راجمع سول، نو چي ټول دده حضور ته راغله نو نجاشي ودوئ ته داسي وویل چي قسم درکوم تاسي په هغه خدای ﷻ چي انجیل یې پر عیسی ﷺ نازل کړی دی چي تاسي ته په منځ کي د عیسی ﷺ او د ورځي د قیامت بل نبي مرسل درمعلوم دی، قالوا یعني بالاتفاق اللهم نعم، او دوئ وویل چي موږ ته په انجیل کي عیسی زیری د

بل نبي راکړی دی یعنې چې نوم یې احمد دی، او عیسی علیه السلام دا هم ویلي دي چې من آمن فقد امن بي ومن کفر به فقد کفربي. نو نجاشي وجعفر رضی الله عنه ته وویل چې داستاسي نبي تاسي په څه شي امر کوي، او له څه شي مو منع کوي. جعفر ورته وویل چې موږ ته کتاب د خدای جل جلاله وایي او موږ امر کوي په معروف سره او نهي کوي مو له منکراتو څخه ویامرنا بحسن الجوار وصلة الرحم وبر الیتامی ویامرنا بان نعبدالله وحده لاشریک له نو نجاشي ورته وویل چې ته ماته قرائت وکړه د هغو آیتو چې ستاسي نبي یې وتاسي ته قرائت کوي، نو جعفر رضی الله عنه سورة العنکبوت ورته تلاوت کړی او بیا یې سورة الروم ورته ووایه، نو د نجاشي له سترګو څخه اوښکې وبهېدلې، او ټولو حاضرینو د نجاشي په شمول جعفر رضی الله عنه ته وویل زدنا یا جعفر من هذا الحدیث الطیب فقرء علیهم سورة الکهف، فاراد عمر بن العاص چې نجاشي جعفر ته په غصه کړي نو ده وویل چې دوئ یعنې مسلمانان او ددوئ نبي وعیسی او مورته دده بشکنځل کوي. نو نجاشي جعفر رضی الله عنه ته وویل چې تاسي د عیسی او دده د مور په باره کې څه عقیده لرئ، نو جعفر رضی الله عنه دوئ ته سورة مریم ووایه نو چې ذکر د مریم او عیسی راغلی، نو نجاشي لوی آه وکړی او سترګي یې له اوښکو څخه دونده کوچنی سوې لکه څوک چې خاشه له سترګو څخه دده کاږي او نجاشي وویل ما زاد المیسح علی مایقولون، او بیا نجاشي مخ را واړوی او ورته وه یې ویل فانتم سیوم بارضي د سیوم ترجمه انتم آمنون زما په مځکه کې، بیا نجاشي ورته وویل ابشروا ولاتخافوا فلادهورة الیوم علی حزب ابراهیم یعنې لاضیاع علیکم بلکې زه مو حفاظت کوم، نو بیا عمرو بن العاص وویل یا نجاشي من حزب ابراهیم؟ نجاشي ورته وویل هولاء القوم وصاحبهم الذي جاوا من عنده یعني النبي صلی الله علیه وسلم، وروسته چې عمرو بن العاص چې هغه تحفه له خانه سره راوړې وه نجاشي ته یې پېش کړه نجاشي ور رد کړه، او ورته وه یې ویل چې دا ستاسي هدیه رشوت دی وماته زه یې نه کوم، ولې چې خدای جل جلاله وماته سلطنت راکړی دی او زما څخه یې رشوت نه دی اخستی، فانصرف عمرو بن العاص او دده



Scanned by CamScanner

ملګري خائبين مکې ته ولاړه، او جعفر ﷺ وايي فانصرفنا فكنا في خير دار واكرم جوار يعني في ارض الحبشة جعفر ﷺ وايي وانزل الله تعالى في ذالک اليوم على رسوله ﷺ في خصومتي في ابراهيم، او عليه الصلوة والسلام په مدينه کې و، قول الله ﷻ ان اولى الناس بابراهيم الآية"

**درويش وايي**: چې قصه د نجاشي اوس هم ډېره پاته ده ان شاء الله تعالى په يو مناسب ځای کې ددې تفسير به راسي. قال الله تعالى

## وَدَّتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ

مفسرين وايي چې دا آيت په شان کې د معاذ بن جبل او د حذيفه بن اليمان او عماره بن ياسر ﷺ نازل سوی دی چې دوئ ته بلنه ورکړه يهوديانو وخپل دين ته ومعنى الآية تمنى او اميد لري اهل کتاب يعني اليهود.

## لَوْ يُضِلُّوْنَكُمْ ؕ

چې تاسې ګمراهان کړي له خپل دين څخه او تاسې رد کړي وکفر ته.

**پوه سه**: چې کلمه د "لو" يا په معنا د "ان" مصدري ده چې په معنا کې عمل کوي او په لفظ کې يې نه کوي، او په محل کې د نصب ده په ودت سره، او يا لولپاره د تمنى د بيان دی د وداد د دوئ.

## وَمَا يُضِلُّوْنَ اِلَّاۤ اَنْفُسَهُمْ

او دوئ نه ګمراهان کوي مګر خپل خانونه، يعني وبال د اضلال د دوئ راجع وي ودوئ ته، نو دوئ لره دوه عذابه دي يو د ضلال خپل او بل کوشش کول له اضلال کې ستاسې او مسلمانان محفوظه دي له شر څخه ددوئ يحفظ الله تعالى جل سلطانه.

## وَمَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۶۹﴾

او دوئ په دې نه پوهېږي چې په دې اضلال کې زموږ پخپل تاوان دی.

**پوه سه**: چې خدای ﷻ دوئ داسې کړه چې حواس يې هم کار نه کوي، ولې چې دا الحاق د ضرر ودوئ ته لکه محسوس بالحس الظاهر دی ولذالک قال

وما يشعرون يعني داسي يې نه وويل ولا يعلمون.

يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لِمَ تَكۡفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَأَنتُمۡ تَشۡهَدُونَ ۝٧٠

ای اهل کتابو، اي اليهود والنصارى ولې تاسي کفر کوئ په آيات د خدای يعنې چې په تورات او انجيل کي موجود دي چې هغه آيتونه دال دي پر صدق د نبي ﷺ په دعوی کي د نبوت. خو فاعل الرياسة وحرصاً على الاموال. او سره ددې چې تاسي شاهدي اداء کوئ يعني اقرار کوئ پخپل منځ کي په پټه چې دغه نبي برحق دی او نعت دده په تورات او انجيل کي سته. او دا هم احتمال سته چې شهادت دې په معنی د علم وي يعنې انتم تعلمون صدقه بالمعجزات الباهرات.

يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لِمَ تَلۡبِسُونَ ٱلۡحَقَّ بِٱلۡبَٰطِلِ وَتَكۡتُمُونَ ٱلۡحَقَّ وَأَنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ۝٧١

ای اهل کتابو ولعل المراد منه اليهود خاصة لانهم فعلوا ذالک تاسي ولې گډوئ الحق يعنې هغه آيتونه د تورات چې په شان کي د نبي ﷺ نازل سوی دی په باطل سره چې تاسي يې په خپلو لاسو ليکئ تحريفاً لنعوته ﷺ او تاسي پټوئ حق چې نازل في التوراة دی او تاسي په دغه پوهېږئ يعنې قصداً يې کوئ وانما قال ذالک لان الجاهل قد يعذر ولذلک ورد في الحديث الصحيح النبوي للجاهل ويل وللعالم سبعين ويل.

وَقَالَت طَّآئِفَةٞ مِّنۡ أَهۡلِ ٱلۡكِتَٰبِ ءَامِنُواْ بِٱلَّذِيٓ أُنزِلَ عَلَى ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَجۡهَ ٱلنَّهَارِ وَٱكۡفُرُوٓاْ ءَاخِرَهُۥ لَعَلَّهُمۡ يَرۡجِعُونَ ۝٧٢

او وويل يوې ډلې د اهل کتابو يعنې اليهود په پخپل منځ کي چې ايمان راوړئ يعني اظهر والايمان باللسان لاجل الخداع پر هغه قرآن باندي چې نازل سوی دی پر هغو کسانو چې ايمان يې راوړی يعنون المسلمين په اول کي د ورځي او کافران سئ په هغه قرآن سره په اخير کي د ورځي نو شايد مومنان به هم رجوع وکړي له خپل دين څخه او يا به شک ور ولوېږي پخپل دين کي په دې

ګمان چې دا څو اهل کتاب وه او ایمان یې هم راوړی په اول د ورځې او په اخیر د ورځې بیرته کافران سوه نو لکه دغه اهل کتابو زمونږ په دین کې څه نقصان ولیدی، ځکه بیرته کافران سوه، حسن بصري رحمه الله په روایت د بغوي رحمه الله وایي چې دولس کسانو د خیبر د یهودیانو ملایانو پر دې خبره اتفاق کړی و او هغه سې یې هم وکړه. او مجاهد، مقاتل او کلبي رح وایي چې څه وخت چې قبله د بیت المقدس څخه وکعبې شریفې ته واوښتله پر یهودیانو ډېره سخته پرېوتل، نو یې داسې اتفاق وکړی یعنې کعب بن الاشرف او ملګرو دده چې راځئ په اول کې د ورځې به مونږ ایمان راوړو پر قبلې د کعبې او لمونځونه به هم وکعبې ته وکړو او په اخیر د ورځې به بیرته خپل بیت المقدس ته رجوع وکړو.

## وَلَا تُؤْمِنُوٓا إِلَّا لِمَن تَبِعَ دِينَكُمْ

دا جمله عطف ده پر آمنوا بالذي آه باندې.

**پوه سه:** چې بعض مفسرین ددې آیت معنا داسې کوي چې تاسې ایمان مه راوړئ په موافقت د زړه مګر وهغه چاته چې ستاسې د دین متابعت کوي، او بعض مفسرین وایي چې دا جمله بیان ده د کفروا اخره، او په هر حال الا لمن استثناء مفرغ ده ای لاتصدقوا لاحد الا لمن آه.

## قُلْ إِنَّ الْهُدَىٰ هُدَى اللَّهِ

او ته ووایه اې محمد ﷺ وکفارو ته چې په تحقیق هدایت د خدای ﷻ دی یهدي من یشاء الی الایمان ویثبته علیه، نو اې کافرانو حیله او مکر تاسې ته فائده نه لري او مسلمانانو ته ضرر نه رسوي، قال عز من قائل یریدون لیطفئوا نور الله بافواههم والله متم نوره الآیة.

## أَن يُؤْتَىٰٓ أَحَدٌ مِّثْلَ مَآ أُوتِيتُمْ

قال صاحب روح البیان علة بتقدیر اللام لفعل محذوف ای قلتم ذالک القول دبرتم ذالک الکید لاجل ان یعطی احد یعنې محمد ﷺ والمؤمنون مثل ما اعطیتم من الکتاب ای التوار والعلم لالشئ اخر اي الدین یعنې مابکم من



Scanned by CamScanner

الحسد صار داعياً لكم الى ماقلتم وكدتم ومكرتم ماًمر من قولكم ومكركم، او مظهري په مختصره توګه دغه مطلب بيان کړی دی حيث قال متعلق بمحذوف يعني مكرتم ذالک المكر حسداً.

أَوْ يُحَاجُّوكُمْ عِندَ رَبِّكُمْ

**يوه سه**: چي دا فعل عطف دی يوتي باندي منصوب بان او ضمير مرفوع په يحاجوكم کي راجع دی واحد ته.

**سوال**: احد خو مفرد دی او ضمير د يحاجوکم خو جمع او ضمير د "يحاجوكم" خو جمع دی نو څرنګه به وهغه ته راجع سي؟

**ځواب**: هو لفظ د احد خو مفرد دی لکن په معنا کي جمع دی، لوقوعه في سياق النفي والمعنى او مكرتم لان يغلبكم احد. او مراد د عندربكم څخه دادی چي په ورځ د قيامت په حضور د رب العزت او پر تاسي به غالبه سي الن من اتاه الوحي والكتاب وهم المؤمنون لابد ان يحاج مخالفيه وهم انتم اليهود ويغلبوا عليكم په دې معنا چي تاسي خو اهل العلم او كتاب واست نو ولي مو ايمان پر محمد ﷺ نه راوړي وهو مكتوب عندكم في التوراة. فلامحالة فيغلب المؤمنين عليكم بالحجة في يوم القيامة.

قُلْ إِنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ ۗ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ

ته ورته ووايه ودوی ته چي فضل يعني اعطاء العلم والكتاب والهدى والنبوة په قدرت کي د خدای دی هغه چاته يې ورکوي چي اراده يې سي او خدای فراخه دی يعني فضله. او خبر دی په احوالو د عبادو او په استعداتو د خلګو. نو څکه نبوت وخپل لوی مستعد او اهل بنده محمد ﷺ ته يې ورکړی او مؤمنانو يې په هدی او متابعت د هغه په نصيب کړه وفضل الله لايمنع عن احد بمكر الحاسد وكيده في رد ذالک الفضل منه.

**درويش وايي**: چي په دې آيتو کي اشاره ودې ته ده چي حسد که څه هم په جبلت کي د انسان موجود دی لکن خاص په هغه عالم پوري دی چي علم ددې

لپاره زده کوي چي فخر وکړي په علم سره پر علماؤ باندي او علم يې وسيله ګرځولې وي وجمع ته د مال وحصول ته د جاه او جلال او قبول عند ارباب الدنيا نو داسي عالم حسد کوي پر هغه عالم چي خدای ﷻ و هغه ته علم ورکړی وي او هغه نشر کوي په مسلمانانو کي تقريراً وتحريراً محضاً لرضائه تعالى ولافائدة اخوته المؤمنين. او حسد د احبارو د يهودو له عليه السلام سره ددغې قبيلې څخه و حافياً اسفى على حال عالم علماء امة محمد ﷺ ليشارک في الحسد على غيره، من العلماء احبار اليهود اللهم احفظنا من امثال هذه المشاركة لاحبار اليهود لتحصيل النقود.

يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهِ مَنْ يَشَاءُ ۗ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴿٧٤﴾

او خاصوي په رحمت سره خدای ﷻ، چي مراد دلته څنډي نبوت دی هغه څوک چي اراده يې ورته وسي، او خدای د فضل څښتن دی. بيت

نقصان زقابل است وگرنه على الدوام
فيض سعادتش بهمه کس برابر هست

وَمِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ

او بعض له اهل کتابو څخه يعني عبدالله بن سلام ﷺ وامثاله.

مَنْ إِنْ تَأْمَنْهُ بِقِنْطَارٍ يُؤَدِّهِ إِلَيْكَ

داسي کسان دي که ته دوی امين وګرځوې پر يو مال کثير باندي يا په طور د امانت کما هو ظاهر لفظ القرآن والشان نزول ايضاً عليه ويقاس عليه القرض وسائر الديون والعاريات، تاته هغه امانت اداء کوي په سبب د خپلې ديندارۍ او ايمان او تقوی، چنانچه په حديث شريف کي د ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي يو سړي وعبدالله بن سلام ﷺ ته يو زر او دوه سوه اوقيې سره زر ايښي وه په طور د امانت چي يوه وقيه څلوېښت درهمه اندازه ده، نو عند المطالبة عبدالله بن سلام ﷺ هغه ټولې اوقيې ورکړې



Scanned by CamScanner

## وَمِنْهُم مَّنْ إِن تَأْمَنْهُ بِدِينَارٍ لَّا يُؤَدِّهِ إِلَيْكَ

او بعض له اهل کتابو څخه لکه کعب بن الاشرف او نحاس بن عاذور او غیرهما من کفار الیهود سته، که ته دوی امین وګرځوې پر یوه دینار چي یو لږ شی دی، نو هغه یې وتاته نه اداء کوي عند المطالبة. بغوي رحمه الله وايي چي یو سړي له قریشو څخه نحاس بن عاذور ته یو دینار امانت ایښی و نو نحاس بن عاذور عند المطالبة ورته منکر سو.

## إِلَّا مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَائِمًا

مګر نه که ته همېشه وده ته ولاړ وې. یعني ډېره سختي ورسره کوې په مطالبه کي د خپل دینار او ببروې یې هم چي حکامو ته دي بیایم او جنګ درسره کوي

**بوه سه**: چي ابن عباس رضي الله عنه د قائماً معنا په ملحاً سره کړې ده، یعني په ډېري الحاح او سختی سره دي مطالبه د خپل دینار خندي کوله او د ببرې خبره دي هم ورته کوله چي حکماؤ ته دي بیایم که یې را نه کړې.

## ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَيْسَ عَلَيْنَا فِي الْأُمِّيِّينَ سَبِيلٌ

دا عدم اداء او نه ورکړه د یهودیانو امانت د خلګو په دې سبب دی چي دوی یعني الیهود به ویل چي نسته پر موږ باندې په خوړلو د اموالو د امیین یعني چي اهل کتاب نه وي لار د مواخذة في الآخرة، او دوی به ویل چي مالونه د عربو موږ ته حلال دي لانهم لیسوا علی دیننا ولاحرمة علینا في کتابنا، او دوی روا باله ظلم پر هغه چا چي د دوی په دین کي داخل نه وي.

## وَيَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿٧٥﴾

او دوی پر خدای ﷻ دروغ وایي چي خدای موږ ته خوراک د اموالو د عربو روا کړی او دا ظلم نه دی، او دوی علم لري چي خدای ﷻ په تورات کي د هیڅ چا د اموالو خوړل ظلماً نه دي راوړي، نو نسبت وخدای ﷻ ته کول دروغ دي



Scanned by CamScanner

بَلٰى مَنْ اَوْفٰى بِعَهْدِهٖ وَاتَّقٰى فَاِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِيْنَ ﴿٧٦﴾

**پوه سه:** چي "بلى" جواب دى د نفي يعني ليس علينا. نو چونكه نفي د نفي اثبات دى، نو معنا داده چي هو پر تاسي لار د مواخذة په خوړلو كي د اموالو د عربو سته كه څه هم ستاسي په دين كي نوي داخل لكه مسلمانان د عربو چي اتباع النبي ﷺ دي.

**پوه سه:** چي قانون الهي اسلامي دادى چي په ايمان او يا په عقد ذمه مال د سړي محفوظ دى او خوراک يې حرام دى.

**درويش وايي:** چي په حديث نبوي كي چي روايت يې ابو موسى الاشعري كړى دى او بخاري او مسلم دواړو رواړى دى راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام وويل چي زه امر سوى يم يعني د خداى ﷻ له خوا په دې سره چي زه به جنگ كوم د خلگو سره يعني د كافرانو سره تر هغه وخته پوري چي دوىٰ شهدي اداء كوي چي لا اله الا الله او په دې سره چي محمد رسول الله، ويقيموا الصلوة ويوتوا الزكوة، نو چي دوىٰ داسي وكړي نو زما څخه وينې ددوىٰ او مالونه ددوىٰ محفوظ دي الا بحق الاسلام، لكه وينه د قاتل توبول قصاصاً. او يا مال اخستل په زكوة كي وغيرها. وحسابهم على الله. او حساب يې پر خداى ﷻ دى يعني چي وفا وكړي پخپله وعده سره.

**پوه سه:** چي ضمير مجرور راجع دى ومن ته نو يې معنا داده چي هغه دوىٰ د رب المال سره كړي وه په اداء كي د امانت. او يا راجع دى وخداى ﷻ ته نو معنا د آيت داده چي وفاء وكړي په وعده چي خداى ﷻ له دوىٰ څخه اخستې وه په تورات كي من الايمان بجميع الانبياء عليهم السلام خصوصاً بمحمد ﷺ والقرآن، واداء الامانات الى اربابها . او دوىٰ ځان وساتي له كفر او خيانت څخه نو په تحقيق سره د خداى ﷻ خوښ دي تقوى داره خلگ.

**فائده:** پوه سه چي المتقين وضع د اسم ظاهر ده په ځاى كي د ضمير يعني "يحبهم" ولي چي ان الله يحب المتقين جواب دى د من شرطي يا خبر دى د من



Scanned by CamScanner

موصوله، نو په جواب کې یا په خبر کې خو ضمیر ومن شرطي یا موصوله ته غواړي، نو اعرابي حق به داسې وایي فان الله یحبهم او ضمیر د هم به راجع و من ته وای باعتبار معناه لان القظه مفرد، نو حکمت الهي څه دی چې اسم ظاهر يې په ځای کې د مضمر راوړی؟

**ځواب**: حکمت دادی چې تقوی من الله مرکز دی د ټولو امور دینه وو، او تقوی عامه ده تر وفاء بالعهد او اداء ته د ټولو واجباتو او ترک ته د ټولو واجباتو او ترک ته د ټولو منهیاتو ولذالک العموم ناب التقوی مناب الضمیر الراجع الی من، هذا ما اتفقت علیه کلمة المفسرین ح

**فائده**: جمله د من اوفی آه جمله مستانفه ده او تاکید د هغې جملې چې بلی په ځای کې واقع و کمامر فی اول تفسیر یذه الآیة.

**پوه سه**: چې په دې آیت اشاره ده وتعظیم ته د حال د وفاء بالعهد، ولې چې ټولنه طاعات قصر پر دوو شیانو دي التعظیم لامر الله والشفقة علی خلق الله والوفاء بالعهد مشتمل علیها معاً ولي وفاء بالعهد مع الناس شفقت دی علی خلق الله، ولما امر الله به کان الوفاء المذکور تعظیماً لامر الله ﷻ وفي الحدیث الصحیح الذي رواه عبدالله بن عمر ﷺ ان النبي ﷺ قال اربع من کن فیه (څلور خویه که په چا کې و) کان منافقاً خالصاً (او که په چا کې یو خوی و له دغو څلورو خیو څخه نو په سرې کې یو خوی د نفاق سته تر هغه پورې چې هغه خوی پرېږدي) اذا اوتمن خان (چې څوک به امین وبولې خیانت کړي) واذا حدث کذب (او چې خبرې کوي درواغ وایي) واذا عاهد غدر (او چې له چا سره قرار وکړي غدر او چم کوي یعنې وفابالعهد نه کوي) واذا خاصم فجر (او د چا سره چې یې خصومت او جنګ سي پوچ بنکنځل کوي) الحدیث الی ههنا متفق علیه للبخاري ومسلم.

إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا

بخاري او مسلم د ابي واهل عن عبدالله ﷺ څخه داسې روایت کړی دی چې



Scanned by CamScanner

علیه الصلوة السلام وویل من حلف علی یمین صبر (که چا قسم واخستی پر یو محلوف علیه چي جانب مقابل وهغه ته صبر کړی و) یقطع بها مال امرء مسلم (چي ده په هغه یمین سره قطع کوي یعنې وګټي مال د یو سړي چي مسلمان وي چونکه یمین موئنث سماعي دی نو ځکه ضمیر د "بها" ورته راجع سو. لقي الله وهو علیه غضبان (هغه به ملاقي سي د خدای ﷻ سره یعنې په ورځ د قیامت او خدای ﷻ به ورته په غضب سي) نو خدای ﷻ لپاره د تصدیق د قول د رسول الله ﷺ دا آیت نازل کړی، یعنې ان الذین الآیة، راوي وایي چي عبدالله بن مسعود ﷺ کنیت و، خلګو ورته ویل چي داسي او داسي، یعنې د عبدالله د حدیث مضمون یې ورته بیان کړی، کمامر. نو اشعث ﷺ ویلي دي في نزلت دا آیت زما په باره کي نازل سوی دی. کانت لي بیر في ارض ابن عم لي (چي یو خای جوړ کړی و په مځکه کي د زوی د اکا زما یعنې د اکا زوی مي منکر سو چي دا خای ستا نه دی فآتیت رسول الله ﷺ (نو زه ورغلم وعلیه الصلوة والسلام ته یعنې موضوع د خان او او انکار د ابن العم مي ورته بیان کړی) نو علیه الصلوة السلام وویل بینتک او یمینه (یعنې یا به ته شاهدان راولې پر دې دعوی ستا چي خاه زما دی او که شاهدان نه وي نو ده ته به قسم ورکوې یعنې لکه چي قانون د شرعي شریفي دی لکه په بل حدیث مشهور کي چي راغلي دي البینة للمدعي والیمین علی من انکر، نو اشعث وایي چي ما رسول الله ﷺ ته وویل اذا یحلف علیها، مطلب یې دا وو چي زه خو شاهدان نه لرم نو چي قسم ورده ته سي دی خو قسم اخلي یعنې په قسم ناحقه سره پوراه نه کوي، نو رسول الله ﷺ وویل من حلف علی یمین صبراً وهو فیها فاجر، یعنې کاذب یقتطع بها مال امرء مسلم لقی الله تعالی یوم القیامة وهو علیه غضبان، هذ روایة البغوي بسنده عن البخاري، او صاحب د روح البیان وایي ان الذین یشترون ای یستبدلون، یعنې شراء پر خپل معنا یې حقیقي نه ده بلکي په معنا د استبدال یعنې الاخذ ده بعهد الله ای بدل ما عاهدوا الله علیه من الایمان بالرسول ﷺ والوفاء بالامانات وایمانهم او په قسمو خپلو من قولهم لنؤمنن به



Scanned by CamScanner

ای بالرسول ولتنصرنه او مورِ به کومک هم ورسره کوو، ثمنا قلیلاً چي اموال د دنیا دي ولي چي حطام الدنیا چي د یهودیانو ملا یانو له خلګو څخه اخستله که څه هم ډېر شیان وه لکن هغه قلیل دي نسبت وهغه ته چي ددوئ له لاسه ووتل من نعیم الجنة، اولئک، دغه کسان چي دا کارونه کوي لاخلاق لهم هیڅ برخه نشته دوئ لره په اخرت کي ولا یکلمهم الله او خدای ﷻ خبري نه ورسره کوي وهو کنایة عن شدة غضبه علیهم.

## أُولَٰئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ

دوئ لره هیڅ برخه نشته په ورځ کي د آخرت، یعني په نعمتو کي د جنت، له ابي امامة ﷺ څخه روایت دی چي علیه الصلوة والسلام وویل که چا قطع کړی مال او حق د مسلمان په ناحقه قسم سره، نو خدای به واجب کړي دلره اور او حرام به کړي پر ده جنت، یو سړي وعلیه السلام ته وویل که څه هم لږ شی وي یا رسول الله ﷺ، نو علیه السلام ورته وویل وان کان قضیباً من اراک، که څه هم لرګی وي د اراک د درختي یعني المسواک.

## وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ وَلَا يَنظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

او خدای ﷻ خبري نه ورسره کوي او نه ودوئ ته ګوري، ځوک یې معنا دا بولي چي داسي خبري نه ورسره کوي چي دوئ دي په خوشحاله سي او په نظر د رحمت نه ورته ګوري لکن صحیح داده چي دوه لفظه کنایه دي له غضب څخه او او له اعراض څخه کمامر من تفسیر روح البیان.

## وَلَا يُزَكِّيهِمْ

**درویش وایي:** چي ظاهره معنا یې داده چي دغه ګناه یې نه وربخښي، یعني چي د درواغو په قسم سره د مسلمان حق وخوري او وه یې ګټي، ولي چي دا خو له حقوق څخه د بندګانو دي په دې کي خوامخوا قصاص سته، عن عائشة ﷺ روایت دی دې وویل چي رسول الله ﷺ وویله چي دواوین یعني

دفترونه د عملو درې قسمه دي، يو دېوان هغه دی چې خدای ﷻ هيڅ پاک نه په کوي يعنې که يې چاته وربخښي، او بل دېوان داسي دی چې خدای پاک هيڅ شی د هغه نه پرېږدي يعنې عفو نه ورته کوي، او بل دېوان داسې دی چې خدای پاک يې حتماً بخښنه نه کوي، نو هغه دېوان چې خدای ﷻ يې گرسره نه بخښي هغهُ شرک يعنې مطلق کفر دی يعنې چې سړی پر هغه کفر مړ سي، او هغه دېوان چې خدای ﷻ پاک نه په کوي هغه ظلم د سړي دی پر خپل ځان فيما بينه وبين ربه من صوم ترکه او صلوة ترکه، او هغه دېوان چې خدای پاک هيڅ شی نه ځندي پرېږدي فظلم العباد بعضهم بعضاً القصاص لامحالة، نو د هغه بـه کسات خېژي خوامخوا، رواه الحاکم واحمد.

**پوه سه:** چې کـه دا آيت پـه شـان کـې د يهـودو وي کمامر من تفسير روح البيان نو سبب د عدم مغفرت يې کفر دی.

وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيمٌ ﴿٧٧﴾

او دوی لره سخت عذاب دی په سبب د مافعلوا.

**پوه سه:** چې په شان نزول کې ددې آيت نور روايتونه هم سته، په روايت کې د ابن ماجه او ابو داؤد داسي راغلي دي چې اشعث ابن قيس وويل چې زما او د يو سړي له يهوديانو ځخه مځکه سره گډه وه يعنې شريک مو و، نو هغه ماته منکر سو، يعنې دايې ويل چې مځکه يوازې زما ده تـه حق نه پکښي لرې، نو هغه يهودي ما رسول الله ﷺ تـه راوستی، نو عليـه الصلوة والسلام ماتـه وويل چې شاهدان لرې قلت لا، نو عليه السلام ويهودي ته وويل چې تـه قسم واخله، نو ما ورته وويل چې يهودي خو قسم اخلي يعنې کافران په قسم باک نه کوي، او زما مځکه را څخه گټي، فـانزل الله هذه الآيـة او بخاري د عبدالله بن اوفي څخه روايت کوي چې يو سړي په بازار يو سلعه قيمت کړه او ده وويله چې قسم په خدای دی چې دا سلعه زما څخه په اووه روپۍ خلگو ته غوښتـل مانـه ورکولـه او درواغ يې ويله ددې لپاره چې يو بل مسلمان يې په رانيولو اخته کړي فنزلت



Scanned by CamScanner

هذه الآية، او ابن جرير د عکرمه‌ ﷺ څخه روايت کړی دی چي دا آيت په حي بن اخطب او په کعب بن الاشرف وغيرهما کي نازل دی چي دوئ په ما انزل الله من التوارة في شان النبي ﷺ پټ کړی او بدل به يې کړی په نورو الفاظو وکتبوا بايديهم وغيره، او قسم به يې په خدای اخستی چي دغه من عندالله دي يعني په تورات کي، ولي چي له دوئ څخه رياست او صدقاتد د نورو يهدو له منځه څخه ولاړ نه سي، ابن حجر ﷺ چي په آيت کي دا ټوله شان نزوله صحيح دي لجواز کون اسباب النزول کلها جميعاً انتهی.

**درويش وايي:** چي تعجب دی مظهري ته ولي چي دا واقعات چي مذکور سوي دي په رواياتو مختلفه وو سره دا خو ټوله په وقت واحد کي نه وي بلکې په اوقات مختلفه وو کي وي، نو څرنګه امکان لري چي ټوله دي جميعاً سبب د نزول د آيت وګرځي، او که مراد د مظهري ﷺ تکرار د نزول د آيت وي په هره واقعه کي نو سره ددې چي دده له عبارت څخه خلاف دی ولي چي دده جميعاً لفظ ووايي لکن دونه تکرار نزول الآية الواحدة په هيڅ حديث اونه په قول د صحابي ثابت دی والله اعلم بمراده.

**درويش وايي:** چي دغه آيت رسول الله ﷺ د نورو خلګو په باره کي هم استعمال کړی دی که څه هم مسلمانان وي، چناچه عن ابي ذر ﷺ عن النبي ﷺ قال ثلاثة لايکلمهم الله ولا ينظر اليهم ولايزکيهم ولهم عذاب اليم. ابو ذر ﷺ وايي چي عليه الصلوة واسلام درې واره دغه آيت قرائت کړی.

نو ابو ذر ﷺ وويل خابوا وخسروا من هم يا رسول الله قال المسبل ازاره، چي لنګ يې پر پښو ځړېږي.

**درويش وايي:** چي په پرتاګه يې بجلکي پټي وي، والمنان الذي لايعطی شيئا الاصلة چي منت پر چا اچوي چي نه ورکوي سي. وڅانه مګر منت او احسان پر هغه اچوي، والمنفق سلعة بالحلف الکاذب، او رواج ورکونکی: د خپل خرڅېدو شی ته د درواغو په قسم رواه مسلم و احمد وابو داؤد والترمذي والنسائي، او د ابو هريرة ﷺ څخه روايت دی چي عليه الصلوة والسلام وويل



Scanned by CamScanner

ثلثة لايكلمهم الله يوم القيامة ولا ينظر اليهم ولايزكيهم ولهم عذاب اليم، يو هغه سړی چي په يوه دښت كي چي تر خان بالابود اوبه لري يعني يو څاه يې كښلي وي، او ابن السبيل يعني مسافرينو ته اوبه د چا نه وركوي "ورجل" او بل هغه سړی دی چي پر يوه چا يې يوه سلعة يعني يو كالي وغيره خرڅوي فحلف بعد العصر نو قسم واخلي پس د مازديگر تر لمانځه. يعني والله مثلاً چي ده دا سلعه په اوز روپو رانيولي ده، نو د مشتري ورزه ته ولوېږي نو يې خندي رانسي، او هغه سلعه په هغونده روپو نه وي رانيولي يعني درواغ وايي "ورجل" او بل هغه سړی چي د امام المسلمين سره بيعت كوي لپاره د دنيا، نو كه هغه امام المسلمين د ته دنيا وركوي نو دی وهغه ته وفاداره وي، او كه يې روپۍ نه كړي ور بيا وفاء بالبيعت نه كوي. متفق عليه للبخاري ومسلم.

او دغه رنګه عليه الصلوٰة والسلام دا آيت په دغو درو كسو كي هم راوړی دی "شيخ زان" سپين ږيری زناء كاره "عائل متكبر" او فقير كبر جن، او بل هغه سړی دی چي نوم د خدای ﷻ يې راس المال گرځولی وي، كه شی رانسي مگر نه قسم بالله سره او نه شی خرڅوي مگر په والله بالله سره، رواه الطبراني والبيهقي.

## وَإِنَّ مِنْهُمْ لَفَرِيقًا

او په تحقيق بعض يوه ډله د چي كعب بن الاشرف دی او مالك بن الصيف دی او يحی بن الاخطب دی، او ابو ياسر دی او سفنهة بن عمر الشاعر دی.

## يَلْوُنَ أَلْسِنَتَهُم بِالْكِتَابِ

**پوه سه:** چي لفظ د "با" لپاره د ملابست ده ومعنی يلون يصرفون فالمعنی دوئ ببچي او كږوي خپلي ژبي چي متلبس په قرائت د كتاب وي يعني التوراة د اصلي مُنزل تورات څخه په نعت كي د عليه الصلوٰة والسلام و هغه تورو ته چي دوئ تحريف وركړی وي.

## لِتَحْسَبُوهُ مِنَ الْكِتَابِ وَمَا هُوَ مِنَ الْكِتَابِ

ددي لپاره چي تاتسو گمان وكړئ اې مومنانو چي دغه محرف چي دوئ تغير وركړی و له كتاب يعني تورات څخه دي او هغه د منزل تورات نه دي



Scanned by CamScanner

وَيَقُولُونَ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَمَا هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ

او دوئ يعني يهوديان وايي چي دغه محرف له جانبه څخه د خداي ﷻ دي او هغه محرف له جانبه څخه د خداي ﷻ نه دي بلکې محرف دی. او دا خبري دوئ صراحةً کولي

وَيَقُولُونَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ۝

او دوئ ويله پر خداي ﷻ دروغ او دوئ پخپلو دروغو هم پوهېدله يعني عمداً بې دا کار د تحريف کتاب کاوه.

**تنبيه**: دا ټوله کارونه چي د يهوديانو ملايانو کوله لپاره د حفظ د رياست خپل پر عوامو باندي، او لپاره د جمع کولو د دنيا. شيخ صفوي الدين قدس سره وايي. څوک چي قرآن مجيد واسطه ګرځوي لپاره د دنيا تر ملا، مولوي، قاري مفتي پوري هغه څوک افضل دی چي دنيا په رباب او نورو آلاتو د لهو حاصلوي، د مثال په توګه که ډوډۍ دونده لوږ خاي پرته وه چي د سرې لاس نه ور رسېدی بيله دې چي يو شی تر پښو لاندي نه کړي او په خونه يا د ډوډۍ په خاي کي بل هيڅ شی نه و يو قرآن مبارک پروت و او بل طنبور، نو بايد سړی طنبور تر پښو لاندي کړي نه مصحف شريف. بيت

دين فروشي هست خسران مبين
سود مند آن کس که دنيا صرف کرد ودين خريد
او کبر سرمايه ده د ټولو بدو کارو

بيت

| | |
|---|---|
| تکبر عزازيل را خوار کرد | بزندان لعنت گرفتار کرد |
| کسی سر بزرگی نباشد بچيز | کدو سر بزرگست وبی مغز نيز |
| ميفراز گردن بدستار وريش | که دستار پنبه وسبلت حشيش |

ای مثل النسبات اليابس.

**پوه سه**: چي مظهري د ضحاک او هغه له ابن عباس رضی الله عنه څخه داسې روايت کړی دی چي دا آيت په يهودو او نصاری وو کي نازل سوی دی وذالک انهم حرفوا

التورات والانجیل والحقوا بکتاب الله ما لیس منه، انتهی.

**درویش وایي:** چي تاسي هغه اوږده واقعه او خبري د جعفر بن ابي طالب رضي الله عنه چي د نجاشي شاه حبشي سره وکړي او نجاشي خپل راهبان را طلب کړه، تر اخیره پوري مطالعه کړئ چي هغه ټوله واقعه هم په روایت کي د ابن عباس رضي الله عنه کما مر في هذا التفسیر عنقریب چي روایت له ابن عباس رضي الله عنه او دا روایت چي مظهري او ده منسوب کړی دی په باره کي د تحریف د نصاری وو د انجیل خو سره تناقض نه دي، ولهذا تحریف و یهودیانو ته ټوله مفسیرین منسوبوي والله اعلم.

**یوه سه:** چي ابن عباس رضي الله عنه وایي چي ابو رافع القرظي په وخت کي ددې چي سره جمع سوه احبار یعني ملایان د یهودیانو او نصاری د اهل نجران په مسجد نبوي کي د علیه الصلوة والسلام سره، او علیه السلام دوارو ډلو ته دعوت د دین اسلام ورکړی، ابو رافع وویل "اترید یا محمد ان نعبدک کما تعبد النصاری عیسی" نو علیه الصلوة والسلام وویل معاذ الله یعني پناه غواړم له خدای ﷻ څخه چي زه به خلگ امر کوم په عبادت د غیر الله، او نه زه ددې لپاره خدای ﷻ استولی یم او نه یې په دې سره امر کړی یم فانزل الله تعالی "ماکان لبشر الآیة" او له حسن بصري رحمه الله څخه روایت دی چي یو سړی وه علیه الصلوة والسلام ته وویل: یا رسول الله نسلم علیک کما یسلم بعضنا بعضاً افلا نسجدلک قال لا" لکن احترام د خپل نبي کوئ او د اهل بیت دده حق پر ځای کوئ لانه لا ینبغی لاحد ان یسجد لاحد من دون الله فانزل الله تعالی هذه الآیة، او مقاتل رحمه الله داسي شان نزول بیان کړی دی چي نصاری وو د نجران وویل چي عیسی علیه السلام موږ امر کړي یو چي ما رب وبولئ، فانزل الله تعالی "ماکان لبشر الآیة"

**درویش وایي:** چي ددې درو شان نزولو تر منځ منافات نسته بلکې عین ممکنه ده چي په یوه مجلس کي دا درې سره خبري واقع سوي وي فاجاب الله تعالی عنها بانزال هذه الآیة.

مَا كَانَ لِبَشَرٍ

نه ده روا و یوه بشر ته یعني لمحمد ولا لعیسی صلی الله علیهما والسلم.

**یوه سه:** چي بشر اسم جنس دی، لکه انسان پر نر او پر ښځي، او پر یوه او



Scanned by CamScanner

جماعت یې اطلاق روا دی، او ګاهې تثنیه په قرآن مجید کې راغلې ده کما قال "انؤمن لبشرین مثلنا"

**اعراب الآیة**" کلمه د "ما" نافیه ده او "کان" فعل ناقص دی، او اسم یې "ان یؤتیه الله آه" په تاویل د مصدر یې سبب د د ان مصدري دی، او خبر یې "لبشر" دی په حذف د متعلق ای ماکان جایزاً لبشر، او یوتیه" منصوب په ان مصدري دی او "ثم یقول" پر عطف دی، نو هغه منصوب دی، او "للناس" جار ومجرور متعلق په "یقول" پوري دی.

## اَنۡ يُّؤۡتِيَهُ اللّٰهُ الۡكِتٰبَ وَالۡحُكۡمَ وَالنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُوۡلَ لِلنَّاسِ كُوۡنُوۡا عِبَادًا لِّىۡ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ

ومعنى الآية مع ملاحظة ماتقدم في اعراب الآية داسي ده "ماکان ایتاء الکتاب والحکم" چې معنا یې حکمت ده وبعد هذا کله القول په دې سره چې تاسې زما بندګان سئ غیر له خدای ﷻ څخه یعني الشرک جائزاً لبشر" ولې په منځ کې د نبوت چې خلګو ته به دعوت ورکوي الی الایمان بالله وحده ته، او په منځ کې د دعوت وشرک ته منافات او تناقض دی کما لایخفی علی ادنی العاقل.

**درویش وایي**: چې ددې آیت په معنا او ربط کې ډېر غور په کار دی، یو متل دی "انجیر خوردن نه کار هر مرغی است.

**بوه سه**: چې ددې متل معنی داده چې یو مرغه دی چې نوم یې انجیر خورک دی، دونده لوی ستونی خدای ﷻ ورکړی دی چې پوره انځر په یوه وار تېرولای س، او نور مرغان داسي نه سي کولای بلکې لږ لږ د انځر پرې کوي او تېروي یې فافهم فانه سانح عزیز.

**بوه سه**: چې "ولکن" عطف دی پر "یقول" باندې په تقدیر د قول ای ولکن یقول.

## وَلٰكِنۡ كُوۡنُوۡا رَبّٰنِيّٖنَ

**درویش وایي**: چې رباني چې ربانیین یې جمع ده منسوب دی ورب ته په زیادت د الف او نون کما روحاني ونفساني

**يوه سه**: چي د رباني په معنا کي د صحابه وو او تابعينو متقارب المعنى اختلاف ستة (۱) فقهاء علما (۲) حکماء علما (۳) فقهاء معلمين الناس الخير والعمل الصالح (۴) علماء حکماء نصحاً لله في خلقه (۵) الذين يعمل بعلمه (۶) العالم بالحلال والحرام والامر والنهي العارف بانباء الامة ماکان ومايکون.

**سوال**: علم په ټوله ماکان في الامة وو په ټوله مايکون في الامة يستلزم العلم بالغيب؟

**جواب**: ان المراد بماکان ومايکون مماجاء في الاحاديث النبوية بقدر وسع الطاقة البشرية.

(۷) الرباني فوق الحبر والحبر العالم (۸) الرباني الجامع بين العلم والبصارة بين الناس (۹) الرباني من يربي العلم اى ينشره ويربي المتعلمين بصغار العلوم قبل کبار (۱۰) الرباني من يربي العلم بعمله (۱۱) الرباني من قام باصلاح الشئ و اسمائه (۱۲) حاصل جميع الاقوال المذکورة الرباني هو الکامل المکمل في العلم والعمل والاخلاص، ومراتب القرب الى الله، له محمد بن الحنيفيه رضي الله عنه روايت دی چي هغه ورځ چي ابن عباس رضي الله عنه وفات سو ده وويل مات رباني هذه الامة.

**درويش وايي**: چي ابن عباس رضي الله عنه په ټولو معنا وو رباني و بلا ريب.

**بِمَا كُنْتُمْ تُعَلِّمُونَ الْكِتٰبَ وَبِمَا كُنْتُمْ تَدْرُسُونَ ﴿۷۹﴾**

په سبب ددې رباني سه چي تعليم ورکاوه وخلگو ته او په دې سبب چي تاسي وخلگو ته درس ورکاوه، نو عطف تفسير دی د "تعلمون"

**يوه سه**: چي په تشديد د لام ويل قرائت د کوفيانو رحمهم الله دی وهو المروج في المصاحف، او نور قاريان يې په تخفيف د لام وايي من العلم "تعلمون" يعني تاسي پر کتاب يعني کتاب الله علم درلودی نو پر دې قرائت د "تدرسون" معنى داسي کړې ده اى تديمون على قرائت الکتاب وتحفظونه، نو پر دې معنا "تدرسون" پر قرائت د تشديد هم تاسيس دی فافهم.



Scanned by CamScanner

**پوه سه:** چي لفظ د با جاره متعلق دی بقوله کونوا ربانیین وهي للسببية، وكلمة ما مصدرية، والمعنى على ماقال المظهري كونوا ربانيين بسبب كونكم عالمين الكتاب ومعليمه الناس دائمين على قرائته وحفظه، ولي چي فائده د علم عمل دی په خپل علم، او اصلاح د خان ده او فائده د تعليم اصلاح د بل ده، او اصلاح د غير فرع د اصلاح د خان ده او په اوسني زمانه کې ملايان اصلاح ته د غير ډېر متوجه دي، او خانونه يې هېر دي، نو شايد دوی به مصداق ددې قول د خدای ﷻ وي "لم تقولون ما لا تفعلون" او لقوله تعالى "اتامرون الناس بالبر وتنسون انفسكم": بيت

واعظان کين جلوه در محراب ومنبر ميکند چون بخلوت ميروند آن ديگر ميکند

**وَلَا يَأْمُرَكُمْ أَنْ تَتَّخِذُوا الْمَلٰٓئِكَةَ وَالنَّبِيّٖنَ أَرْبَابًا**

او نه امر کوي الله تعالى تاسي په دې سره چي وگرځوئ ملکې او انبياء خپل ارباب يعني معبودان.

**پوه سه:** چي مظهري رحمه الله ويلي دي چي بعض نوموړي قاريان "يامركم" په رفع سره يعني په پېښ د راء وايي، نو جمله مستانفه ده والمعنى لايامركم الله، او بعض نوموړي قاريان يې په نصب سره وايي يعني په زور د راء، او عطف يې بولي پر "ثم يقول" باندي او پر دې تقدير لا زائد دی لپاره د تاكيد د معنى د نفي في قوله "ماكان لبشر الآية" والمعنى چي هغه څوک چي نبي وي هغه څوک نه امر کوي په عبادت د خپل خان، او يا په دې سره چي تاسي ملکي او نبيان خپل خدايان او معبودان بولئ لکه قريش او صابيون چي ويل به يې ملائکه بنات الله دي، او يا يهود وايي چي عزير ابن الله او يا نصارى وايي عيسى ابن الله دی.

**أَيَأْمُرُكُمْ بِالْكُفْرِ بَعْدَ إِذْ أَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿۸۰﴾**

آيا امر کوي نبي تاسي په کفر سره پسله دې څخه چي تاسي مؤمنان ياست په خدای پاک سره.

**پوه سه:** چي ضمير د فاعل په "يامركم" کي راجع و "بشر" ته دی او استفهام



Scanned by CamScanner

لپاره د تعجب او انکار دی. ولې څوک چې بل امر کوي په عبادت د ځان او یا د ملکو یا د انبیاء وو هغه کافر کېږي په دغه امر سره، او انبیاء کرام علیهم السلام خو نفوس طاهره دي له مطلق گناه قبل النبوة وبعدها، او دوئ ارواح طیبه دي فلا جمع في شخص وبشر النبوة ودعوة الخلق الی عبادة غیر الله من کانْ ذالک الغیر.

**درویش وایي**: چې په شانْ نزول کې دمخه تېره سوه چې بعض مسلمانانو د علیه الصلوة والسلام څخه اجازه وغوښتل چې موږ تاته سجده کوو فمنعهم رسول الله ﷺ ونزل "ماکان لبشر آه" نو که خطاب د "أیأمرکم" ددغو مسلمانانو سره وي، نو ضمیر مرفوع په "یامرکم" راجع وبشر ته دی چې علیه الصلوة والسلام دی، نو د آیت معنی ظاهره ده، هذا ماقاله الحسن البصري رحمه الله، او که چېرې ماکان لبشر رد وي پر نصاری وو چې دوئ به ویله چې موږ عیسی امر کړي یو چې تاسې ما رب وبولئ، او سره ددې چې نصاری د عصر عیسی علیه السلام خو مسلمانان وه نو ده څرنگه په کفر سره امر کول "اذ انتم مسلمون" نو ضمیر مرفوع په "یامرکم" کې راجع وبشر ته خو دی لکن مراد خندې عیسی علیه السلام دی، او خطاب د "کم" د نصاری وو سره د عصر نبوي دی او مراد خندې اسلاف د دوئ دي یعنې مسلمانان د عصر عیسی علیه السلام دي، والمعنی الرد کیف تزعمون ایها النصاری ان عیسی امر اسلافکم په دې سره چې تاسې ما رب وبولئ مع ان اسلافکم کانوا مسلمین فذالک قولکم بافواهکم وکذبکم علی رسولکم چې ده مسلمانان په کفر سره امر کوله. او که خطاب د هغو یهودیانو سره وي چې مشر یې ابو رافع و چې علیه الصلوة والسلام ته یې وویل "اترید یا محمد ان نعبدک کما عبدت النصاری عیسی" کما مر في شان النزول ایضاً، نو دا خطاب ویهودیانو ته پر تقدیر د فرض دی، یعنې پر تقدیر ددې چې تاسې مسلمانان سئ او انقیاد د امر د علیه الصلوة والسلام وکړئ نو دی به تاسې په کفر سره امر کوي بعد الاسلام، نو پر دې تقدیر ضمیر مرفوع د یامرکم وبشر ته راجع دی او مراد له بشر څخه علیه الصلوة والسلام دی فتامل هداک الله لتفهم هذه

التقادير الثلثة والفرق بينهما ع نه هر که بتراشد قلندري داند.

**درویش وابي:** چې په هغه آیت کې چې خدای پاک وویل "ولٰکن کونوا ربانیین بماکنتم تعلمون الکتاب الآیة" علم او دراست خدای ﷻ سبب وګرځاوه لپاره د ربانیت او د ربانیت دولس (۱۲) تفسیره تاسي واورېدل، نو دا ظاهرا سوه چې ربانیت او قرب او اتصال د خدایه سره بېله علم او دراسته نه پیدا کېږي، نو د هغه سړي پر حال افسوس دی چې په علم او درس کې يې ډېر تکلیف کوی وي او کړاوونه يې پر ځان وړي وي او وړي يې مګر دا علم يې ذریعه د عمل نه وي ګرځولی نو مثال ددغه عالم او مدرس داسي دی لکه یو سړی چې بنانسته درخته دی شنه کي او فقط د درختي سرسبزي او شادابي ته ګوري او له مېوې څخه يې محروم وي، فالعلم والدراسة بدون العمل وکذا العمل بدون العلم لایکون کل واحد منها بانفراده سببا للربانية، نو دا واضح سوه چې هغه عالم چې په علم عمل نه کوي نسبت د قرب يې د خدای ﷻ سره قطع دی لکه عامل جاهل، ولي چې ربانیت یوه لویه مرتبه د قرب الی الله ده چې له عمل چې هغه مبني پر علم به وي نه سي پیدا کېدای. ورود في الحديث النبوي الصحيح قال رسول الله ﷺ "اعوذ بالله من علم لاینفع ومن قلب لایخشع"

**نتیجه:** فالواجب على المعلم والمتعلم ان يطلب بعلمه مرضات الله وبعمله الربانية. او داغه رنګه واجبه ده پر مشانخو چې په اصطلاح يې پیران بولي، او خلګ مریدان کوي او ومریدی ته يې جلبوي چې تربیت د اتباعو او مریدانو دی په داسي ډول کوي چې ربانیون څنډي جوړ سي او تر ټولو اول دی پیر صاحب ځان په علم او عمل سره رباني جوړ کړي لکن د اوسني زماني ډېر پیران څېله پیري دام ګرځولي وي د خلګو د جلبولو لپاره او د اخذ اموال الناس بانواع من الحيل، او داسي خلګو او مریدانو ته منصب د خلافت قبل الوقت ورکوي چې څه نقود وغیره پوري ويني، او ددې زماني بعض پیرانو بعض کتابونه د حقیقي اهل الله مطالعه کوي لکه مثنوي، مکتوبات د امام رباني رحمه الله او کتاب د حافظ شیرازي رحمه الله او کلمات جامي او کتاب د بیدل وغير ذالک من کتب



Scanned by CamScanner

الصوفية الكرام رحمهم الله او د هغو خبري په مجالسو کي خپل مريدانو ته کوي، او بعض پيران داسي هم سته چي دی پخپله خو د اعمالو د شريعت مطهره بوی هم نه وي پکښي لکن جاهلانو مريدانو ته وايي چي د يو عالم وعظ ته به نه کښيني بلکي بعض دا لاهم ورته وايي چي زموږ د طريقت ملا نه په هغه پسي لمونځ لا مه کوئ "فقد ضلوا و اضلوا" قال السعدي الشيرازي رحمه الله في ذم هؤلاء المشائخ

دمادم بشونيد چو گربه روی | طمع كرده در صيد موشان کوی

رياضت کش از بهر تام وغرور | كه طبل تهی را رود بانگ دور

او حافظ شيرازي رحمه الله هم په ذم کي ددي پيرانو ډېر څه ويلي دي، وحضرت مجدد الف ثاني شيخ احمد سرهندي قدس سره درمکتوب ۲۳ ص۵٦ كه به عبدالرحيم المشتهر بخان خانان في المنبع عن اخذ الطريق ای طريق الارادة عن الشيخ الناقص صدور يافته بالفاظ عربيه بليغه چنان فرموده اند نجانا الله سبحانه عن المقال الخالي عن الحال والعلم المعرا عن الاعمال بحرمة سيد البشر المبعوث الى الاسود والاحمر عليه وعلى من الصلوات افضلها ومن التسليمات اكملها ويرحمهم الله عبداً قال آميناً بلغ رسالتكم د الاغ الصالح الصادق تبليغاً وحكى عن جنابكم بلسان الترجمان فانشدت

اهلاً بسعدى والرسول وحبذا | وجه الرسول لحب وجه المرسل

اعلم ايها الاخ القابل الظهور الكمالات اظهر الله تعالى فعلكم من القوة الا الفعل الدنيامزارعة الآخرة فويل لمن لم يزرع فيها وعطل ارض الاستعداد واضاع بذر الاعمال ومما ينبغي ان يعلم ان اضاعة الارض وتعطيها اما بان لم يزرع فيها شيئا او القى فيها بذراً خبيثاً فاسداً. وهذا القسم من الاضاعة اشد مضرةً من القسم الاول كما لايخفى وخبث البذر وفساده بان اخذ الطريق ای طريق التصوف من السالک الناقص ای المرشد الناقص بان لم يبلغ حد الارادة وهو اخذ طريق الارشاد لان الناقص صاحب هوى متبع وما يشوب بالهوى لايوثر وان اثر اعان على الهوى ای في المريد ايضاً فيحصل ظلمة على ظلمة



Scanned by CamScanner

ولان الناقص لایفرق بین الطرق الموصلة الی الله سبحانه، وبین الطرق التي لاتوصل الی الله تعالی اذهو نفسه غیر واصل الیه سبحانه فکیف یعرف الطریق الواصلة وغیرها وکذا لایمیز بین الاستعدادات للطلبة واذ لم یمیز طرق الجذبة عن طرق السلوک فربما یکون استعداد الطالب مناسباً بطریق الجذبة غیر مناسب بطریق السلوک والناقص لعدم التمییز بین الطرق وبین الاستعدادات المختلفة سلکه یعني المرید علی طریق السلوک ابتداءً فاضل یعني الناقص، گمراه کرد مرید خود را عن الطریق ای الطریق المناسب للمرید، کما ضل چناچه خود ناقص گمراه بود. فالشیخ الکامل المکمل اذا اراد تربیة هذا الطالب وتسلیکه احتاج اولاً الی ازالة ما اصاب من السالک الناقص واصلاح مافسد بسببه ثم القی البذر الصالح المناسب لحاله واستعداده فینبت نباتاً حسناً قال الله تعالی ومثل کلمة خبیثة کشجرة خبیثة اجتثت من فوق الارض مالها من قرار، ومثل کلمة طیبة کشجرة طیبة اصلها ثابت وفرعها في السماء.

**درویش وایي:** چي مراد له شجره خبیثه څخه مرغونې ده چي ریښې یې پر مځکه سر ببره وي، او مراد له شجره طیبه څخه د خرما درخته ده چي ریښې یې په مځکه کي ډېري محکمه دي او ښاخونه یې د اسمان پر خوا غالباً لوړ وي فصحبة الشیخ الکامل المکمل کبریت احمر نظره دواء وکلمته شفاء وبدونها خرط القتاد یعنې پر کروړه لاس تېرول دي.

**درویش وایي:** دا لفظ هر ځای چي راسي کنایه ده له سختۍ څخه د کار ثبتنا الله سبحانه وایاکم علی جادة الشریعة المصطفویة علی صاحبها الصلوة والسلام والتحیة اذ هو ملاک ومداره النجات ومنهاج السعادة، ولنعم ماقیل بالفارسیة

محمد که آبروی هر دو سر است — کسیکه خاک درش نیست خاک بر سر او

ولنختم المقالة علی صلوات سید المرسلین وتسلیماته وتحیاته وبرکاته، انتهی المکتوب من موضع الحاجة.

**درویش وايي**: چي مکتوب خو اوس هم اوږد و لکن زموږ حاجت تر دغه ځایه پکښي پوره سو، دورېش بعض ترجمي او توضيح په دې مکتوب کي زیاتي کړي دي لنفع السامعين لكن كه زه پوره شرح ددې مكتوب شريف كوم دېرو صفحاتو ته به ضرورت وي. ولهذا اعراضاً عن شرحه اختصاراً للتفسير القرآني

**درویش وايي**: چي ددغه مكتوب په حاشيه كي دغه بيتونه هم د كتابت ور دي.

گر زدستت میشود تخمی بکار تا بر آری خرمنی روز شمار

ورنه کاری مفلس یوم التناد گشته مغبون وخاسر بې مراد

تخم رای کارو آبی هم به پاش تابری یوم الحصاد ازغله هاش

ورنه پاشی آب دانه خشک شد وان همه رنج وتعب خود لغوه بد

آب ده از چشمه چشم ایجوان تاشود حرث تو سبزو کامران

کار باهوشیاری وبیداری بست هرکه غافل گشت میدان ناری است

## وَإِذْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ النَّبِيِّينَ

او په ياد كړه وخلگو ته هغه وخت چي خدای ﷻ عهد موكد واخستى له نبيانو څخه.

**پوه سه**: چي بعض مفسران وايي چي دا ميثاق خاص په انبياء عليهم الصلوة والسلام پوري دی، په دې ډول چي هر نبي ته خدای ﷻ ويلي دي چي ته په پر هرهغه نبي ايمان راوړې چي تر ده وروسته راځي او كومک به ورسره كوې چي د هغه نبي زماني ته ورسېږې، او كه چېرې د هغه زمانې ته ونه رسېږې نو قوم به په دې امر كوې چي تاسي به تصديق كوئ او كومک به ورسره كوئ مثلاً له موسى ﷺ څخه يې تصديق كول د عيسى ﷺ اخستى و، او له عيسى څخه يې تصديق د محمد ﷺ اخستى و، واذا كان هذا حكم الانبياء عليهم السلام فامتهم مامورون بالحكم المذكور بالطريق الاولى وهذا اى اكثر المفسرين رحمهم الله.



Scanned by CamScanner

**درویش وایي:** چې پوه سه چې هغه عبارت چې ما په ترجمه کې د آیت وویل چې د هغه نبي زمانې ته ورسېږي آه، دا د هغه عربي عبارت ترجمه ده د اخذ الله علی کل نبي ان یؤمن بمن یاتي بعده ان ادرکه آه.

**درویش وایي:** چې ادرک زمانه یؤمن به آه جمله شرطیه ده او د منطقو په تولو کتابو کې وایي چې مدار د صدق د شرطیه پر صدق د مقدم او د تالي في الواقع نه دی بلکې مدار د صدق د شرطیه پر تلازم بینهما دی نحو ان کان زید حمارا فهو ناهق. نو ان ادرک زمانه یؤمن به آه. معنا ددې قول د علیه الصلوة والسلام لو کان موسی حیا لما وسعه الا اتباعي کما ورد في الحدیث الصحیح وهذا هو السر ان عیسی وان لم یدرک زمان حیوة النبيﷺ لکن لما ینزل من السماء یؤمن برسول اللهﷺ ویتبع دینه کما ورد في الحدیث الصحیح ان عیسیؑ لماینزل من السماء یقتل الخنزیر ویکسر الصلیب الی اخیر الحدیث.

**پوه سه:** چې مظهريؒ یو احتمال په قیل سره راوړی دی چې ډېر بعید دی چې معنا د آیت داده اخذ میثاق اهل الکتاب آه بیا ددې تفسیر یې داسې توجیه کړې ده ففي الکلام ای الآیة حذف مضاف تقدیره اخذ الله میثاق اولاد النبیین وهم بنو اسرائیل اهل الکتاب آه. والله تعالی اعلم بمراده في کتابه.

## لَمَآ اٰتَیْتُكُمْ

**پوه سه:** چې قاضي بیضاوي وایي او مظهري یې هم نقل کړی دی چې حمزهؒ قراءت د لام په کسره کوي، یعني لام جاره بولي او کلمه د ما مصدریه بولي والمعنی لاجل ایتائي ایاکم بعض الکتب ثم مجیئ رسول مصدق له اخذ الله المیثاق لتومنن به ولتنصرنه. او یا ما موصوله ده والمعنی اخذ المیثاق للذي اتیتنکموه وجائکم رسول مصدق. او نور قاریان یې توله په زور د لام وایي چې لام موطنه د قسم بولي، ولې چې اخذ المیثاق په معنا د استحلاف دی، او کلمه د ما شرطیه ده، او لتؤمنن به آه پر ځای د جواب د قسم او د جزاء د شرط دواړو ولاړ دی، والمعنی چې خدایﷻ واخستی عهد او میثاق د انبیاء علیهم السلام څخه او قسم یې هم ورکړی که چېرې تاسې ته کتاب درکړه سو او بیا وروسته

رسول مصدق راغلی نو تاسي به ایمان پر راوړئ او کومک به هم ورسره کوئ.

مِّن كِتَٰبٖ وَحِكۡمَةٖ ثُمَّ جَآءَكُمۡ رَسُولٞ مُّصَدِّقٞ لِّمَا مَعَكُمۡ

يو بعض له کتابو څخه او له حکمت څخه يعني سنت او يا فقاهت په دين کي وروسته بيا تاسي ته داسي يعني ستاسي په زمانه کي پيدا سي يو رسول چي هغه رسول تصديق کوي د هغه کتاب چي ستاسي و يعني در کړه سوی و دمخه تر رسول آتي.

**پوه سه:** چي بعض مفسرين‌رح وايي چي مراد له رسول څخه محمد ﷺ دی خاصةً ولي چي عليه الصلوة والسلام مبعوث دی الی کافة الانام، دا تخصيص له قول څخه د ابن عمر‌رض او له قول څخه د علي‌رض مستفاد دی.

**درويش وايي:** چي شايد علي او ابن عمر‌رض تخصيص د ذکر د نبي ﷺ له دې سببه کړی وي چي الزام پر اهل کتابو معانديتو راسي، ولي چي خبري د خدای پاک له دوئ سره په امر کي د محمد ﷺ وې لاغيره لالزامهم بميثاق النبيين وامهم وليس مقصودهما نفي الحکم عما عداه لکه چي په دې قول کي د خدای ﷻ مصدقاً لما معکم اشاره ودې ته ده چي تکذيب ستاسي ای اهل کتابو د رسول الله ﷺ تکذيب دی ستاسي له خپلو کتابو څخه لانه ﷺ مصدق لما معکم فافهم.

**درويش وايي:** که دا باعث د تخصيص نه وای نو په قرار ددې چي مفسران په يوه خوله وايي چي عبرت عموم لره لفظ دی خصوصيت لره مورد نه دی، نو صحيح داده چي ايمان پر ټولو انبياؤ او دا قول د خدای ﷻ "لانفرق بين احد من رسله" پر ټولو انبياء عليهم السلام او پر اممو ددوئ ايمان واجب دی السابقة واللاحقة. او دا قول د رب العزت هم تاکيد ددغه ماقلنا کوي چي وايي شرع لکم من الدين ماوصی به نوحاً والذي اوحينا اليک وما وصينا به ابراهيم وموسی وعيسی ان اقيموا الدين ولا تتفرقوا فيه" صدق الله العظيم.

لَتُؤۡمِنُنَّ بِهِۦ وَلَتَنصُرُنَّهُۥۚ

نو تاسي به ايمان پر راوړئ پر هغه او کومک به ورسره کوئ په ځان او په مال



Scanned by CamScanner

سره او دا خطاب وانبیاؤ علیهم السلام ته دی پر تقدیر د ادراک د زماني د هغه نبي، او که تاسي ادارک د هغه ونه کړی نو خپل اتباع به امر کویٔ چي هر چا ادارک د زماني د راتلونکي نبي مصدق لما معکم وکړی پر هغه به ایمان راوړیٔ او کومک به ورسره کویٔ

قَالَ

ای الله ﷻ

**پوه سه:** چي دا جمله مستانفه ده لپاره د بیان د اخذ المیثاق کانه قیل کیف اخذالله المیثاق او یا قال ناصب دی د هغه د مخه اذ واذا اخذالله آه اؤ که دا جمله مستانفه سي نو ناصب د "اذ" اذکر مقدر دی.

ءَاَقْرَرْتُمْ وَاَخَذْتُمْ عَلٰى ذٰلِكُمْ اِصْرِيْ

آیا ستاسي اقرار دی په ماقلنا سره او ستاسي قبول دی زما عهد او پیمان

**پوه سه:** چي مخاطب یوازي انبیاء دي او یا انبیا سره د امتو.

قَالُوْٓا اَقْرَرْنَا ۭ قَالَ فَاشْهَدُوْا وَاَنَا مَعَكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿٨١﴾

نو انبیاؤ وویل چي زموږ اقرار دی په دغه عهد او میثاق سره، نو خدای پاک ورسولانو ته وویل چي تاسي شاهدان اوسیٔ پر خپلو ځانو او پر اتباع خپلو یعني په ورځ د قیامت او زه هم د تاسئ سره شاهد یم پر تاسي اوپر امتو ستاسي.

فَمَنْ تَوَلّٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَاُولٰۗىِٕكَ ھُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿٨٢﴾

او کهٔ چا مخ واړوی او اعراض یې وکړی له متابعت څخه د رسولانو له هر رسوله چي وي، نو دغه کسان دي خارج له ایمان څخه وکفر ته چي اعلی درجه د فسق ده.

**درویش وایي:** چي خدای پاک چي لفظ د "من" ذکر کړی چي هر چا ته شامل دی صریح دی چي میثاق د انبیاؤ او له امتو څخه ددویٔ ټولو اخسته سوی دی لکن په عبارت د قرآن عظیم یعني "واذا اخذالله میثاق النبیین" اکتفاء وکړه سوه په ذکر د متبوعینو له ذکر څخه د تابعینو.

**درویش وایي**: چي بعض احتمالات چي په تفسیر ددې قول د خدای پاک "واذ اخذ الله میثاق النبیین آه" چي مختلفو مفسرینو ذکر کړي دی، او آلوسي رحمه الله جمع کړي دي موږ به یې ذکر کړو تاچه سامعین په صحیح معنا لکه چي موږ دمخه عنقریب ذکر کړه او په نورو ضعیفو تفسیرو پوه سي، یو احتمال خو هغه وچي مظهري رحمه الله راوړی و او موږ یې وضعف ته اشاره وکړه، او بل احتمال هغه دی چي له قول څخه د ابن عمر رضی الله عنه او د علي رضی الله عنه مستفاد و چي موږ یې ذکر هم وکړی او توجیه مو هم وکړه، او بل احتمال دادی چي اضافت د میثاق ونبیین ته اضافت دی وفاعل ته، والمعنی واذا اخذالله المیثاق الذي وثقه النبیین علی امهم، آلوسي رحمه الله وایي چي ودې احتمال ته ابن عباس رضی الله عنه تګ کړی دی لکه ابن المنذر له سیعد بن جبیر څخه روایت کړی دی، دی وایي چي ما ابن عباس رضی الله عنه ته وویل چي شاګردان د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه آیت مذکوره داسي قرائت کوي" واذ اخذالله میثاق الذین اوتوا الکتاب لما آتیتکم آه" او موږ خو یې داسي قرائت کوو "میثاق النبیین آه" نو ابن عباس رضی الله عنه وویل انما اخذالله میثاق النبیین علی قومهم نو له ابن عباس رضی الله عنه مطلب دا و چي ددې دوو قرائتو تر منځ تناقض نسته.

**درویش وایي**: چي قول د ابن عباس رضی الله عنه هلته صحیح کېږي چي اضافت په و اذ اخذ الله میثاق النبیین اضافت سي وفاعل ته کما لایخفی علی المتامل، او مجاهد رحمه الله وایي چي قرائت د واذ اخذالله میثاق النبیین آه خطأ له کاتبانو څخه ده، او صحیح قرائت د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دی یعني واذ اخذالله میثاق الذین اوتوا الکتاب آه، نو د ابن عباس رضی الله عنه پر اشاره دا د مجاهد رحمه الله اعتراض پر روایت مشهوره هم نه وارد یږي کما لایخفی، او بل احتمال دادی چي معنا د آیت داده چي مراد امم النبیین دي په حذف د مضاف والی هذا الاحتمال ذهب جعفر صادق رضی الله عنه او دا احتمال هم آلوسي راوړی دی چي مضاف محذوف اولاد دی ای اولاد النبیین او مراد څخه بني اسرائیل دي، لکثرة اولاد الانبیاء فیهم، او سیاق د کلام یې هم تقضا کوي، او د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه قرائت یې



Scanned by CamScanner

تاکید کوي کما هو ظاهر او قرائت د عبدالله بن مسعود قرائت د ابی بن کعب هم دي، او دا احتمال ېې هم راوړی دی چي واذ اخذالله میثاقا مثل میثاق النبیین ای میثاقا غلیظا علی الامم وروسته یې لفظ د مثل حذف کړی دی او میثاق د اممو یې عین میثاق د نبیین وګرځاوه مبالغة مثل قول الفقها، في مدح ابي یوسف رحمه الله، ابو یوسف ابو حنیفه ای ابو یوسف مثل ابو حنیفه رحمهما الله تعالی، او دا احتمال یې هم راوړی دی چي مراد له نبیین څخه پخپله بني اسرائیل دي.

**سوال:** بني اسرائیل د زماني د علیه الصلوة والسلام چي قرآن په هغه زمانه کي نازلېدی څو نبیان نه وه بلکي کافران وه؟

**ځواب:** آلوسي رحمه الله داسي ځواب ورکړی دی چي تهکما یعني د پسخنده یې دوئ ته نبیان ووېل، ولي چي دوئ به وېل چي نحن اولی بالنبوة من محمد ﷺ ولي چي موږ اهل د کتاب یو او نبیان هم ډېر په موږ کي تېر سوي دي. نو ددي تهکم مثال دا دی چي تا یو سړي ته امانت ایښی وي او هغه خیانت پکښي وکړي او بیا دي ووایي چي زه څو امین سړی یم. باره ته ور نعرې کړي یا امین ما صنعت بامانتي، او خلیلي رحمه الله پر دي سوال کړی دی بان هذا بعید جداً اذ لا قرینة علی ان المراد هٰ التهکم. آلوسي رحمه الله جواب ورکړی دی چي هغه څوک چي دا توجیه او ترجمه کوي شاید ددوئ قول مذکور بې قرینه حالیه ګرځولي وي، او دا احتمال یې راوړی دی چي ترجمه د آیت داده "واذ اخذالله المیثاق عن الناس لاجل النبیین.

**درویش وایي:** چي دا وه احتمالات چي آلوسي رحمه الله ذکر کړي وه نور ته فکر پکښي ووهه په قرب او بعد کي ددي احتمالاتو والعلم عندالله.

## اَفَغَيْرَ دِيْنِ اللهِ يَبْغُوْنَ

آیا ماسوی له دین څخه د خدای ﷻ دوئ غواړي

**پوه سه:** چي مظهري رحمه الله وایي چي دا جمله معطوف ده پر اولئک هم الفاسقون باندي او همزه یې په منځ کي د معطوف او د معطوف علیه لپاره د

انکار راوړی دی. یعنې دا کار باید دوئ ونه کړي. او دا توجیه علامه بغداد هم راوړې ده. او ابن هشام وایي چي دا مذهب د سیبویه او جمهورو دی وجزم به الزمخشري، او دوهمه توجیه یې دا راوړې ده چي نن صبا مشهوره ده چي فغیر دین الله عطف دی پر محذوف باندې وروسته تر همزه. والتقدیر ایفسقون فغیر دین الله یبغون او یا داسي، ایتولون فغیر دین الله یبغون.

**درویش وايي** چي شاید ددې تکلف د حذف د معطوف علیه سبب به دا وي چي صدارت د همزه استفهام محفوظ پاته سي والله اعلم

**نکته** په دې آیت له څه سببه مفعول به چي غیر دین الله دی تر فعل عامل چي یبغون دی دمخه کړی دی؟

**ځواب** لپاره د تخصیص دی او انکار له مخصص څخه والتقدیر اتخصصون غیر دین الله یا لطلب، نو معنا د انکار داده چي طلب د دین الله نه جمع کېږي د طلب سره د غیر دین الله

**پوه سه**: چي ابو عمر او یعقوب او حفص د عاصم رحمهم الله په روایت "یبغون" بالیاء علی الغیب وایي وهو المشهور في المصاحف نظراً الی قوله فاولٰئک هم الفاسقون لانه غائب او جمهور قاریان یې "تبغون" بالتاء وایي علی الخطاب نظراً الی قوله تعالی آتیتکم

**پوه سه** چي بغوي په شان نزول کي د آیت مذکوره وايي چي یهود او نصارٰی دواړي ډلي وعلیه الصلوٰة والسلام ته راغلې او ددوئ سره اختلاف و په دې کي چي هري ډلې ویل چي موږ پر دین د ابراهیم یو، نو علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چي کلا الفریقین بریٔ عن دین ابراهیم نو دوئ ته درد ورغلی او داسي یې وویل لانرضی بقضائک ولاناخذ بدینک فانزل الله تعالی افغیر دین الله یبغون

وَلَهٗٓ اَسۡلَمَ مَنۡ فِی السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ طَوۡعًا وَّکَرۡهًا وَّاِلَیۡهِ یُرۡجَعُوۡنَ ﴿۸۳﴾

او حال دادی چي وخدای ﷻ ته فرمان برداره دي هغه څوک چي په اسمانو کي دي یعني الملائکة او چي په مځکه کي دي ای الجن والانس

**پوه سه**: چي "طوعا" حال دی له فاعل څخه د "اسلم" مصدر دی په معنا د جمعي



Scanned by CamScanner

دی ای طائعین باختیارهم او دا ملائکه خو تولـه دي. لانهم عباد مکرمون لایعصون عن امر الله وهم بامره یفعلون. او نور مومنان دي د انسانانو او د پیریانانو. یعنې هم انقادوا لامر الله باختیارهم فیما امروا به من الاوامر التکلیفة والافعال الاختیاریة. او راضي دي په قضاء د خدای ﷻ جبرا في الاوامر التکوینیة. لکه مرگ او درد او امراض. او موت الاولاد والفقر وغیر ذالک

**پوه سه:** چي "کرهاً" هم مصدر دی او حال دی په معنی د کارهین. یعنې په زور د توري او یا تېزې د هغه شیانو چي دوئ مجبوره کوي و اسلام ته. لکه په وخت کي د نزول د تورات چي یهودانو یې له قبول څخه انکار وکړی او جبرئیل ﷺ په امر د خدای ﷻ یو غر پر را پورته کړی نو دوئ منلو ته د تورات حاضر سوه، او یا چي فرعون سره د قوم په دریاب کي ډوب سو نو چي یو وار ابو را پورته کړی نو یې وویل آمنت بما آمن به بنو اسرائیل، او یا چي زکندن یې سي او خپل حال ورته معلوم سي. او په اوامر تکوینیه وو دوئ هم مجبور دي لکه طائعین چي مجبور وه لکن په قضاء الهي راضي نه دي لکه طائعین، وهذا هو الفرق بین الفریقین، او ټوله وخدای ﷻ ته راجع کړه کېږي یعنې په ورځ د قیامت.

**پوه سه:** چي یعقوب او حفص یې په یاء د غیبت وایي کما هو في المصاحف المروجة نو ضمیر د جمع یې راجع دی ومن ته چي په معنا د جمع دی. او جمهور قاریان یې په تاء د خطاب وایي لکه په تېغون کي چي تفصیل تېر سو.

**پوه سه:** چي په الینا یرجعون کي تهدید شدید و وعید عظیم دی لمن خالف الدین الحق وهو الاسلام په دې معنا چي که تاسي په دې دنیا کي ډېر مخالفت کوئ د دین اسلام سره لکن رجوع ستاسي په ورځ د قیامت خاصة وخدای ﷻ ته ده چي په هغه ورځ نفع او ضرر ټوله ظاهراً وباطناً په قدرت کي د خدای دی، نه شافع سته چي ستاسي شفاعت دي وکړي او نه کومک کونکی سته چي ستاسي سره دي کومک وکړي، او نه فدیه سته چي ځانونه په خلاص کړئ فیعذبکم الله في ذالک الیوم عذاباً الیماً شدیداً خالداً نعوذ بالله من غضب الجبار جل مجده.



Scanned by CamScanner

**درویش وایي**: چي عاقل سړي لره پکار ده چي همېشه د عهد د یوم المیثاق مراعات وساتي، روی سلطان ابراهیم بن الادهم قدس سره ته چا وویل چي کاشکي ته زموږ سره په مسجد یو ګړی کښېنستلای او موږ ستا خبري او نصیحت اوربدلای. ابراهیم رحمه الله ورته وویل چي زه په څلورو فکرو اخته یم که له دې څخه خلاص شوم بیا به در سره کښېنم. خلګو ورته وویل چي هغه کوم څلور فکرونه دي. ده وویل (۱) هغه وخت چي ذریة د آدم عليه السلام دده له ملا څخه په مثال د بېخي کوچني مېږیانو خدای ﷻ جلا کړه او یوې ډلي ته خدای ﷻ اشاره وکړه هولاء للجنة ولا ابالي. او بلې ډلي ته یې اشاره وکړه او وه یې ویل هولاء الی النار ولا ابالي، نو زه په دې فکر کي یم چي زه به په کومه ډله کي وم.

(۲) په دې زه فکر وهم چي په حدیث نبوی ﷺ کي راغلي دي چي خدای ﷻ په رحم کي د ښځي عیال پیدا کړي او روح پکښي پوه کړي، نو هغه ملکه چي موکل پر رحم ده خدای ﷻ ته وایي سعید او شقي، نو زه نه پوهېږم چي زما په باره کي د خدای ﷻ له خوا ملکي ته څه جواب ویل شوی دی.

(۳) په دې زه فکري یم چي ملک الموت د قبض روح لپاره انسان ته راسي نو خدای ﷻ ته وایي اقبضها مع الاسلام او مع الکفر. نو زه نه یم خبر چي زما په باره کي به ملک الموت ته څه جواب ورکړه سي.

(۴) په ورځ د قیامت چي خدای ﷻ اعلان وکړي وامتازوا ایها المجرمون فلا ادري في اي فریق اکون. نو ابراهیم رحمه الله ورته وویل ددغو څلورو فکرو له کبله زه ستاسي سره لپاره د وعظ نه سم کښېنستلای.

**درویش وایي**: چي رحم الله ابراهیم چي په عین حال کي د بیانولو د مانع د وعظ موعظت بلیغه وخلګو ته وکړی کما لایخفی علی العاقل.

## قُلْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ

ووایه ته اې محمد ﷺ وخلګو ته چي موږ ایمان راوړی دی پر خدای ﷻ باندي.

**پوه سه**: چي خدای ﷻ علیه الصلوة والسلام امر کړی چي ته خپل حال وخلګو ته ښکاره کړه لکن په صیغه د متکلم مع الغیر تعظیماً تعبیر وکړی، اویا مراد



Scanned by CamScanner

دادی چي ته اخبار د خان له خوا او د متابعینو له خوا وکړه. نو متکلم مع الغیر پر ظاهر محمول دی، او یا دا خطاب و هر مختار ته دی چي ته اخبار د خان له خوا او د اخوتک المؤمنین له خوا څخه وکړه.

## وَمَا أُنزِلَ عَلَيْنَا

او زمونږ ایمان دی پر ما انزل علینا. نو که مراد له آمنا څخه نفس شریفه د علیه الصلوة والسلام وي. نو ما انزل علینا تاویل ته غواړي او که مراد اخبار وي د خان او د مؤمنانو له خوا څخه نو نسبت د نزول القرآن پر مومنانو په توسط د علیه الصلوة والسلام دی پر دوی.

**پوه سه:** چي صله د نزول گاهي الی راځي کما في سورة البقرة وما انزل الینا. او گاهي علی راځي کما في هذه الآیة.

## وَمَا أُنزِلَ عَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ

او زمونږ ایمان دی پر هغو کتابو او صحیفو چي نازل سوي دي پر ابراهیم او اسماعیل چي مشر زوی د ابراهیم و. او پر اسحق چي بل زوی د ابراهیم و او پر یعقوب چي د اسحق زوی و. او پر انبیاء و د اولاد د یعقوب علیهم الصلوة والسلام

## وَمَا أُوتِيَ مُوسَىٰ وَعِيسَىٰ

او زمونږ ایمان دی پر هغه کتاب چي ورکړه سوی و موسی ته چي تورات دی او پر هغه کتاب چي ورکړه سوی و عیسی ته چي انجیل دی.

**سوال:** موسی او عیسی خو په اسباط کي داخل وه نو تخصیص بالذکر یې په څه جهت وکړی؟

**ځواب:** نعم لکن وجه د تخصیص یې مزید فضل ددې دوو کتابو دی. او بل یې له دې سببه تخصیص وکړی چي بحث د علیه الصلوة والسلام غالباً له یهودو او نصاری وو سره و او یا ددې لپاره چي دا ښکاره کړي چي د موسی او د عیسی تر منځ هیڅ اختلاف نسته او نه یې په ایمان راوړلو کي تضاد سته کما قال الیهود والنصاری.

**پوه سه**: چي ګاهي تعبير په ما انزل او ګاهي په مـا اوتي صرف لپاره د تفنن په عبارت کي دی، او بعض مفسران وايي چي له ما انزل څخه وحي جلي مراد دي او له ما اوتي څخه وحي خفي مراد دي کالقرآن الکريم والاحاديث النبويةﷺ

وَالنَّبِيُّونَ مِن رَّبِّهِمْ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ ﴿٨٤﴾

او زموږ ايمان دی پر هغو کتابو چي ورکړه سوي دي ودوی ته لـه جانبه څخه د رب ددوی او موږ فرق نه کوو په منځ کي د يو نبي او بل نبي يعني په تصديق کي د بعض او په تکذيب کي د بعض لکه يهود او نصاری چي يې کـوي. او موږ خدای ته منقاد او فرمان برداره يو.

وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ ﴿٨٥﴾

او څوک چي غواړي غير له اسلام څخه دين يعني بېله توحيده او انقياد لحکم الله او يا غير ددين د عليه الصلوة والسلام چي ناسخ دی د ټولو اديانو هرګز له هغه څخـه نـه قبلېږي او هغـه لـه تاوانيـانو څخـه دی پـه ورځ کـي د قيامت. ولـي طرق ټوله و خدای ﷻ ته بندي دي بېله توحيد او انقياد او يا بېله ايمان راوړلو پر محمدﷺ او متابعت ده د دين او قرآن

**فائده**: ديناً مفعول به دی د يبتغ او غير الاسلام حال دی د دنيا. ولي چي غير الاسلام په اصل کي صفت و د دنيا چي ومخه سو باره حال سو کما هو القانون النحوي.

كَيْفَ يَهْدِي اللَّهُ قَوْمًا كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ

**پوه سه**: چي بغوي ﷫ وايي چي دا آيت په هغو دوولسو کسو کي نـازل سوی دی چي مرتد سوه له اسلام څخه او له مديني څخه فراره سول او مکې ته ولاړل کفار او مشرکان سول، نو معنا د آيت مظهري داسي کړې ده څرنګه به خدای هدايت د جنت او ثواب وکړي، والاستفهام للانکار يعني لايهديهم الی الجنة والثواب ته د هغه قوم چي دوی کافران سوه وروسته تر ايمان ددوی.

**پوه سه:** چې مظهري رحمه الله چې د هدایت معنی په جنت او ثواب سره وکړه دده په خیال هدایت د خدای د په معنی مشهوره سره د انکار وړ نه دی، ولې په دغو دولسو کسانو کې حارث بن سوید بیرته مسلمان سو کما سیأتي. نو ځکه د معنی د یهدی الله په هدایت الی الجنة والثواب نه وکړه ولې چې هدایت د مرتد وجنت او ثواب ته خو د انکار وړ دی نو سوال دفع سو

**درویش وایي:** چې دې معنا ته ضرورت نه و ولې چې د هدایت دوې معناوې دي، ارائة الطریق چې دلالت علی مایوصل به هم ورته وایي دا خو په مرتد کې متصوره ده د انکار وړ نه ده. ولې فقهاء وایي که څوک له دین څخه مرتد سي العیاذ بالله نو فعلاً او دستي دې یې نه وژني بلکې علماء او قضات دې کوښښ وکړي چې سبب د ارتداد چې دده په زړه کې ورګرځیدلی د ور دفع کړي او بیرته دې د رجوع الی الاسلام دعوت ورکړي که هغه نه کړه قبوله بیا دې قتل کړي، او بله معنا د هدایت دلالت موصله دی چې خلق الاہتداء یې هم بولي چې خدای ﷻ په زړه کې د مرتد هدایت پیدا کړي بلا اختیار منه. او دا معنا بیشکه د انکار وړ ده، ولې خدای ﷻ داسې نه کوي لکه چې وایي "ولوشاء الله لآمن من في الارض جمیعاً" ولله در صاحب روح البیان حیث قال استبعاد لان یهدي قوماً معاندون للحق مکابرون فیه غیر خاضعین له بان یخلق في قلوبهم الاہتداء وانما یخلق الاهتداء ویوفق علی کسب ذالک ویقدرهم علیه اذا صاروا خاضیعن للحق راغبین فیه فالمراد من الهدایة خلق الاهتداء وقد جرت سنة الله في دار التکلیف علی ان کل فعل قصد العبد انی تحصیله فان الله یخلقه ای الاهتداء في روعه فکانه قال الله تعالی کیف یخلق فیهم المعرفة والاهتداء وهم قصدوا الکفر ولم یقصدوا الهدایة انتهی. فتفکر ایها السامع تفسیر المظهري وتفسیر روح البیان وړ په قبول دی په معنا کې د ایت.

وَشَهِدُوٓا۟ أَنَّ ٱلرَّسُولَ حَقٌّ وَجَآءَهُمُ ٱلْبَيِّنَٰتُ

او د مخه تر ارتداد دوی شاهدي اداء کول چې رسول یعني محمد ﷺ نبي بر حق دی او دوی ته معجزات او دلائل بر صدق دده هم موجود وه.



Scanned by CamScanner

وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۸۶﴾

**پوه سه** چې په دې ځای کې هم مظهري رحمه الله تفسیر د هدایت په لایهدي الجنة والثواب سره کړی دی کما في ماسبق. او روح البیان بې تفسیر په خلق د اهتداء کړی دی کمامر عنقریب تفصیله.

أُولٰٓئِكَ جَزَآؤُهُمْ أَنَّ عَلَيْهِمْ لَعْنَةَ اللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِيْنَ ﴿۸۷﴾

دغه کسان چې مرتد سوه او دین د اسلام یې پرې ښو جزاء د دوئ داده چې پر دوئ دې لعنت د خدای وي یعني له رحمت عامه څخه د خدای دې لیرې وي او په غضب د خدای ﷻ دې مبتلاء وي. او لعنت د ملکو چې هغه ملکې به ښرا ورته کوي چې خدایه ته دوئ له خپل رحمت څخه لیرې وساتې. او لعنت د خلګو دې وي یعني المؤمنین. او د ناسو لعنت هم په معنا د ښرا دی. او یا مراد له ناس څخه ټوله خلګ دي که مؤمنان وي او که کافران لکن په ورځ کې د قیامت. قال الله تعالی یکفر بعضکم بعضاً ویلعن بعضکم بعضاً.

**پوه سه**: چې "اولئک" مبتداء ده او جزائهم مبتداء ثاني ده او ان علیهم لعنة الله. والمعطوفات علیه خبر للمبتداء الثاني ای جزائهم والجملة بتمامها خبر للمبتداء الاول ای اولئک.

خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ﴿۸۸﴾

او دوئ به همېشه وي په لعنت کې او یا په نار کې.

**سوال**: لفظ د نار خو دمخه نه دی ذکر سوی. نو اضمار قبل ذکر المرجع به نه وي؟

**ځواب**: لفظ د نار که څه هم صراحةً نه دی ذکر سوی لکن حکماً مذکور دی ولې لعنت دلالت پر کوي لان صاحب اللعنة صاحب النار دی. البته والشرط في ارجاع الضمیر ذکر المرجع لفظاً او تقدیراً او حکماً کما تقرر في النحو

**فائده**: لفظ د "وخالدین" حال دی له ضمیر څخه د علیهم لکن حال مقدره دی او نه سپکول کېږي له دوئ څخه عذاب النار. او نه دوئ ته مهلت ورکول کېږي



Scanned by CamScanner

إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِنْ بَعْدِ ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٨٩﴾

مګر نه هغه کسان چي توبه وکاږي وروسته تر ارتداد او صالحين سي، مظهري رحمه الله وايي چي واصلحوا عطف دی پر تابوا باندي عطف تفسير د هغه دی، ای صاروا صالحين ای مسلمين. او يا معنا داده چي دوئ اصلاح وکړي د ماقسدوا في الارض وقت الارتداد لکه بهتان پر عليه الصلوة والسلام او يا بهتان پر دين د اسلام وغير ذالک. نو خدای ﷻ بخښونکی د لوی ګناه د ارتداد دی او توبه يې قبلوي او تر تفريط په حقوق کي د خدای ورتېرېږي. او خدای ﷻ مهربانه دی چي لکه نور مسلمانانو ته د جنت اجازه به ورکړي

**بوه سه** چي نسائي. ابن حبان او حاکم په مستدرک کي روايت کړی دی له ابن عباس رضي الله عنه چي يو سړی له انصارو څخه چي اسلام يې راوړی و او بيا مرتد سو او بيرته پښېمانه سو نو د خپل قوم وخلګو ته يې خط نوشته کړی چي تاسي عليه الصلوة والسلام ته سړی ورواستوئ چي زما توبه قبلېږي کنه. فنزل هذه الآية الى اخيرها ، نو قوم وهغه ته په خط کي دا آيت ورنوشته کړی نو هغه سړی راغلی مديني ته او از سر نو يې اسلام راوړی.

ابن المنذر او عبدالرزاق له مجاهد رحمه الله څخه روايت کړی دی چي په هغو دوولسو (١٢) مرتد سوو کسانو کي کمامرت. حارث بن سويد چي بيرته پښېمانه سو او په پټه قوم ته راغلی او د توبې پوښتنه يې وکړه. نو يو سړي دا آيت ورته تلاوت کړی، نو حارث وهغه سړي ته وويل چي قسم په خدای ﷻ نه زما په عقيده رښتيا ګوبه يې او رسول الله ﷺ تر تا ډير رښتيا ويونکی دی وان الله لاصدق الثلثة فرجع فاسلم فحسن اسلامه.

**فائده** له سري سقطي قدس سره څخه روايت دی چي ما يوه ورځ په خپل وعظ کي داسي وويل عجبت من ضعيف عصی قويا. نو دا بله ورځ چي ما د سهار لمونځ وکړی، يو پر آس سپور ځوان چي تر شا يې نور سپاره په پسې وه او مريان يې دمخه ځغاستله راغلی او د مخه پياده سو. نو ځکه چي زما ډير خلګ

شاگردان او مریدان ناست وه نو دې خوان پوښتنه وکړه ایکم السري السقطي. نو زما سره ناستو خلګو وماته اشاره وکړه او هغه خوان ته یې وویل دغه دی چې تا یې پوښتنه وکړه. نو خوان وسري ته وویل چې ما پرون له تا څخه دا خبره واورېدله عجبت من ضعیف عصی قویاً. نو ستا څه مراد و؟

ما ورته وویل چې نشته اضعف تر بني آدم او نه قوي شته اقوی تر خدای ﷻ او ابن آدم سره د ضعف خپل معصیت د خدای کوي. سري وایي چې دې خوان وژړل، او بیا یې وویل یا سري آیا خدای قبلوي په ګنهو کې غرق سری ما غونډي ماورته وویل من ینقذ الغرقی الا الله. بیا خوان وویل چې زما په ذمه کې ډېر مظالم د خلګو سته نو زه څرنګه وکړم، سري ورته وویل چې خپل لار د خدای پاکه کړه او د دنیایي چارو څخه خان قطعه کړه او له تولو ګنهو څخه توبه وکاږه او د عبادت دروازې پر خان خلاصې کړه نو به خدای ﷻ ستا مدعیان او خصوم به په ورکړې د عوض ستا څخه راضي کړي کما جاء في الحدیث النبوي ﷺ قال رسول الله ﷺ اذا کان یوم القیامة اجتمع الخصوم علی ولي الله وتقول الملائکة لهم لاتزعروا "یعني په بېروی" ولي الله فان الحق الیوم علی الله فیهب الله لهم المقامات العالیة بدل حقوقهم فیتجاوزون عن الولي. قال السري فبکی الشاب. نو خوان وویل چې ماته د خدای ﷻ لار را وښیه، نو ما ورته وویل که لار د میانه وو بندګانو اولیاء وو غواړې نو ته لمونخونه کوه او روژې نفلي نسه، او د تهجد لمونځ کوه او هیڅ ګناه مه کوه، او که ستا اراده وي لار د اولیاء الله المقربین الواصلین الی الله فاقطع العلائق واتصل بخدمة الخالق. او بېله خدایه زړه په بل شي سره مه مشغول کوه. وعن عبدالله بن عمر رضی الله عنه انه قال قال لي رسول الله ﷺ یا عبدالله کن في الدنیا کانک غریب او عابر سبیل.

## إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا

په تحقیق هغه کسان چې کافران سي وروسته تر ایمان او بیان نو زیات کړي کفر

**پوه سه**- چې آلوسي او مظهري وایي چې ددې کافرانو په بیان کې مختلف اقوال دي (۱) قتاده او حسن بصري رح وایي چې ددې دلې څخه مراد یهودیان دي

چي يو وار يې كفر وكړى په عيسى او په انجيل سره وروسته تر ايمان په موسى او تورات سره، او بيا يې زيات كړى كفر په محمد ﷺ او په قرآن سره (۲) ابو لعالية رحمه الله وايي چي د الذين كفروا څخه يهود او نصارى دواړه مراد دي، ولي وئ كفر په عليه السلام سره مختاره كړى چي دي مبعوث سو بعد ايمانهم منه وصفته في التوراة والانجيل ثم از دادوا كفراً اى ذنوباً في حال كفرهم

**دروېش وايي**: چي په دې تفسير كې مجاز دى او يا ضعيف دى فتامل فيه (۳) مجاهد رحمه الله وايي چي دا آيت په ټولو كافرانو كي نازل دى، حيث اشركوا يا په عبادت د بتانو او يا په عزير ابن الله سره او يا په عيسى ابن الله سره او يا په ملائكه بنات الله سره پس له اقراره د ټولو دغو كافرانو په دې سره چي خالق ددوئ بلكي د سموات والارض ومافيها خداى ﷻ دى فقط وروسته يې زيات كړې كفر اى ثبتوا على كفرهم حتى ماتوا عليه.

**دروېش وايي**: چي په دې تفسير كې هم مجاز دى سته (۴) كلبي رحمه الله وايي چي دا آيت په ملګرو كي د حارث بن سويد نازل سوى دى كما يكتفيه السباق ولي حارث چي پسله ارتداد رجوع وكړه او هغه نور يوولس ملګري يې پر كفر پاته سول په مكه كي فازدادوا كفراً. وفيه ايضاً مجاز كما لايخفى. او بعض افاضل وايي چي مراد په دې آيت كي منافقان د عصر نبوي ﷺ دي فان كفرهم زائد على كفر المجاهرين بالكفر لانهم احتملوا مشقة اخفاء الكفر ومشقة الصلوة والصوم مع كراهتهم وهذا نهاية محبة الكفر.

**دروېش وايي**: چي حال د منافقانو خو رښتيا داغسي و لكن تطبيق د آيت او تفسير د عبارت د آيت پر منافقانو ډېر ګران دى والله اعلم واليه المرجع والمآب

لَّن تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الضَّالُّونَ ﴿٩٠﴾

هرګز نه قبليږي توبه ددوئ او دغه كسان دي ګمراهان.

**سوال**: چي دمخه تېره سوه چي حارث بن سويد چي د ارتداد توبه وكښل او مسلمان سو توبه يې قبوله سوه؟

**ځواب**: مراد دلته توبه د كفر نه ده بلكي توبه له ګنهو څخه مثل الزنا،



Scanned by CamScanner

واللواطة وغیرهما ماداموا علی الکفر لان شرط التوبة عن المعاصي هو الاسلام. او هرچه توبه له کفر څخه ده هغه تر هغه وخته قبلیږي چې حالت نه د غرغرة الروح نه وي رسیدلی. نو پر هغه څلورو سابق شانزولو باندي خو توبه د معاصي ومراد ده نه توبه عن الکفر. او پر پنځم شان نزول باندي مراد دادی چې توبه د منافقانو په ژبه سره د اصرار بر کفر بالجنان نه قبلیږي وهو کک

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَن يُقْبَلَ مِنْ أَحَدِهِم

او هغه کسان چې کفر کوي او مره سي او دوئ کفار وي یعني له کفر څخه یې توبه نه وي کښلي لکه ابو جهل وامثاله. نو هرگز نه قبلیږي یعنې په ورځ د قیامت له یوه څخه ددوئ.

مِّلْءُ الْأَرْضِ ذَهَبًا

په قدر د ډکېدو د مځکې سره زر.

**یوه سه**: چې ذهباً منصوب علی التمیز دی من ملاء الارض والمعنی چې دغه کافر چې پر کفر مړ سو که فرضاً ده دونده سره زر چې مځکه ډکېدای په دنیا کي خیرات کړي وای نه خندي قبلېدل لان شرط الصدقات هم الایمان ولم یکن هذا الشرط فیه في الدنیا.

وَلَوِ افْتَدَىٰ بِهِ

کدڅه هم په اخرت کي فرضاً دا مثل ملاء الارض فدیه ورکړي لپاره د خلاص والي د دوږخ فالمعنی ان صدقة احدهم في الدنیا بملاء الارض ذهباً فرضا او مثل ملاء ذهباً په فدیه کي د ځان فرضاً ورکړي نو هم نه قبلیږي. اما عدم قبول الاول فلعدم الشرط وهو الایمان واما عدم قبول الثاني فلان یوم القیامة دار المجازات لا دار الصدقات والفدایا.

**درویش وایي**: چې مور چې د فرضاً لفظ ووایه په دواړه ځایه کي لان ملاء الارض ذهباً في الدنیا لشخص واحد وان لم یکن ممتنعاً عقلاً لکنه ممتنع عادةً واما في الآخرة فممتنع لان الکافر في الآخرة لایملک نقیراً ولا قطمیراً باخبار المخبر الصادق فضلاً عن ملاء الارض ذهباً فلا یرد ان الآیة توهم ان الکافر یملک یوم القیامة من الذهب مایملاء الارض ولکن لایقبل منه في

الاقتداء، وجه الدفع ان الكلام المذكور مبني على الفرض البحت.

**سوال:** په كتابو كي د نحو وايي چي كلمه د "فاء" په خبر كي د "انّ" نه راځي، نو دلته څرنګه فلن يقبل كي فاء راغله؟

**ځواب:** راوړل د فاء په خبر كي د انّ لپاره د تنبيه ده پر سببيت د مبتدا، خبر لره، كذا قال صاحب روح البيان والمظهري وسائر المفسرين.

أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٩١﴾

او دغو كسانو لره عذاب دی درد وركونكى. او نشته دوئ لره هيڅ څوك د كومك والاوو څخه په دفع كي د عذاب الهي له دوئ څخه. نو كلمه د "من" لپاره د استغراق ده. وفيه اقناط كلي لهم من الخلاص عن عذاب يوم القيامة ربنا انا كنا مؤمنين مسلمين في الدنيا فتوفنا مؤمنين مسلمين محبين للقاء يوم القيامة.

**درويش وايي:** چي بخاري او مسلم له انس بن مالك رضی الله عنه څخه روايت كړى دى او هغه له عليه الصلوة والسلام څخه قال يقول الله تعالى لاهون اهل النار عذاباً يوم القيامة لو ان لك مافي الارض من شئ اكنت تفتدي به فيقول نعم. فيقول اى الله جل جلاله اردت منك اهون من هذا وانت في صلب آدم ان لاتشرك بي شيئاً فابيت يعني خرجت الى الدنيا الا ان تشرك بي.

**درويش وايي:** چي الحمد لله والمنة تفسير د پاره تلك الرسل پر دې ځاى پاى ته ورسېدى پر لس (١٠) بجې د ورځي د دوشنبې سنه ١٤٢٦ هجري قمري او وريسي تفسير دى د لن تنالوا لبر ان شاء الله تعالى. بيت

شكر خدا يه په اولاد كي يتيم نشته
پاكه خدايه دا تفسير مه كړې يتم وبل چاته

**درويش وايي:** چي په پاى كي ددې جزء د تفسير بو مكتوب د مجدد الف ثاني قدس سره له مكتوباتو څخه را نقل كوم چي په مدح كي د سيد المرسلين شفيع المذنبين صلی الله علیه وسلم دى تبركاً په صفاتو سره د آنحضرت صلی الله علیه وسلم دا مكتوب څلور څلويښت دى په ص ١٢/١١/١٠ كي او مكتوب د شيخ فريد ته نوشته كړى دى، وروسته تر سلامه مجدد رحمه الله وايي شعر

ما ان مدحت محمداً بمقالتي ولكن مدحت مقالتي بمحمد

فاقول وبالله سبحانه العصمة والتوفيق، ان محمدا رسول الله سيد ولد آدم واكثر الناس تبعاً يوم القيامة واكرم الاولين والآخرين على الله واول من ينشق عنه الارض والقبر واول شافع واول مشفع، واول من يقرع باب الجنة فيفتح الله له وحامل لواء الحمد يوم القيامة.

**درویش وايي**: چي له دغه خای څخه بيا تر يوم القيامة ماخوذ من حديث رواه مسلم ومن قوله اكرم الاولين آه ماخوذ دی له هغه حديث څخه چي روايت يې ترمذي او دارمي کړی دی. تحته آدم فمن دونه وهو الذي قال عليه الصلوة والسلام نحن الآخرون ونحن السابقون يوم القيامة واني قائل قولاً غير فخر وانا حبيب الله وانا قائد المرسلين ولافخر.

**درویش وايي**: چي دا الفاظ چي دارمي يې روايت کړی دی وانا خاتم النبيين ولافخر وانا محمد عبدالله بن عبد المطلب.

**درویش وايي**: چي له دې خای څخه الی قوله بيتاً رواه الترمذي. ان الله خلق الخلق فجعلني من خيرهم، ثم جعلهم فريقين فجعلني في خيرهم فرقة ثم جعلهم قبايل فجعلني في خيرهم قبيلة ثم جعلهم بيوتاً فجعلني في خيرهم بيتاً فانا خيرهم نفساً وخيرهم بيتاً وانا اول الناس خروجاً اذا بعثوا.

**درویش وايي**: چي له دې خايه څخه بيا تر دې قول پوري مکنون رواه الترمذي وانا قائدهم اذا وفدوا وانا خطيبهم اذا انصتوا وانا مستشفعهم اذا حبسوا وانا مبشرهم اذا يسوا الكرامة والمفاتيح يومئذ بيدي لولاه لما خلق الله الخلق ولما اظهر الربوبية وكان نبياً وادم بين الماء والطين.

**درویش وايي**: چي دغه خبري د حضرت المجدد رحمه الله تر تنقيد لاندې نيول سوي دي يعني بعض علماء وايي حضرت المجدد رحمه الله دغه احکام له کومه خايه څخه معلوم کړي دي. دوئ په دغه باره کي چي کوم حديث راغلی دی هغه ټوله موضوعي يا ضعيف بولي، والجواب ان في هذه الاحكام اشارة الى مااخرجه الديلمي في مسند الفردوس عن ابن عباس رضي الله عنه يقول الله تعالى لولاک لما

خلقت الدنيا ولولاک لما خلقت الجنة ويشهد لها ما رواه الحاكم في صحيحه عن عمر ﷺ ان آدم رئ اسم محمد مكتوبا على العرش وان الله تعالى قال لآدم لولامحمد لما خلقتک، قال الزرقاني ﷺ روى الشيخ والحاكم عن ابن عباس اوحى الله الى عيسى آمن بمحمد ومر امتک ان يؤمنوا به فلو لا محمد لما خلقت آدم ولا الجنة والنار. الحديث د اقره السبكي في شفاء الاسقام والبلقيني في فتاواه ومثله لايقال بالرائ وعند الديلمي عن ابن عباس رفعه آتاني جبرئيل فقال ان الله يقول لولاک لما خلقت الجنة ولولاک لما خلقت النار قلت معنى هذا الحديث لاشبهة في صحته ومطابقته لنفس الامر عند كافة الصوفية وعامة من سواهم فهو صحيح ان شاء الله.

**درویش وایي:** هذا كله ماقال العلامة محمد مراد المكي الذي نقل جميع المكتوبات الى العربية البليغة والله اعلم پر ناقل د چا حق د اعتراض نشته فالحذر الحذر ايها الحاسد من الاعتراض على الفقير. بيت

ومن مذهبي حب الديار لاهلها وللناس فيما يعشقون مذاهب

**درویش وایي:** چې تر دې ځایه پورې و عربي مكتوب د مجدد قدس سره، او علامه مظهري په دېرو ځایو كې د تفسیر مظهري مقلد پاته سوی دی، د حضرت المجدد ﷺ.

**درویش وایي:** چې چونكه اكثره مطالعه كونكي د دې تفسیر لكه عوام یا طالبان او یا د مسجدو ملا ایمامان د مجدد قدس سره په عبارت عربيه بليغه په ترجمه به نه پوهیږي لهذا هغه ترجمه او معنا چې مترجم په فارسي عام الفهم سره كړې ده غوارم چې هغه هم نقل كړم ليكون المكتوب عام الفهم في الجملة وګرځي هغه دادی شعر

به سخن نه من ستودم ذات محمدی لکن باسم احمد بستودم سخن

پس میگویم از خدای پاک عصمت میخواهم وتو فیق میجویم

که هر آئینه محمد رسول الله بهتر ومهتر وبزرگترین فرزندان آدم است، وبیشترین مردم است از روی تابعان روز قیامت وبزرگترین پیشینان وپسینان است نزد خدای تعالی، ونخستین کسی است که شگافته گردد ازوی قبر.



Scanned by CamScanner

ونخستین شفاعت کننده است. ونخستین کسی است که قبول کرده شود شفاعت وی ونخستین کسی است که کوبد دربهشت راپس کشاید حق تعالی برای وی واوست بردارنده علم ستایش حق جل وعلا روز قیامت زیر علم وی باشد آدم وهرکه جز اوست واوست علیه الصلوة والسلام که فرموده است مائیم پسینان ومائیم پیشینان روز قیامت. ومن گوینده ام گفتاری را بیمفاخرت. ومنم محبوب حق تعالی ومنم کشنده مرسلان ونیست فخر، ومنم ختم کننده پیغمبران ونیست فخر ومنم پسر عبدالله پسر عبدالمطلب وبدرستیکه خدای تعالی پیدا کرد خلق راپس گردانید مرا در بهترین ایشان. پستر گردانید ایشان را دو گروه پس گردانید مرا درفرقه که بهترین ایشان است. پس گردانید ایشانرا، قبیله قبیله پس گردانید مرا دربهترین قبائل. پستر گردانید ایشانرا خانه خانه پس گردانید مرا در بهترین خانهای ایشان پس منم بهترین ایشان در روی ذات وبهترین ایشان از روی خانه ومنم نخستین مردم از روی بیرون آمدن وقتیکه برانگیخته شوند ومنم کشنده مردم وقتیکه بیایند بدرگاه خدای تعالی. ومنم خطبه خواننده ایشان وقتیکه خاموش شوند ومنم که طلب کرده شود از من شفاعت وقتیکه حبس کرده شوند ومنم بشارت دهنده ایشانرا وقتیکه نومید شوند، بزرگی دادن وکلیدهای آن روز بدست من است ومنم گرامیترین فرزندان آدم نزد پروردگار خود گرد من گردند هزار خدمتگار گویا آنان بیضهای مکنون اند، وچون باشد روز قیامت باسم امام پیغمبران وخطیب ایشان وخداوند شفاعت میان ایشان. بغیر فخر واگر نمیبودی آن سرور بدستی نیافریدی خدای پاک خلق را. وهر آئینه ظاهر نساختی ربوبیت خود را وْوی علیه الصلوة والسلام پیغامبر بود در حالیکه آدم میان گل وآب بود.

**درویش وایي:** چي دا وه ترجمه د مکتوب عربي د مجدد قدس سره بزبان فارسي وروسته مجدد علیه الرحمة خود بزبان فارسي بلیغ برمکتوب عربي خود این ضمیمه افزوده است شعر

نماند بعصیان کسی در گرو — که دارد چنین سیدی پیش رو

پس ناچار مصدقان این چنین پیغمبر سید البشر علیه الصلوة والسلام خر

